دانش خپرندویه ټولنه

# پښتو پښوییه

(پایڅوړ: د ژبپوهنې بنسټونه او غږپوهه)

پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار

## چاپ آثار:

پښتو ویې پوهنه، پښتو پښویه (ګرامر)، پښتو لیکلار، پښتو شعر څنګه جوړېږي؟، زنداني نغمې، وینه او مینه، اندو ژوند، سوزونه او سازونه، ګڼلکڅونه – ګلولې، پښتو نوموالترنګونه(په المانی) پښتانه اوورونه ملیتونه (ژباړه)، د کنیشکا د سره کوتل ډبرلیك، د سبرونو نڅا، اور اووینې، ګلوییونه- څڅواکي، رزم و بزم، مینه د زړه په وینه(د پنځلسم پوړ کړکۍ)، سیندګی همماتیزونه)، سیندګی (نوېزونه) د انګرېزي- پښتو د سربلونو+او ستربلونو سیندګی، پټه خزانه ناپېیلې نثري ټولګه)، پښتو اوپښتانه د ژبپوهنې په رڼا کې ، نوې پېړۍ نوې زرۍ، اندوواند، ساندې او سندرې، د خوشال ادبي پښتو.

# پښتو پښویه ( گرامر )

( پایڅور : د ژبپوهنې بنستونه او غږپوهه )

پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار

# لیکي پوهه:


لیکی :: پښتو پښویه (ګرامر) دویم چاپ

(پایځوړ: د ژبپوهنې بنسټونه او غږپوهه)

لیکوال :: پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار

خپرندوی :: دانش خپرندویه ټولنه

اوډګر :: سید حسین هاشمي

چاپ نېټه :: ۱۳۸۲ل -۲۰۰۳ز

چاپ شمېر :: ۱۰۰۰ ټوکه

# بسم الله الرحمن الرحیم

**پیرمحمد کاکړ** ته

چې پر ۱۱۹۵ س کال یې په خپله " معرفة الافغانی "
د پښتو پښوویې بنسټ ایښی

او

**نورمحمد نوري** ته

چې پر ۱۲۸۰ س کال یې د " تحفة الامیر "
په نامه دویمه پښنویه کښلې ده .

**پاسلنه او مننه**

له منلو حبیب الله جانبدار، ډاکتر وارث وزیر، استاد محمد اصف صمیم، اټك یوسفزي، اسدالله ساپي، په تېره تېره له خپل کلیوال پاچا څخه د زړه له تله مننه کوم چې په خپلو پښتني پاسلنو یې د دغه بنیـادي پښتـو ژبپوهنیز نښـیر د بیا خپراوي لپـاره زما دېرش کلـــنو خیړنو پلـــټنو ته رښتیاینه وښښله.

(( پوهاند زیار ))

# د خپرندويې ټولنې يادښت

دانش خپرندويه ټولنه ډېر وياړي چې د نومهالې (معاصرې) پښتو ژبپوهنې ددغه بنيادي کتاب په وړاندېينې سره د خپلې لرغونې ملي ژبې په سرڅنه کې برخه اخلي.

لکه څنګه چې د ليکوال له خپلې وېړې سريزې اوداروانښاد پوهاند محمد رحيم الهام له لنډې او کوټلې کره کتنې څخه جوتېږي، دغه ژبپوهنيز اثر له رومبي چاپ (۱۳۶۲ل) راهيسې تراوسه لومړنۍ او يوازينۍ بشپړ پښتوګرامر ګڼل کېږي، چې په نړيواله کچه د نومهالې ژبپوهنې په رڼا کې رازېږېدلی دی.

استاد زيار له هماغه مهالپېره بياتراوسه، په تېره د جلاهېوادۍ په وروستيو اوو کلو کې، له انګلستانه نيولې تر المان، فرانسې، سويس اوسوېډنه د خپل دغه اکاډميك اثر د لابشپړونې او کرونې لپاره د شلمې او يوويشتمې پېړۍ د ژبپوهنې له تازه برياوو څخه تر وروستې بريده ګټه اخيستې، چې دا دی موږېې د بيا خپراوي وياړ ترلاسه کوو.

دانش خپرندويه ټولنه ټينګ ډاډ او باور لري، دغه پښويه په هېوادواله اونړېواله کچه هغې سختې اړتيا ته ځواب ووايي، چې يې د مخکينې چاپ له نشتېدنې سره د اړوندو ښوونيزو اوزده کړيزو څانګو استادانو، شاګردانو اونورو مينه والو ورته ننګېرله.

موږ هم پر خپل وار د هغې ځانګړې مينې او لېوالتيا له مخې، چې د بېلابېلو پوهنيزو او فرهنګي آثارو د خپرونې په لړ کې يې د خپلې لومړنۍ ملي ژبې لاسته راوړنو سره لرو، وېتېيله چې د پوهنتونو او ښوونځيو استادانو او شاګردانو لپاره دده ګټور کتاب بيه په سل کې تر پنځوسو راټيټه کړواو په دې توګه يې په خپرولو اودودولو کې اغېزمنه ونډه واخلو.

داهم نوې بشپړه او کره پښتو پښويه اوتاسې!

وړاندې په ټول هېواد کې د پوهې او فرهنګ د نويو پايلو او برياوو د خپراوي په هيله

دانش خپرندويه ټولنه

# نيو ليك

| سرليك | مخكڼه |
| --- | --- |

# د استاد زیار پښویه

پښویه (ګرامر) د ژبپوهانو په اند د سپړیزې(تشریحي) ژبپوهنې یوه څانګه ده،چې ځینې یې تطبیقي یا انځوریزه ژبپوهنه بولي.

پښویه هغه پوهنه ده،چې د یوې ژبې رغدود (د جوړښت نظام) سپړي. هره ژبه یو ځانګړی رغیز یاجوړښتي نظام لري، چې دهغې ژبې آر ویونکي او ګړېدونکي د همغه رغدود له مخې غږېږي. نو ویلای شو چې دیوې ژبې پښویه د یوې ژبې د جوړښتي نظام آرونه (قواعد) راسپړي او رابرسېره وي.

دژبځېړنې د آرونو له مخې پښویه د قوانینویه برید کې نه راځي. د یوې ژبې د پښویې د کښلو موخه دا نه ده،چې د ژبې آرو ګړېدونکیو ته بې وياره (بې عیبه) یابې "خو" وینا اوکښنه ورزده کړي او یا داسې آرونه او بنسټونه پر ژبه وتپي، چې خلك یې د ویلو او کښلو پر وخت په پامنیوي اړ وي. یانې پښویه دا ښیي چې ژبه څنګه ده؟ خو داحق نه لري،چې ووایي ژبه دې څنګه وي،ځکه نو ژبپوهان او پښویپوهان وایي، چې د یوې ژبې پښویه (Grammar)او ژبدود (Regularity of Language) د نورو ژبود پښویو په پلیون (پېروی) رغول او اوډل علمي کار نه دی.

پښتویه ګني ځانګې لري لکه: فونیم پوهه، مورفیم پوهه، ګړپوهه (صرف) غونډله پوهه (نحو).

د ژبپوهنې او پښتویې په باب زموږ له دې اوږدې رسمي غزونې موخه دا وه، چې ددې (تر لوست او لاس لاندې) پښتویې پر اړتیا او اغېزې څه ووایو.

دا پښتویه د هېواد د وتلي او تکړه ژبپوه پوهاند ډاکتر زیار هغه اکاډیمیك او پوهنیز اثر دی، چې د خپل ښوونیز او پوهنیز ارزښت او اغېز له امله په دې تېرو دوه نیمو درو لسیزو کې یې د خپرېدا دا پنځم ځل دی، چې وروستی هغه یې په لومړي ځل پر ۱۳۶۲ کال په افسټ بڼه د کابل پوهنتون له خوا خپور شو او سره له دې، چې هر ځل په سوونو چاپ شوی، خو له پښتو لوستونکیو نه له سرتکاوي سره سره یې د تېرو چاپونو یوه نسخه هم نه موندل کېږي، ځکه دې پښتویې وخت پر وخت د پوهنتون د زده کړیالو تنده خړوبه ساتلې ده.

د پښتویې ددې چاپ بیاکتنې او بشپړونې ته استاد زیار ښایسته ښه مخه (فرصت) اویوځه نسبي اسانې درلودې، نوځکه یې پرې ښې په زړه پورې زیاتونې او اسانونې کړې دي.

زه خپل ویاړلي استاد ته ددې علمي اثر پر بیا راایستو مبارکي د یوه بل تکي تر وړاندې کولو وروستی کوم او هغه دا چې استاد زیار ته د خپل دغه اثر په سریزه کې له بده مرغه دتېر په څېر یو ځل بیا د زړو پلونو او پولو نړونه او نه درناوی د خپل دې نوي اثر د ارزښت او اغېز زیاتوب اسپدلی او د مهال تنګو تربنګلو آړونو او شراېطو. ته په نه پاملرنه یې پر رامنځته شویو دودیزو آثارو او د هغو پر لیکوال له یوې مخې د "ته اغېزمنې"ګز راکښلی، چې نیاو راته -په بښنه- ونه

برېښېږد. زه د خپل درانه استاد ددغه شان جاجنې او ارزونې پر څرنګتیا د څه ویلو پرځای یوازې د استاد الفت د "پخوانی دیوې"تومې لیکنې یوه برخه د دوی مخې ته ږدم:

"د زمانې دا عادت دی، چې زاړه شیان له کاره باسي او نوي شیان په کار اچوي، مګر خلك خپل زور حال نه هېروي او زړو شیانو ته په جګو رفونو باندې ځای ورکوي.

دا عادت بد نه دی، چې څوك زاړه خدمتونه هېر نه کړي او زړو خدمتګارانو ته په قدر وګوري، مګر کار باید له نوو شیانو واخیستل شي او په کورونو کې نوې رڼاګانې پیداشي.

... د همدغه بدلون او تغییر په وجه د علم او پوهې رڼا هر وخت خپل فانوس بدلوي او د لوښو په بدلون په لوښو کې پراته شان هم بل رازکېږي."

*"د الفت نثري کلیات، ۱۸۸مخ"*

په پای کې د دانش خپرنځي ادبپال او روښاندی څښتن ښاغلي اسدالله ساپی ددې علمي اثر په بیا خلونه د ډېرې نمانځنې وړ بولم، چې له همدې تېرو لس-دولس کلو راهیسې د پښتو ژبې د پرمختیایي بهیر په چټکتیا کې ناستومانه ونډه اخیستې ده.

نور نودخپلو خبرو لمن د استاد زیار ددې شعار په راغبرګونه رانغاړم، چې:

تل دې وي پر ناپوهۍ د پوهې برې

او پر زړود باندې د نویو لاسبرې

درنښت

**محمد آصف صمیم**

۱۸/۱۸/۱۳۸۲

د لومړي چاپ د یادښت پر بنسټ :

# سریزه ( *Introduction* )

زموږ په وروسته پاتې پښتني ټولنه کې د نورو بشري پوهنو په لړ کې ژبپوهنه هم نوې دود شوې ده او زموږ له ټولنیزو اړونو سره سم یې یو رنګ لا سم دود نه وي موندلی چې په نوره نړۍ کې هغه بیا له وخته له دود او موده وتلې وي . که څه هم نژدې نیمه پېړۍ اوړي چې نوې ژبپوهنې او بیا پښتو ژبپوهنې د کابل پوهنتون د ادبپوهنځي له لارې زموږ هیواد ته سر رادننه کړی، خو بیا یې

هم نه یوازې د زړې دودیزې ژبپوهنې ځای نه دی نیولی چې لا کوربړ وسکوټ یې ترې سر هومره هم نه دی پورته کړی . د لمریزو دیرشمو په منځیو کې د اروابناد عبدالاحد یاري د نوې ژبپوهنې څو لیکنې او لوستونه لا د شاگردانو او مینه والو مغزو ته نه وه رسیدلې چې د " گرامر پښتو " د یوه بچي په توگه د اروابناد صدیق الله رښتین "ژبښودنې" بیا ټول افغانستان نیولی وو ( بله په زړه پورې کارنامه یې لا دا چې د ژوند په وروستیو شپو ورځو کې یې له وخته په گټه اخېستنه د هماغه بره خوا له دوده کښلي گرامر پښتو ژباړه له نورو بې سروبوله ژبنیو څېړنو سره چاپ ته وسپارله ) که له اروابناد الهامه راتېر شو، د پښتو ځانگې آرو استادانو د نوې ژبپوهنې د پېښناووانو ( اماتورانو ) په توگه نه دومره اکادمیکه زده کړه او سمبالتیا درلودلې او نه یې ورسره یوه لړه کې علمي مېړانه چې هغه زړه پښویه او ژبښودنه لږ تر لږه د پوهنځي له لوستي اډانې وباسي، نو له دې سره به ترې پخیله د پښتو ژبپوهنې او بیا پښتو پښویې د کښنې او دودونې څه هیله اسره شوې وای . د استاد الهام له خوا د پنزل د کندهاري گړدود پښویې ( پښتو گرامر ) ژباړې او بیا یې خپلې " د پښتو گرامر طرحې "، د " ترې " نوې ژبپوهنې او ژبنیو مسایلو "، د پالوال " نوی مصدر " د اروابناد لودین روسي ژباړو او خورو ورو لیکنو څېړنو او راوروسته یې د اکادیمی پوړی لپاره تش په نامه " پښتو اکادمیك گرامر ! " او څه ناڅه د شاکر نیمي نیمگورې " ژبنی څېړنې " بیا هم زاړه غوړونه یو څه وبنگول او وبوړنول او دا یې لږ تر لږه راوښووله چې نوې ژبپوهنه او نوې پښتو ژبپوهنه یا پښویه څه مانا ؟

پر ۱۹۶۲ ز ( ۱۳۴۱ ل ) کال د ادبپوهنځي په چوکاټ کې د ژبپوهنې د انستیتوت له منځته راتگ او په ځانگړې ډول، د افغانستان د ژبپوهنې اتلس له هغې نړیوالې پروژې سره یاد شوي علمي غورځنگ یوه نوې سا واخېسته چې د یونسکو په سپارښتنه یې د نومیالي ناروېژي پښتو پوهاند استاد گیورگ مورگنستیرن تر مشرۍ لاندې د اروپایي آریانپوهانو او زما په گډون د همدوی له خوا د یوه لنډ مهالي کورس د بریالیو افغاني زده کړه والو په ملتیا څو کاله پرمخ یووړل شوه او د هېواد له گوټ گوټ یې د گڼو آریاني او یو څه ناآریاني ژبو ثبت کړې ۲۸۰ گړدودونه د سویس د برن پوهنتون پازوالو ته د نوموړي اتلس د اوډون لپاره وسپارل شول .

له بده مرغه زموږ تکړه ملگري " پالوال " د پروژې بورس ته سترگې پر لار پاتې نه شو او د فولبرایت له هغه سره یې د ژبپوهنې پر ځای توکمپوهنه وامرله او کشر ملگري " اځك " راوروسته ږومبی په هند کې ژبپوهنه پرمخ بوتله او بیا په ناروې کې له استاد مورگنستیرن څخه په آریاني فیلالوجی کې تر ماسترۍ پورې خپلې زده کړې ترسره کړې. خو په پوهنځي کې یې ټول زور د تاریخي ژبپوهنې پر ښووانه واچاوه، بې له دې چې کوم څېړنیز یا درسي پښتو نښیر رامنځته کړي د پښتو ځانگې خوانو لیسانسه او ماسترې کدرونو زیاتره تر ژبپوهنې، ادبپوهنه اسانه او وړه یې گڼلې او په دې دومره کلونو کې یوازې یوه استاد "خویشکي" له هماغه پیله ژبپوهنه خپله

ځانګه ګرځولې او لږ تر لږه یې د خپلو علمي پوړیو لپاره د پښتو پښوونې ښې سکالووې کښلې او تدریس کړې دي.

پوهاند تږي هم تر ماسترۍ وروسته له "نوي ژبپوهنه او ژبني مسایل" پرته نور زیاتره د ژبپوهنې او بیا پښتو ژبپوهنې پرځای د ادبي تیورۍ پر ښوونه او څېړنه بسیا پاتې شو . او چې د اویایمو زېږدي کلونو په پای کې یې د ژبپوهنې ډاکټري له امریکا راوړه، تر ما پورې ورته د ډېرو استادانو او شاګردانو دا سترګې اوښتې چې ګوندې تر هرڅه له مخه د پښتو پښوونې په رابشپړوته کې راسره یوه مخکښه ونډه واخلي، خو د کړ اوړون په اړه یې د ځو ازمانښتي لوستونو تر وړاندې کولو وروسته د سیاسي اړودوړ په پلمه بیا هېواد پرېښووه او خپل دویم هېواد " امریکا " ته بېرته ورستون شو . هلته یې هم ترننه پورې تر پوهنتوني استادۍ او پښتو ژبپوهنې د امریکا عمر خپرونې پښتو ویاندي غنیمت ګڼلې او په دې وروستیو کې یې چې د اړوندو چاروا کو له اړتیا او غوښتنې سره سم د یوې امریکنی په ملتیا یو " خودآموز " ډوله پښتو لوستلیکی " A Reference Grammar of Pashto " د دوکتورا د تېزس غوندې د خپل لنډ تنګ ځانګړي کلیوال ګرډود پر بنسټ ګړه بره راوکښلی، نو ما ترې د دغې پښوونې په نوي کتنه کې خور ناځیره ګټه واخیستای شوه او پر ځای یې نور هم د ختیځپوهنې د تېرمهالو او وسمهالو له دارمستېټر، ګایګر او مورګنستیرنه نیولې تر پنزل، شفییف، مېکنزي ګیفر، سکېرو، سېټفون، مایر او نورو) پښتو څېړونکو د ښېلا ښېلو میتودیکو هستونو وریځاندی شوم . ډېر مې زړه غوښتل، اروپا ته له وروستني راتګ سره د پښوونې دغه دویم چاپ د یوه انګریزي، پرانسې یا جرمنی زده کړیز (تعلیمي) ګرامر په مخبېلګه نور هم بشپړ او کره کړم، خو د پښتو ژبپوهنې نورو اړینو غوښتنو او اړتیاوو او بیا یې د یوې - کره لیکنې غورځنګ ورځنیو هاندو هڅو نر دې زیاته کابو رانه کړه او د "پښتو او پښتنانه د ژبپوهنې په رڼا کې" تر بشپړونې او خیروبې وروسته دا دی، د نورو منډو تړړو ترځنګه له دړو لسیزو راپیل کړی پښتو اتیمولوجیک میندګی پرمخ وړم

هو، زه دا باتې نه وهم چې دغه نوې کتلې او کره کړې پښوونه د کوم ډېر تازه پښوونیز ښوونځې لکه واخلې، د چومسکې زېږند (جنراتیف) ګرامر، یا هم د یولملې " ترانسفرمېشنل جنراتیف ګرامر" بشپړه یا هوبهو لاروي او ښکارندوبي وکړای شي، خو دا په ډاډ سره وایم چې له دې سره سره یو دودیز نورماتیف ګرامر هم نه دی . دا چې یوې یوازینی کره لیکنې او علمي پښتو لا دومره تولېزوالی نه دی موندلی او یو نیم پلک ورک، لکه پوهاند تږي په حیله ځانګړي ګرډودي پښتو یوه نیمه لیکنه څېړنه رامخته کړې ده، نو کېدای شي، د هَمدَه په ګډون څینو ګونښونکیو ته زما دغه پښوونه بې هم یو نورماتیف ګرامر واېسي، بې له دې چې تر دامنځ د " ښتو او ښوونې "تویر وکړي او بیا دا نول ځي دلته خبره پر ګرودوی ګرامر نه. بلکې پر ژبني ګرامر ده . په دې مانا چې مې د ګرامرې ډوبو (قاعدو) او تولنو (کتېګوریو) په نومېرنه، ناکنه سرنه او وېښنه کې څه

ناڅه د ټولو پاموړو پښتو ګړدودونو د یوې یوازینۍ ګډې امرلې (انتخابي) بڼې آرو معیار پر کار اچولی دي. په دې چې د "پښتو" ګرامر کښنه او د "پښتوګانو" ګرامر لیکنه سره توپیر لري. په بله وینا د ګړدود او ژبې ګرامرونه سره په آرو بنسټ کې توپیر لري. له دې کبله دغه پښویه نورماتیفه نه، بلکې اړونده ژبه "پښتو" یې نورماتیفه او کره کړ شوې ده.

که خبره یوازې پر ګړدودي پښویې (ګرامر) وای، ډېره اسانه وه چې د پوهاند تړې تر لاروی، د هربرت پنزل پښویه څانته مخببلګه کړم چې یو خوا یې څېړندود څه ناڅه نومهالی دی او بل خوا د یوه کلي یا کندي د یوه لنډ تنګ نه، بلکې تر کندهاري نامه لاندې د ټول سوېل - لویدیځ د یوې ارتې یېرتې ګړدودي ډلې ښکارندویي او استازي کوي چې د نورو (منځنیو، سوېل - ختیزو او شمال ختیزو) ګړدودي ډلو په وړاندې له تاریخي پلوه زیات رغاونیز لرغونوالی لري. دا چې سوېل - لویدیزه ګړدودي ډله، یا په بله وینا، "کندهاري پښتو" مو په یوه - کره لیکلار کې ولې له ارکاییکي څانګړتیاوو سره سره تر ډېرې کچې له پامه غورځولې ده، لاسوند یې پرتلیز لړه کیوالي دی. څکه د اړوند ژبپوهنیز تولمنلي پروسیجر (چلند بېلګې) له مخې د نورو ویونکیو ډېروالي دا ربښته (حق) راکوي چې د کندهاري پښتو ببخرته څانتنۍ خجپوهه (اکسنتولوجي)، ګړپوهه (مورفولوجي) او غونډله پوهه (سېنتکس) د نورې ډېرۍ پښتو په پرتله ببخرته نادودۍ (بې قاعده ګۍ) رامنځته کوي، د ساري په توګه، تر خج لاندې، یا په بله وینا، هره ناخجنه نوموالي او کړواله پایله بدلوي: (- زور) پر (- زورکي)، اوږد (- و) پر لنډ، اوږده (- ي) پر لنډه (ې)، زوروالي (- ی) پر زورکي واله (- ی)، لکه په لاره (راه) کې یې "ه" یو "زورکي" دی او په لاره (میلودي) کې "ه" یو "زور" او له دې سره یې د ډېر ګړي او پېر پایلې هم توپیر مومي. رومبۍ لاره (لاري) راځي او دویمه لاره (لارې). ژوی (ژوئ) او سری (سړی) ویل کېږي. خو ډېرګړي یې د نورو غونډې یو راز پایله (- ي) ترلاسه کوي. په اوښتي یوګړي کې یې هم ورته پښنبه راغبرګېږي. په اوښتي ډېرګړي کې بیا د ټولو پایلو ناخجن "و" لنډ (u) راځي، حال دا چې په نورو ټولو ګړدودو کې خج پر پایلو کوم اغېز نه ښندي، د ساري په توګه لاره (راه) او لاره (میلودي) یو راز پایله (زور) لري او د ډېرګړي او پېر پایله یې هم یو راز (- ي) راځي. په همدې ډول یې د ډېرګړي اوښتي پېر پایلې هم یوه بڼه رااخلي او پر اوږده (- و) پای مومي. په و - پای یو ګړیو ښځینه نومونو کې بیا هم کندهاري پښتو دوه بلګړونه (الومورفونه) لري. ناخجن لنډ (- و) او خجن اوږد (- و) ادا کوي. لنډ (- و) لکه په بنو او اوږد (- و) لکه په بیزو کې.

دغه راز خجیز اغېز یې په کړ اوړون کې هم لېدل کېږي. لکه په راغئ یا راغلئ کې. کړ نو مي "کېدل" د نورو پښتنو غونډې وایي، مګر په ګرداني بڼو کې (- ې -) بیا پر (- ي -) بدلوي. د بېلګې په توګه د یوې - کره پښتو دویم یوګړی "کېږې" پکې پر "کیږي" اوړي چې له دریم یوګړي سره ګډون (التباس) رامنځته کوي. یو څېړیز ویېونه، وییکي او نومځري یا په بله وینا په ټولیزه

پښتو کې ناخجن نومیرلي توکي " enclitics " کندهاریان پر خجنو " proclitics " اړوي او له دې سره " ې " پر " ي " او " ی " پر " ی، ئ " بدلوي پوهاند تړې هم هغه دناخجنو نرکو " enclitics " په توگه په خپل ډاکتري تېزس کې څېړلي دي نو که له نورو بې شمېرو ځانگړنیاوو سره د کندهاري پښتو دغه پاسنی ځانتیاوي یومخیزه په پام کې ونیسو، زموږ د یوې کره پښتو دغه پښویه به، نه یوازې دوه گرایه وغځېږي چې لا له اړوندو دویونو ( قاعدو ) څخه به یې نادویی ( بېقاعده گی ) تیری وکړي او له شاگردانو، په تېره له نا پښتنو کورنیو او بهرنیو زده کوونکیو څخه گردسره لار لودن ورك کاندي له دې هم څوك نتېه نه شي کولای چې لنډوالی او باقاعده والی له غورو او بنستیزو معیاري آرونو ( اصولو ) څخه گڼل کېږي.

د ښ " او " ږ " په برخه کې خو هرگوره د منځنی پښتو وینگ غوره او کره گڼل شوی چې په کار ده، په رسمي، سیاسي، علمي، فرهنگي، ادبي او ژورنالیستي ( رادیو – تلویزوني ) ویناوو کې له پامه ونه غورځول شي، که نه، ښایي کوم پاموړ گډون ( التباس ) هم رامنځته نه کړای شي د داسې ناځیزو ویونیزو توپیرونو څرك خو په ډېرو پرمختللو ژبو کې هم لگیږي، لکه واخلې ch/ چې په جرمنی کې، هغه هم تر ړنو خپلواکو وروسته د پښتو " ښ " غوندې درې وینگه لري او یوازې یې د رادیو – تلویزیون ویاندان او ورسره ورسره رسمي، علمي او فرهنگي ویناوال هماغه معیاري وینگ په پام کې نیسي چې کټ مټ د منځنی پښتو " ښ " هغې غوندې دی.

د موخې او مرام له پلوه ما دلته تر هرڅه له مخه د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانگې د شاگردانو راتلونکې اړتیا او اسانتیا په پام کې نیولې. هغه دا چې دوی وروسته د استادانو او ښوونکیو په توگه په یوه داسې نوې پښویه، پرخپل خپل واړ، په منځنیو او لوړو ښوونیزو څانگو او منځیو کې سم له لاسه د زړې پښویې او ژبښوونې بلېږدېدنه او رانغښتنه او له دوده لوېدنه هومره وانگروزي او ډاگیزه کړي او پر ځای یې د نوې ښوونیزې یا ژبښودې پښویې دودونې ته متې راونغاړي چې هم تخنیکي او میتودیکي نویوالی لري او هم ترمینالوجیکي نویوالی.

زما په ازمېښت د دې لامل او لاسوند چې ما ولې هممهال دغه دوه اړخیز نویوالي ته پر یو وار رادانگلي، دا دی چې یوازې په دې یوه نویوالي له زړو هغو سره جگړه بیا هم نیمگړې پاتې کېده د " حرف یا توري، مصدر وحاصل مصدر، مجهول ومعروف، جارومجرور، اصلي او مغیره حالت، مسند ومسندالیه، مضاف ومضاف الیه ... " غوندې نابومه او گران سهیزې او گران پوهیزې او تر ټولو زیاتې بیا د "فاعل او مفعول" یا "مفعول منه او مفعول له" غوندې کرغېړنې، بد غونې او بد لگې نومونې چې استاد او ښوونکی یې په ویلو او شاگردان یې په اورېدلو شرمېږي. هماغسې له دوده او موده وتلې برېښي، لکه پخپله د زړې پښویې او ژبښوونې وروست وکرغېړن دود او څېړندود، مېتود او تخنیك.

اروابناد استاد الفت له هغو څوان اندو زړو پښتو پوهانو څخه وو چې په هماغه پیلامه (۱۳۵۱ل) کې یې زما دغه نوې نومونپوهنه (ترمینالوجي)، نه یوازې رد نه کړه، بلکې دا داد یې هم راوبانښه چې دغه نوې نومونې د کتاب له سره بیا تړپایه بیا بیا راغبرګېږي او په دې ډول یې شاګرد او لوستونکی په اسانه سهلای او زده کولای شي . ما چې ربښتیا هم د پښتو پښنویې څو لوسته برابر کړل او شاګردانو ته مې واورول، د هغه استاد د پاخه منطق پایله مې په کړن کې ولیده شاګردانو د دې منښته وکړه چې هماغه کړ (فعل)، کړند (فاعل)، کړی (مفعول)، کړول (قید)، کړوال (فعلي)، کړ نوم (حاصل مصدر)، کړنومی (مصدر) ... یا نوم (اسم)، نومځری (ضمیر)، ویی (کلمه)، ګړ (مورفیم)، ګړپوهه (مارفولوجی)، صرف، غونډ (فقره)، غونډله (جمله)، غونډله پوهه (نحو) اوداسې نورې نومونې وې چې پرله پسې راغبرګېدې او د ټولو په زړونو او ذهنونو کې نقشېدلې

د ګرامر پښتنو انډول " پښنویه pxóya " څو څه ناڅه دوه سوه کاله پخوا راوړتې او بیا یوسل ودېرش کاله له مخه ښېلیو په خپلو اړوندو پښتو ویي پانګو کې راالخېستې او بیا څه له پاسه اویا کاله مخکې صالح محمد کندهاري خپله دوه ټوکیزه " صرف ونحو " په همدغه نامه نوملې وه چې پښتو قاموس لومړي ټوك (۱۳۳۰ ل) هم راخوندي کړې ده .

په هره تو‌ګه د یوې - کره پښتو د دغې لومړنۍ نومهالې ښوونیزې پښنویې څو مخنیو کچه ازمایښتې چاپونو او په ځانګړي ډول یې ړومبي آفسېتي چاپ او خپراوي په تیرو دوه - درو لسیزو کې دومره داد او باور را په برخه کړ چې له دغې نوې، څه ناڅه بشپړ شوي او کره شوي چاپ سره لا زیات دود او ګرانښت ومومي او تر هېواد دننه او د باندې د شاګردانو او مینه والو غوښتنو او اړتیاوو ته ځواب ووایي .

تل دې وي پر ناپوهۍ باندې د پوهې بري

او پر زړو باندې د نویو لاسبري !

پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار

اکسفورد، اکتوبر ۲۰۰۳

له رومبني چاپ څخه :

# کتنه

پښتو پښويه ( ګرامر ) د پښتو په تشريحي ژبپوهنه کې يو نوى پام وړ او ګټور اثر دى . له دې ګرامر نه رومبى د پښتو ځينې ګرامرونه د بهرنيو ژبپوهانو او کورنيو څېړونکو له خوا ليکل شوي دى ، خو زياتره يې عنعنوي څېړندود لري او معاصر علمي څېړندود پکې نه دى کارول شوى او ځينې يې چې علمي څېړندود لري ، مکمل او مشرح نه دى .

ما پخپله پخوا د ډاکټر هربت پنزل پښتو ګرامر له انګليسي څخه پر پښتو رااړولى او د ادبياتو پوهنځي له خوا چاپ شوى دى ، چې تر ډېره ځايه پورې علمي رنګ لري ، خو د دې ګرامر نحوې برخه کمزورې او بيخي مختصره ده . په هغو وختو کې د افغانستان په ژبپوهنه کې عنعنوي څېړندود دومره پياوړى و چې ان استادانو هم دې کتاب ته پاملرنه ونه کړه او په ګودامونو کې پاتې شو .
وروسته ما د پښتو ګرامر لپاره يوه طرحه ترلاس لاندې ونيوله چې د فونولوجى برخه يې تکميله شوه او خوره وره په " وږمه " کې خپره شوه ، خو د کار د تکميل وخت مې پېدا نه کړ .

دغه طرحه یوه سریزه لري چې په هغې کې د تشریحي گرامر لیکلو څېړندود څېړل شوی دی ، خو دغه کارونه ابتدایي او نیمگړي دي .

له ښه مرغه پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار چې یو تکړه او غښتلی ژبپوه او پر پښتو باندې مین زیارکښ څېړونکی دی او ډېر مهال د نورو علمي کارونو په ترڅ کې د پښتو گرامر په څېړلو او تدریس بوخت وو ، دغه کتاب تکمیل کړ او د تدریسي متن په توگه درې ځله د گستتنر په شکل د ژبو او ادبیاتو د پوهنځي د پښتو څانگې له خوا چاپ او د استادانو او زده کوونکو د گټې اخېستلو لپاره علمي ډگر ته راووت .

دغه کتاب په لومړي سر کې له ستونزو سره مخامخ شو . یو خو له دې لامله چې څېړندود یې نوی و ؛ زموږ دودیز گرامرونه ، چې البته خپل علمي رسالتونه یې پخپل وخت کې سر ته رسولي وو ، د معاصرې ژبپوهنې له کلیاتو ، ضوابطو ، مفاهیمو او اصطلاحاتو څخه خالي وو او د متود له نظره یې زر کلنه زړه سابقه درلوده . د یو داسې زوړ او پیاوړي سېستم پر ځای نوی سېستم رامنځ ته کول او د گرامري مفاهیمو او اصطلاحاتو بنسټیز بدلول اسان کار نه و . خو بیا هم دغه کتاب عمومیت وموند او اوس د ازموینې او کره کتنې له ډگر څخه په هسکه غاړه بریالی راوتلی دی .
بله دا چې په دې کتاب کې د ژبپوهنې معاصر بین المللي علمي اصطلاحات ټول پر پښتو اړول شوي دي ؛ د دې اثر لویه ستونزه په همدې کې وه . زیار عقیده لري چې موږ باید د علمي اروپایي اصطلاحاتو لپاره د امکان په صورت کې او د پښتو د عمومي معیاري رغاونیز ظرفیت او د ویي پانگې پر بنا پښتو انډولونه ومومو او باب یې کړو . دا د ستاینې وړ کار دی ، خو باید له احتیاط څخه پکې کار واخېستل شي او د افراط جنبه ونه لري .
د زیار د دغه کتاب ځینې اصطلاحت او علمي نومونې ښایسته زیات عمر لري او په تېرو گرامري او ژبپوهنیزو اثارو کې راغلي دي ، خو زښت ډېر یې ښخي نوي دي . په دغو نومونو کې هم زیاته برخه اوس د ادبیاتو او ژبو په پوهنځي او د له پوهنتون څخه د باندې هم منل شوې او په دې علمي څېړنو او تدریس کې ورڅخه کار اخېستل کېږي . هیله کېږي چې کومه ورځ به پر دغو نومونو باندې نور هم غور وشي او کره او عام به شي ، یا دا چې تعدیل به ومومي . خو زه شخصاً د دغو ابتکارونو قدر کوم او زیار ته کور ودانی وایم .

د کتاب پر محتوا باندې په دې سریزه کې خبرې کول دغه وینا اوږدوي . زه هیله کوم چې دغه کتاب دې هرومرو او ډېر ژر په همدې ډول خطاطي او آفسیت چاپ شي . تر چاپېدو وروسته به حتماً کره کتنېورباندې شروع کېږي او لیکوال به یې په کلي توگه د څېړندود او محتوا دفاع وکړي . علمي کره اثار یو پر یو او ناڅاپي منځ ته نه راځي . علم هم ځانته د تکامل تاریخ لري . هره

علمي بريا ( دست آورد ) د ميلونو ميلونو انسانانو محصول وي ، شروع کېږي ، وده کوي نيمگړې وي ، تکميلېږي او مخ پر وړاندې حرکت کوي .
اوس چې د ثور پرتمين انقلاب او بيا د انقلاب له نوي او بشپړتيايي پړاو سره د پوهنې او فرهنگ او تکامل لار په ډېره گړندۍ او ښه توگه برابره شوې ده ، موږ د پوهنتون علمي او ذهني کارگران خپله دنده گڼو چې په دې بهير ( پروسه ) کې له خپلې وسې سره سمه بنستيزه او اساسي ونډه واخلو او پوهنه د خلکو خدمت ته وړاندې کړو .

د زيار له زيارونو او کور وداني سره سم – وړاندې د علم او فرهنگ د رښتيانۍ ودې پر لور !

پوهاند محمد رحيم الهام
د ژبو او ادبياتو پوهنځي د ژبپوهنې استاد

# ۱- څپرکی

## پښتو اوازپوهه ( *Phonemics* )

**۱-۱:** دا برخه د پښتو پښوییې (گرامر) هماغه برخه ده چې یوازې ارزښتناك غږونه (اوازونه - فونیمونه) څېړي. څنگه چې د هر اواز پیدایښت له دوو اړخو، یا په بله وینا، د زېږ ډول او زېږځي له مخې څېړل کېږي او جوتېږي، نو دلته له یوې خوا پر دوو گونو خوله ییزو او پزیزو وتوځو (۲-۳۲) سربېره پر زېږ ځیو (۲-۳۰) اوله بلې خوا پر زېږ ډولونو چې په څه زور او شدت یا د غږیزو غړو د پراخۍ او تنگۍ او داسې نورو اغېزو له مخې ترسره کېږي، رڼا اچول کېږي. دا دی، لومړی خپلواك او ورپسې بېواك اوازونه له بېلا بېلو ځانگړتیاوو سره ترکتنې لاندې نیسو.

### ۱-۲: د خپلواکو اوازو منځته راتگ او ځانگړتیاوې :

### ۱-۳: د ژبې د دریځ له مخې :

ژبه د خپلواکو د وینگ پروخت د خولې په دننه کې دوو لوریو ته خوځون کوي، یوله هوسا اکر (حالت)، یا په بله وینا ،له لاندېنۍ ژامې څخه د کومي لور ته، او بل د ژبې د بېخ له دریځ نه د

خولې مخنۍ برخې ته. په بله وینا، له وروستني دریځ څخه مخني دریځ ته چې بیا په دغو دوه گونو خوځېدنو کې درې بنې غوره کوي، په دې ډول :

## ۱-۳-۱: له کښته پورته :

د ژبې کښښنی، منځوال او پورتنی دریځ. کوم خپلواک چې د منځته راتگ پروخت یې ژبه کښښنی دریځ ولري، " کښښنی خپلواک " بلل کېږي، لکه : a - ā . که ژبه منځوال دریځ ولري " منځوال خپلواک " ورته وایي، لکه : e - o - ə او که ژبه پورتنی دریځ ولري، " پورتنی خپلواک " نومول کېږي، لکه : u - i .

## ۱-۳-۲: له وروسته مخ ته :

وروستنی دریځ، مخنی دریځ او منځنی دریځ. کوم خپلواک چې د منځته راتگ پروخت یې ژبه وروستنی دریځ ولري " وروستنی یا تیاره خپلواک " نومېږي، لکه: u - o - ā او که ژبه منځنی دریځ ولري " منځنی خپلواک " بلل کېږي، لکه: a - ə . او که ژبه مخنی دریځ ولري، " مخنی خپلواک ".نومول کېږي، لکه : e - i .

## ۱-۴: د شونډو د دریځ له مخې :

د راز راز پښتو خپلواک غږونو د وینگ پروخت د ژبې پر دریځ سربېره د شونډو بڼه هم په پام کې نیول کېږي، په بله وینا، راز راز بڼې غوره کوي . یا عادي او ناگرده بڼه یا د هر خپلواک له ځانگړتیا سره سمه په بېلا بېله کچه گرده او یا کړۍ بڼه نیسي . په دې توگه " ناگرد خپلواک " او " گرد خپلواک " ډولونه سره توپیرېږي. ناگرد، لکه : ā - a - e - ə - i او گرد، لکه : u - o .

## ۱-۵-۱: د لاندېنۍ ژامې د ټینگوالي او سستوالي له مخې :

د ځینو پښتو خپلواکو په رغېدنگ کې لاندې ژامه راکښېکلې او ترینگلې نیول کېږي او ټینگ اکر (وضع) لري، نوکوم خپلواک اوازونه چې په دې توگه ویل کېږي، ټینگ (tens) ورته وایي، لکه : e - o - ā . نور خپلواک چې د وینگ پر وخت یې لاندې ژامه سسته وي، " سست خپلواک " بلل کېږي، لکه: i - u - a - ə.

**۱-۵-۲**: بل توپیر یې دا دی چې کښېکلي یا ټینگ اوازونه تر سستو اوازونو اوږده ادا کېږي او د دې ځانگړتیا د ښوولو لپاره یې پر سر یوه پرته لیکه کښل کېږي . په پښتو کې چې څنگه سست " a " لنډ ادا کېږي او ټینگ " ā " چې اوږد ادا کېږي، دوه بېلا بېل فونیمونه دي، نو په فونیمېکې

ليکنه کې د تېنګ " ā " پر سر باندې د اوږدوالي د پيلامې ليکل اړين دي، خو د " e " او " o " د ليکلو لپاره په پښتو فونيمېکي ليکنه کې د اوږدوالي پيلامې ليکل په کار نه دي. مګر په فونېټېکي ليکنه کې بيا دا توپير څرګندول په کار دي.

## ۱-۶: د غږيزو تارونو د رېږد له مخې:

د سا (وچې) مرۍ په لوړه برخه کې حنجرې (چنغړك) دواړو دننه دېوالونو ته څلورو يا دوو جوړو مرغېرېو (عضلاتو) ځای نيولی دی چې له ډېرو ارتجاعي او نريو تارو څخه جوړ شوي دي. دغو تارو ته غږيز تارونه وايي. د غږونو د جوړېدو پروخت سا هوا د حنجرې له تشې نه د غږيزو تارونو له منځه تېرېږي. که د سا هوا د تېرېدو پروخت چې د غږ زېږ لپاره پر کار ولېږي، غږيز تارونه په عادي بڼه وي، په بله وينا، يو له بله سره لرې وي، هوا له تارونو سره بې له کوم ټکره تېرېږي او تارونه نه رېږدي، نو داسې غږونه منځته راځي چې هېڅ راز بنګهار او موسقيت نه لري. دا راز اوازونو ته " ناغږن اوازونه " وايي. که د غږ د زېږ پروخت غږيز تارونه سره نژدې راوړل شي، په بله وينا، د حنجرې تشه سره ورشي او د هغو مرغېرې سره راکېښکل شي، په دې توګه سا هوا تارونه پر رېږدا راوړي او داسې غږونه رامنځته کېږي چې بنګهار او موسقيت لري، دا راز اوازونو ته "غږن اوازونه" وايي. دا چې ټول پښتو خپلواك اوازونه د پيدا ايښت پروخت غږيز تارونه رېږدوي، نو له دې کبله ټول غږن دي ( الهام ۵۲ ).

**۱-۷:** معياري يا کره پښتو اووه خپلواك اوازونه لري چې د نومورو اړخونو، د غږيزو غړو د چارونو او اکرونو، په بله وينا، د ژبې د اکرونو، د شونډو د بڼې او د ژامې د سستوالي او تېنګوالي له مخې هر يو بېلا بېل تر کتنې لاندې نيسو:

**۱-۸: زور /a/** : کښېنی، منځنی، ناګرد او سست خپلواکغږ دی چې څه ناڅه لنډ ويل کېږي او زياتره د ګړو او ويپو په منځ او پای کې راځي، لکه: په اکر akár، کر kar، او پله plá کې.

**۱-۹: الف /ā/** : کښېنی، وروستنی، ناګرد او تېنګ واول دی. زياتره د ګړونو او ويپونو په منځ او پای کې راځي، لکه: په څار cār او – ورا wrā کې. د ګړ په سر کې يې ډېر لږ څرك ليدل کېږي، لکه: په آس ās، آر ār او آړ āṛ کې. د پارسي او نورو ويپو په سر کې چې ( ā ) وي، هم زياتره په پښتو کې پر ( a ) اوړي، لکه: په اواز awā́z - ارزو arzó - ازادي azādí کې.

**۱-۱۰: زورکی /ə/** : منځوال، منځنی، ناګرد او سست اواز دی چې بې له کندهاري ګړدود څخه په نورو ګړدودو کې زياتره يوازې د ګړ په منځ او پای کې راځي. په سر او پای کې لنډ او په منځ کې لږ څه اوږد ويل کېږي. په سر کې، لکه: اباګنۍ əbāganə́y، په منځ کې، لکه: مشر

( ə ) په پښتو کې زیاتره خولهxwlə - تره trə ، کشر kə́šər، mə́šər په پای کې، لکه : خجنی څپې جوړوي.

**۱-۱۱: اوږده ي /e/** : منځوال مخنی،.ناګرد او کېښکلی ( ټینګ ) اواز دی، دوه الوفونه لري . په سر او منځ کې ډېر اوږد او په پای کې لږ څه لنډ راځي . بېلګې یې دا دي : ډېر der، مستې masté، هېر her، شودې šodé او نور .

**۱-۱۲: لنډه ي /i/** : پورتنی مخنی او ناګرد، سست اواز دی .

**۱-۱۳: اوږد ( و ) /o/** : منځوال، وروستنی، ګرد او ټینګ اواز دی، چې څه ناڅه اوږد ویل کېږي . په پیل او منځ کې زیاتره د اوږده بلغږ او په پای کې زیاتره د لنډ بلغږ په بڼه راځي، لکه : په اور or ، کور kor او زانګو zāngó کې .

**۱-۱۴: لنډ ( و ) /u/** : پورتنی، وروستنی، ګرد او سست اواز دی، چې بې له دوه ګونو بلغږونو څخه یې لنډ دا ډېر دود لري، لکه : په اوم um، زوم zum، ټټو ṭaṭú، اوږد úğd، روږد ruğd او اوریځ uryáz کې .

**۱-۱۵: یادونه** : له /a/ پرته نور پښتو خپلواك د شومره والي ( کمیت )، یا په بله وینا، د اوږدوالي او لنډوالي توپیر کوم فونیمي توپیر نه، چې یوازې الوفوني (فونېتیکي) توپیر ګڼل کېږي . په دې مانا، چې که e ، ē ، i ، i ... وویل شي، په ګړونو او وییونو کې مانیز ونجون نه پېښوي . د څرنګوالي ( کیفیت ) د توپیر له پلوه چې واز یا تړلی وویل شي، یوازې په څېنو ګړدودو کې فونیمي توپیر رامنځته کوي، لکه : په ننګرهاري لیکونکی likúnke او لیکونکې likúnke کې چې په لومړي کې نرینه وروستاړی دی او په دویم کې ښځینه . همدارنګه د o ، ō کمیتي توپیر فونېمېك ارزښت نه لري . لنډ پارسي o یا پېښ هم په پښتو کې زیاتره اوږد ویل کېږي، لکه : ګومان ( ګمان ) او کله هم په wə اوړي، لکه : ګل gwəl .

## ۱-۱۶: د خپلواکو لښتيليك :

| د ژبې دريځ | د شونډو بڼه / د ژامې اكر | مخني ناگرد | مخني گرد | منځني ناگرد | منځني گرد | وروستني ناگرد | وروستني گرد |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پورتني | سست | i | | | | | u |
| | تينگ | | | | | | |
| منځوال | سست | | | ə | | | |
| | تينگ | e | | | | | o |
| كښېني | سست | | | a | | | |
| | تينگ | | | | | ā | |

## ۱-۱۷: د پښتو خپلواكو ( واولو ) خوله - تالوييز اوډون :

په خوله كې دننه د پښتو خپلواكو لاندېني څلور زنيز ( ذوذنقه يي ) اوډون په دې مانا، چې يا د ستوني خواته زېږون مومي، لكه u, o, ā ، يا د تالو د چت په منځ وميانه كې، لكه ə , a او يا د شونډو خواته، لكه i, e . په دې ډول لومړنيو درو ته وروستي تالوييز يا تياره خپلواك وايي او د ويمنيو دوو ته منځتالوييز يا نيم روښان او وروستنيو دوو ته سختتالوييز يا روښان خپلواك ځېنې خپلواني ژبې، لكه پارسي ( حقشناس ۱۰۷ ) ورته خپلواك څلور څنډېز اوډون لري او نورې ژبې درې څنډيز ( مثلثي )، اوږد څنډيز ( مستطيلي ) او داسې نور .




a: لنډ الف ( زور، فتحه )

ā: ( اوږد ) الف

u: لنډ ( و )

o: اوږد ( و )

i: لنډه ( ي )

e: اوږده ( ې )

ə: زوركى

یادښت:

( ū ) اوږد معروف ( و ) او ( i ) اوږده معروفه ( ي ) یوازې په کندهاري ګړدود اړه لري، په عربی او پارسی کې هرګوره ډېر راځي .

## ۱-۱۸ : تم بهواك اوازونه - بندشي - *Implosive* :

په پښتو کې له پور غږو ( ف، ق ... ) څخه پرته ( ۸ ) دي : ب – پ – ت – ټ – د – ډ – ك – ګ .

**۱-۱۸-۱ : ب /b/** : غبرګشونډیز، غږن تم بهواك دی، څه ناڅه سپك ادا کېږي او سایيزه ځانګړتیا نه لري . "ب" له آره "پ" غږ نه بېله ده، بېلګې یې دا دي: بر bar، برېت bret، خوب xob . " ب " د څپو، ګږو، وییو او ترنګونو په سر، منځ او پای کې راځي . کله کله له نورو بهواکو اوازونو سره یو څپیز غبرګ غونډونه جوړوي . په پای کې یې وینګ کله سست وي او کله ټینګ تم.

**۱-۱۸-۲ : پ /p/** : غبرګشونډیز – ناغږن تم بهواك دی . څه ناڅه پیاوړی ویل کېږي. د وینګ پروخت کله پیاوړې او کله کمزورې سایيزه لوښه هم لري . که چېرې په ویي کې تر پیاوړې خج لاندې راشي، نو سایيزتوب یې زیات وي او که تر سپك خج لاندې راشي، نو سایيزتوب یې څه ناڅه کم وي. په دې توګه نوموړی بهواك دوه بلغږونه لري . یو څه سایيز او بل یو څه ناسایيز - بېلګې یې راوروسته دي : پور، رپا، چپ، پړانګ . " پ " د څپو، ګږو، وییو او ترنګونو په منځ - او پای کې راځي او له ځینو نورو بهواکو او نیمواکو سره یو څپیز غونډونه جوړوي. د وییو په پای کې یې وینګ دوه ډوله دی، کله یې تموالی بېرته کېږي او کله نه.

**۱-۱۸-۳ : د /d/** : غاښیز غږن تم بهواك دی، څه ناڅه سپك ویل کېږي او سایيزه لوښه نه لري . " د d " له آره د " ت " غږن ډول دی، د څپو، ګږو، وییو او ترنګونو په سر - منځ او پای کې راځي. د وییو په پای کې په ازاد ډول کله له تموالي سره او کله بې تموالي ویل کېږي . له ځېنو نورو بهواکو او نیمواکو سره یو څپیز غونډونه هم جوړوي . بېلګې یې، لکه : درې dre، دود dod، دام dām او نور .

**۱-۱۸-۴ : ت /t/** : غاښیز - ناغږن تم بیواك دی، څه ناڅه درونډ ادا کېږي او لږو ډېره سایيزه ځانګړتیا لري، چې له دې پلوه دوه بلغږه لري - سایيز او نا سایيز - هغه دا چې که تر سپك خج لاندې راشي، سایيزه ځانګړتیا یې کمېږي . وینګ یې د وییو په پای کې کله تموالی لري او کله نه .

بیلګې یې، لکه : تریخ، تار - بېلتون - توت . " ت " د څپو، وییو، ګړونو، ترڼګونو په سر، منځ او پای کې راځي. کله له ځینو نورو بېواکو سره یو ځپیز غونډ جوړوي .

**۱-۱۸-۵: ټ /ṭ/** : اووریز - ناغړن - غبرګژبیز تمبېواک دی، درونډ ویل کېږي او څه ناڅه سابیز دی . د وینګ پر مهال یې ژبه راغبرګېږي، یا په بله وینا، راکړی کېږي او د ژبځوکې لاندې برخه له اووریو سره نښلي او بیا په خورا چټکۍ یوازې یو وار خوځون مومي . له دې لامله ورته یو واریز رپنده غږ هم ویلای شو . د څپو، ګړو، وییو او ترڼګو په سر، منځ او پای کې راتلای شي .

**۱-۱۸-۶: ډ /ḍ/** : اووریز - غړن - غبرګژبیز - تم بېواک دی، لږو ډېر درونډ ویل کېږي او څه ناڅه سابیز دی . "ډ" له آره د "ټ" غړن ډول دی، د وینګ پروخت یې ژبه راغبرګېږي او د ژبځوکې لاندې برخه له اووریو سره نښلي او بیا په ډېرې چټکۍ سره یوازې یو وار خوځون مومي، له دې کبله ورته یو واریز رَپنده غږ هم وېلای شو .

بېلګې یې په دې ډول دي . ډول ḍol، بډه báḍa، ډنډ ḍanḍ . " ډ " د څپو، ګړو، وییو او ترڼګونو په سر، منځ او پای کې راځي . د نورو ډېرو بېواکو غونډې ځپیز غونډونه هم جوړوي. لکه : ډیل، ډال او نور.

**۱-۱۸-۷: ګ /g/** : وروستی تالوییز ( نرم تالوییز) غړن تم بېواک دی، څه ناڅه سپک ادا کېږي او سابیز رنګ لري . "ګ " له آره د " ک " غړن ډول دی . بېلګې یې دا دي : ګرم gram، ګر gar، لرګی laráy . د څپو، ګړونو، وییو او ترڼګو په سر، منځ او پای کې راځي . کله کله له ځینو نورو بېواکو سره یو ځپیز خپلواک غونډونه جوړوي، لکه په ګرم gram کې . تموالی یې د وییو په پای کې تر لارغې له مخه زیاتره بېرته کېږي او کله بیا نه .

**۱-۱۸-۸: ک /k/** : وروستی تالوییز - ناغړن تم بېواک دی . وینګ یې څه ناڅه درونډ دی، لږو ډېر سابیزوالی لري او له دې مخې دوه (سابیز او ناسابیز) بلغړونه لري . هغه دا چې که د درانه خج په ځای کې راشي، نو سابیزوالی یې زیات وي او که د سپک خج په ځای کې راشي، نو سابیزوالی یې څه ناڅه کم وي - تموالی یې د وییو په پای کې تر لارغې له مخه زیاتره هیسته کېږي، خو که نورې څپې ورسره خجنې راشي، نو تموالی یې کله پاتې کېږي او کله نه. بېلګې یې دا دي : کور – کلک او نور. " ک " د څپو وییو او ترڼګو په سر، منځ او پای کې راځي د وینګ پروخت له ځینو نورو غړونو سره یو ځپیز غونډونه جوړوي .

## ۱-۱۹: مښښ یا مښلي ( احتکاکي *Fricative* ) بېواك اوازونه

په پښتو کې له پور غږونو ( ف - ع - ح او نورو ) پرته ( ۹ ) دي : س، ز، ش، ښ، ژ، ږ، خ، غ، ه .

**۱-۱۹-۱: س /s/** : اووریز ناغږن، مښلی بېواك دی . دا چې وینګ یې شپېلي ته ورته دی او د اډا کوڵو پروخت یې د ژبې برنی مخ څه ناڅه، غوڅه بڼه غوره کوي، نو ورته ( صفيري = ناوه يي ) اواز هم وايي . ( الهام، د پښتو ګرامر طرح ۳۵۵ مخ ) .

بېلګې يې دا دي : سر، سمسور، لاس او داسې نور . " س " د څپو، وييو، ګړو او ترنګو په درې واړو ځايو کې راځي . کله له ځېنو نورو بېواکو او نيمواکو په تيره له " پ " سره غونډونه هم جوړوي.

**۱-۱۹-۲: ز /z/** : اووريز، مښن، غږن بېواك دی . دې غږ ته هم ځېنې پوهان صفيري غږ وايي . له آره د " س : غږن ډول دی . بېلګې يې، لکه : زر zar، زيان zyān او نور . د څپو، ګړو، وييو او ترنګو په درې واړو ځايو کې راځي او ځېنې بېواك غونډونه جوړوي .

**۱-۱۹-۳: ش /š/** : اووری – تالوييز – ناغږن – مښن – صفيري بېواك اواز دی . بېلګې يې دا دي : شل – شمېر – کشر او نور . " ش " د څپو، ګړو، وييو او ترنګو په هره برخه کې راځي او په ځېنو ځايو کې بېواك غونډونه جوړوي .

**۱-۱۹-۴: ژ /ž/** : تالوييز غږن، مښن، صفيري بېواك اواز دی . بېلګې يې : ژبه žә́ba، ژوند žwand او نور .
" ژ " د څپو، ګړو، وييو او ترنګو په هره برخه کې راځي او په ځېنو ځايو کې بېواك غونډونه هم جوړوي .
**۱-۱۹-۵: ښ /x̌/** : دا غږ د پښتو په بېلا بېلو ګړدودونو (لهجو) کې په بېلا بېلو ډولونو سره ويل کېږي . په کندهار يا سوېل لويديزه پښتو کې يو سابيز – مختالوييز غبرګژبيز، ناغږن مښلی بېواك " š " دی . په سوېل ختيزه پښتو کې "ش" ويل کېږي . په ننګرهاری يا شمال ختيزه پښتو کې د " خ " غونډې ويل کېږي . په منځنی يا غلجي پښتو کې يو وروستی تالوييز ناغږن، مښلی، بېواك /x/ دی . د وينګ پروخت يې د ژبې وروستی برخه د تالو له وروستی برخې سره نښلي، او په دې توګه د سا هوا بهنګ د اواز په زېږ ځي کې مښنه او سولېدنه مومي، لکه : په بېلګو کې : پښتو، ښار، خوښ او نور .
د څپو، ګړو، وييو او ترنګو په هره برخه کې راځي . کله کله بېواك غونډونه هم جوړوي .

**۱-۱۹-۶: ږ /ğ/** : دا اواز هم د " ښ " په شان د پښتو په بېلا بېلو ګړدودونو کې په بیلا بېلو ډولو ویل کېږي . او له آره د " ښ " غږ نه بېله ده . " ږ " په سوېل لویدیزه پښتو کې مخنی تالوُییز - غبرګژبیز - موښن ناغږن " ž " دی . په سوېل ختیزه کې " ژ ž " او په شمال ختیزه پښتو کې د " ګ " غوندې ویل کېږي . په منځنۍ یا غلجۍ پښتو کې یو وروستی تالوییز غږن، مښلی، بېواك ğ دی چې د وینګ پروخت یې د ژبې وروستۍ برخه د تالو له وروستۍ برخې سره نښلي او په دې توګه د سا هوا بهنګ د اواز په زېږ کې مښنه او سولېدنه مومي، لکه په بېلګو کې : ږلۍ ğalə́y، ږدن ğdən، وربږ او نور .

د څپو، ګړو، وییو او ترنګو په هره برخه کې راځي، کله کله بېواك غونډونه هم جوړوي .

**۱-۱۹-۷: خ /x/** : ژبۍ ییز - مښلی - ناغږن بیواك اواز دی . د څپو، وییو او ترنګو په هره برخه کې راتلای شي او په ځېنو ځایو کې له ځېنو نورو بېوواکو سره غونډونه جوړوي . بېلګې یې دا دي : خپل xpəl، خیرن xirə́n، مخ məx، سخوندر sxwandə́r او نور .

**۱-۱۹-۸: غ /ɣ/** : ژبۍ ییز، غږن، مښلی بېواك دی . " غ " له آره د ( خ ) غږن ډول دی . د ژبنیو توکونو په هره برخه کې راځي، لکه په دې بېلګو کې : غوا، غر، روغ او نور .

**۱-۱۹-۹: ه یا ه /h/** : ستونیز - ناغږن - ساییز – مښلی بېواك دی. د څپو، وییو، ګړو او ترنګو په هره برخه کې راځي، خو په زیاتره کارېدنه کې پر خپلواك ( a ) اوړي او یا ګرد سره نه ویل کېږي . بېلګې یې دا دي : هاند، هېر، هېڅ، پوه او نور .

**۱-۲۰** : اوبلن یا مایع بېواك اوازونه، په پښتو کې ( ۳ ) دي : ل، ر، ړ l, r, r .

**۱-۲۰-۱: ل /l/** : اووریز غږن اړخیز ( lateral ) مایع بېواك دی . د ژبنیو توکونو په هره برخه کې راځي او له یو لړ بېواکو او نیمواکو سره یو څپیز غونډونه جوړوي. بیلګې یې دا دي : لمر، لمونځ، لیار، لېله، ملا، لوړ او نور .

**۱-۲۰-۲: ر /r/** : اووریز نااړخیز ( nonlateral ) رپاند بېواك دی . د وینګ پروخت یې د ژبې سر تالو ته ورنږدې کېږي او بیا ژبه څو پلا رپېږي . له همدې کبله دې غږ ته رپاند غږ وایي . د څپو، ګړو، وییو، ترنګو په هره برخه کې راځي، له ځینو غږونو سره بېواك غونډونه هم جوړوي، لکه په دې وروسته بېلګو کې: ورور، ورځ، وروسته .

۱-۲۰-۳: ړ /ṛ/ : غبرګڅبيز، غړن ړپېدونکی يا پړپېدونکی ( flapped ) بېواك دی . په وينګ کې يې د ژبې د څوکې لاندينۍ برخه راغبرګېږي او له اووريو او مخني تالو سره لګېږي او بيا ژر په چټکۍ سره کښته راخوشې کېږي . د ژبنيو توکونو په هره برخه کې راځي او لړو ډېر له ځېنو غړونو سره يو ځپيز بېواك غوندوونه جوړوي، لکه : پړانګ – ورړم – وياړ – شواړ او نور .

۱-۲۱ : پزيز ( انفي يا خيشومي ) بېواك په پښتو کې " ۳ " دي : م، ن، ڼ .

۱-۲۱-۱ : م /m/ : غبرګشونډيز غړن بېواك دی . د وينا د توکونو په هره برخه کې راځي او له ځېنو نورو غړونو سره بېواك غوندوونه جوړوي . بېلګې يې دا دي : مار، مرچ، لمر، مور، ورم، برم او نور .

۱-۲۱-۲: ن /n/ : غاښيز - ناغړن - پزيز بېواك دی . درې غوره بلغړونه يې په دې ډول دي : که تر غاښيز غړ " ت - د " وروسته راشي، غاښيز ( n ) ادا کېږي، لکه په بند، ژوند، سنتره کې . که تر واول يا اووريز اواز له مخه راشي، اووريز (n) ادا کېږي، لکه په انا، انار کې . او که تر وروستي تالوييز اواز ( ګ - ك ) له مخه راشي، نو بيا وروستی تالوييز ( ŋ ) ادا کېږي، لکه : په انګار، انګور، زنګون کې . پر بلغړونو سربېره " ن " کله کله پر ( م ) بدلېږي، هغه دا چې که تر "ب" له مخه راشي، لکه په تنبه، پونبه کې، نو تمبه، پومبه ويل کېږي .

۱-۲۱-۳: ڼ /ṇ/ : غبرګڅبيز - ناغړن - بېواك دی چې په وينګ کې يې د ژبې د څوکې لاندينۍ برخه راغبرګېږي او د تالو له مخنۍ برخې سره نښلي . سا هوا د پزې له لارې وځي، لکه په منه، بڼ او نورو کې . " ڼ " د ګړو، وييو او ترنګو په منځ او پای کې راځي، خو په سر کې يې نه . هرګوره د ځيو په درو واړو برخو کې راتلای شي، لکه په پڼه، اتڼ، خورلڼه، کيڼ او کڼه کې .
له نورو غړونو سره ډېر لږ بېواك غوندوونه جوړوي، لکه په دنيا danyā اوښاو کې .

۱-۲۲: تم - مښلي بېواك ( *Affricates* ) څلور ( څ، ځ، چ، ج ) دي .
دغه غړونه د غږ پوهنې ( اوا شناسۍ ) له پلوه داسې ترښتي غړونه دي چې هر يو يې له تم او مښلي غږ څخه جوړ شوی دی . خو د اواز پوهې ( Phonemics ) له مخې هر يو ځانته يو يوازينی اواز بلل کېږي .

۱-۲۲-۱ : څ /c/ : اووريز ناغړن تم - مښلي بېواك دی . وينګ يې داسې دی چې " ت " تم غږ او " س " مښلي غږ دواړه پر يوه وخت له يوه زېږ ځي څخه د يوه اواز (فونيم) په توګه راوځي، لکه: په څار، څاروي، څانګه، څړيکه، څوری، غوځ، لوځ، څلېر او نورو کې .

"ځ" د ژبنیو توکونو په هره برخه کې راتلای شي او له ځینو غږونو سره بېواکغونډونه جوړوي .

۱-۲۲-۲: ځ /j/ : اوریز - غږن - تم - منبلی - بېواك دی چې له غږ پوهیز پلوه له منبلی ( ز ) او تم ( د ) څخه ګډ جوړ شوی غږ دی، خو د اواز پوهې له مخې یو یوازینی اواز ( فونیم ) بلل کېږي او د ( ځ ) غږن ډول دی . بېلګې یې، لکه : ځان، ځای، ځاځ ( قهر )، ورځ، وریځ، ځمکه، ختیځ، لویدیځ، مینځ ... . "ځ" د ځپو، ګړو، وییو او ترنګو په سر، مینځ او پای کې راځي او له ځینو غږونو سره بېواکغونډونه جوړوي، لکه : ځوږ، ځوړند، ځوان ... .

۱-۲۲-۳: چ /č/ : اووریز یا زیږ تالوییز - ناغږن تم - منبلی بېواك اواز دی . په فونېټېکي ډول له منبلی "س" او تم (ت) څخه رغېدلی دی، خو د پښتو اواز پوهیز ( فونیمیك ) نظام له مخې د نورو تم - منبلیو غونډې د یوه یوازیني (افریکات) اواز بڼه غوره کوي . په وینګ کې "ت" او "س" له زېږځي څخه هممهال راوځي . د وییونو په پیل، پای او مینځ کې راځي او له ځینو غږونو سره یو ځپیز بېواکغونډونه جوړوي، لکه چکوړ ( د خوسي د راګرځولو غږ )، چوار (ځوړند) .

۱-۲۲-۴: ج /ǰ/ : اووریز یا زیږ تالوییز غږن - تم - منبلی - بېواك اواز دی . د سپېپوهې یا غږ پوهې له پلوه د ( ځ ) او ( د ) له ګډون څخه یو رغېدلی اواز دی، خو د پښتو فونیمیکي غونډال ( سېستم ) له مخې یو یوازینی اواز ( فونیم ) دی . په وینګ کې یې ( د ) او ( ځ ) له یو وتوځي او زېږځي څخه یو وار غبرګ راوځي او له آره د ( چ ) غږن ډول دی . د ساري په ډول که په سست دریځ، لکه پای کې راشي، د ( چ ) غونډې ویل کېږي، لکه په خوزج ( کار - بزرګ ومهم ) یا جاج کې . د ځپو، ګړو، وییو او ترنګو په سر، مینځ او پای کې راتلای شي . بېواکغونډونه یې، لکه : جوال، جرنګنی ( جرس )، جوار، جواری .

## ۱-۲۳: نیمواکغږونه - *Semi - Vowel*

هغو اوازونو ته ویل کېږي چې د خپلواکو او بېواکو اوازونو ترمنځ منځګړتوب کوي . په بله وینا، د دواړو ځانګړتیاوې لري . که د ځپې زړی ( هسته ) وګرځي، د خپلواك بڼه اخلي او که د ځپې زړی ونه ګرځي، نو د بېواك په بڼه څرګندېږي او د هغه چار پر غاړه اخلي . پښتو دوه نیمواکه لري : و = w او ی = y .

۱-۲۳-۱: و /w/ : خپلواك اواز - ناځپیز ( غیرهجایی )، یا په بله وینا، بېواکه بڼه ده . دا مانا چې که دغه نیمواك و - w د ځپې زړی شي، نو خپلواك کېږي او که نه، نو بېواك کېږي . دا نیمواك د ځپو، وییو، ګړو او ترنګو په هره برخه کې راتلای شي او په وینګ کې یې دواړه شونډې سره نژدې

کېږي، لکه په دې وروسته وییو کې : ور war ، خوږین xwr̩in، نو naw، ولور walwár،
خوله xwlə، شخوند šxwand ... .

د /w/ نیمواك د څپو په پیل او منځ کې راځي او په پای کې یې یوازې غبرګغږ (دیفتونګ) د دویم غږي په توګه . /w/ د یوه غبرګشونډیز اواز په توګه یې په وینګ کې دواړې شونډې سره نژدې کېږي، مګر د " ب " غونډې بیخي سره نه نښلي .

**۱-۲۳-۲ : ی /y/** : نیمواك اواز، د " ی " خپلواکه ناڅیزه یا بېواکې بڼه ده . دا مانا چې که د څپې زړې وګرځي، یو خپلواك اواز دی او د (ی = y ) په څېر ویل کېږي، خو که ګله د څپې د زړې په توګه ونه کارول شي او څپه جوړه نه کړي، نو یو بېواك اواز دی . په وینګ کې یې د ژبې اړخونه تالو خوااته هسك کېږي او د وینګ نورې ځانګړتیاوې یې له ( ي = i ) سره دومره توپیر نه لري . ( ی - y ) هم د ( و - w ) غونډې د څپو په پیل او منځ کې راځي او په پای کې یوازې د غبرګغږ دېفتونګ ) د دویم غږي په توګه راتلای شي، لکه په : یوه yaw، زیړ zyar او سړی saṛáy کې .

## ۱-۲۴ : غبرګغږونه - واکه های مرکب *Diphthongs*

پښتو غبرګغږونه د خپلواکو او نیمواکو اوازونو له پرله پسېوالي او یوځایوالي څخه منځته راځي . په بله وینا، هر پښتو غبرګغږ دوه فونیمي توکونه لري . لومړی توك یې خپلواك او دویم یې نیمواك وي . له همدې کبله پښتو غبرګغږونه د غبرګو اوازو په توګه څېړل کېږي، نه د پیوستو اوازو په توګه .

څنګه چې پښتو نیمواك ( ۱-۲۳ ) دوه دي، نو غبرګغږونه یې هم په دوو ډلو وېشل کېږي .

د و /w/ غبرګغږونه او د " ی = y " غبرګغږونه :

**۱-۲۴-۱**: د و /w/ غبرګغږونه په (لیکنی) پښتو کې له ورسره همرنګو غږونو ( u ، o ) پرته له نورو ټولو خپلواکو سره جوړېدای شي، بېلګې یې په لاندې ډول دي :

۱) iw - لکه په تریو triw کې .
۲) ew - لکه په لیو lew کې :
۳) aw - لکه په لو law کې .
۴) āw - لکه په پړاو paṛā́w او لګاو lagā́w کې :
۵) əw - لکه په کټو kaṭə́w او بګو bağə́w کې .

دغه ټول غبرګغړونه د وییو په پای کې راځي. " aw " او " āw " پر دې سربېره په سر او منځ کې هم راځي.

**۱-۲۴-۲**: د " ی - y " غبرګغړونه په ( لیکنۍ ) پښتو کې له ورسره همرنګو خپلواکو ( i ، e ) پرته له نورو ټولو خپلواکو سره جوړېدلای شي، دا لاندې بېلګې لري:

۱) " ay " لکه : په ایوان ( حیوان ) aywā́n، غویمه ɤwaymá، میره mayrá، میده maydá، پیل payl او وری wray کې.

۲) " āy " لکه : په ائینه āyná، ګای gāy ( ویی )، پای pāy، پایله pā́yla او ځای zāy کې.

۳) " əy " لکه : په نری narə́y، ډوډۍ ḍoḍə́y، ګولۍ golə́y، ډبلۍ ḍabalə́y او اوونۍ ownə́y کې.

۴) " uy " لکه : په خوي xuy، بوي buy او دوی duy کې.

۵) " oy " لکه : په زوی zoy، دوی doy ( قانون ) کې.

له دغو غبرګغړونو څخه ځینې یوازې د وییو په پای کې او ځینې یې په سر ، منځ او پای کې راځي.

**۱-۲۵**: د پښتو بېواکو ( Consonants ) او نیمواکو ( Semi-vowels ) د زېږځیو او زېږ ډولو لښتیلیک :

| زبرځی / زبر ډول | | غبرگشونډیز bi-labial | غاښییز dental | اووریز alveolar | غبرگڅییز retroflex | زیرتالوییز pre-palatal | نرم تالوییز post-palatal | ژبۍ-تالوییز uvular | ستونیز glottal |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ځپ exclusive | غږن | b ب | d د | | ḍ ډ | | g گ | | |
| | ناغږن | p پ | t ت | | ṭ ټ | | k ك | | |
| مښلي fricative | غږن | | | z ز | (ږ ẓ̌) | ž ژ | ğ ږ | γ غ | h ه |
| | ناغږن | | | s س | (ښ ṣ̌) (۱) | š ش | x̌ ښ | x خ | |
| تم مښلي affricate | غږن | | | j ځ | | j ج | | | |
| | ناغږن | | | c څ | | č چ | | | |
| اوبلن liquid | غږن | | | r ر | ṛ ړ | | | | |
| | ناغږن | | | l ل | | | | | |
| پزیز nasal | غږن | m م | | | | | | | |
| | ناغږن | | n ن | | ṇ ڼ | | | | |
| نیمواك semi-vowels | غږن | w و | | y ی | | | | | |
| | ناغږن | | | | | | | | |

(۱) ښ - x̌ او ږ - ğ په منځني کره ګړدود کې وروستي یا نرم تالوییز مښلي دي او د کندهار په ګړدود کې ساییز مختالوییز، چې ṣ̌ او ẓ̌ سېمبولونه لري او غبرګڅییز دي یا په بله وینا، ږ ( ẓ̌ ) او ښ ( ṣ̌ ) د غبرګڅییزو سېمبولونو په توګه په سوېل لویدیزو ګړدودو اړه لري خو ږ (ğ ) او ښ ( x̌ ) د نرم تالوییزو سېمبولو په توګه د منځنیو ګړدودو، یا په بله وینا د یوې - کره پښتو استازي کوي، که څه هم په ویاندۍ کې دواړه ډوله وینګونه دود لري، بې له دې چې د ښواکو ټاکلي شمېر (۲۹) له خرخشې سره مخ کړي.

## ۱-۲۶: پښتو غږیزه ( فونیمیکه ) ابېځې ( الفبې )

د یوې - کره پښتو د ۳۶ ګونو اوازونو ( فونیمونو ) غږیزه ( فونیمیکه ) ابېځې د وسمهالو ختیځپوهانو له خوا د شلمې پېړۍ له شلمو کلو راهیسې رامنځته شوې او بیا په ځانګړې توګه پر ۱۹۶۲ کال د استاد مورګنستیرنې په مشرۍ د یوې ډلې ختیځپوهانو له خوا د افغانستان د ژبپوهنې اتلس ( ALA ) لپاره پر کار لوېدلې ده . دغه ابېځې د پورتنیو ۳۶ اوازونو ښکارندویه ده، په دې مانا چې د هر فونیم لپاره یوه یووستوې نښه ( توری ) لري او په دې ډول یې د ټولو توریو شمېر ۳۶ ته رسېږي . اړوند لس غبرګغږونه ( دیفتانګونه ) هم له غبرګو توریو څخه رغېدن مومي .

کوم ادلون بدلون او زیاتون چې پښتو ټولنې پکې له ۱۹۷۶ ز . کال راهیسې راوستی او تراوسه یې د افغانستان د علومو اکاډمۍ په اډانه کې پر کار اچولي، د یوې کره پښتو له اواز پوهې Phonemics) ) سره سمون نه لري، لکه د ج ( j ) او ځ ( j ) سېمبولونه سره ونجول او د اوړدو او لنډو واولو توپیرول . تر دې چې نومور پښتو پوهاند هربرت پنزل د j - j د دغه بېځایه وبله ونج په اړه پر ۱۹۷۸ کال له مشیګن پوهنتونه لیکوال ته د پښتو څېړنو د نړیوال مرکز د سروال په توګه په خپل غبرګون کې داسې کښلي ول : د ج لپاره د j پر سر نګښې ( چنګك ) په دې لاسوند سرباري شوی دی چې د اړوند زېږځي ( تالو ) انځورنه کوي، نه د ځ د زېږځي ( او وریو ) .

پاتې شوې له ( ā - a ) پرته د نورو واولي سېمبولو پرسر د اوږدوالي نښې، چې دا بیا د کره پښتو د اوو ( ۷ ) خپلواکو شمېر نژدې دوه ګرایه کوي، ان تر دې چې د دودیزو ژبپوهانو په پرماینښت د عربي زېر او پېښ خیال پکې هم ساتل شوی چې له پښتو اوازپوهې سره هېڅ اړخ نه لګوي . په کوشنۍ ترینو جوړو زباد شوي پښتو اوږد ( و o ) او اوږده ( ې e ) بې له هغې د اوږدوالي نښو ته اړتیا نه لري، ځکه چې په وړاندې یې نور زیات لنډ څېلونه ( بلغږونه ) ګرد سره نشته او د لنډ (و u) او لنډې ( ي i ) اوږده وارینټونه بیا یوازې ګړدودي ارزښت درلودای شي، لکه په یو شمېر سوېل لویدیزو او سوېل ختیزو ګړدودو کې او دغلته هم کوم توپیر ( contrast ) نه شي رامنځته کولای، ځکه ترمنځ یې کوشنۍ ترینې جوړې نه پیدا کېږي . هرګوره، د لیکوال له خوا د یوه لړ دیني، اداري یا علمي - فرهنګي عربي نومونو د منل شوي لیکدود په پام سره تر آر لیکلړ لاندې اتګوني عربي توري په احتیاطي توګه هم وړاندې شوي ول .

دا هم د یوې - کره پښتو ټولو ۳۶ خپلواکو او بېواکو او دوو غبرګغږونو ( ی، ۍ ) د سېمبولونو (توریو ) لیکلړ :

| غربیز | دودیز | نوم |
|---|---|---|
| a | (فتحه، ع) | زور (فتحه) |
| ā | آ | الف |
| b | بې | بې |
| c | څ | څې |
| č | چ | چې |
| d | د | دې (دال) |
| ḍ | ډ | ډې (ډال) |
| e | ی | اوږده ې (مجهوله ې) |
| - | ə | زورکی |
| g | گ | گې (گاف) |
| ğ | ږ | ږې (گغې) |
| ɣ | غ | غې (غین) |
| h | ه (ح) | هې |
| i | ي | لنډه ي (معروفه ي) |
| j | ځ | ځې |
| ǰ | ج | جې (جیم) |
| k | ك | کې (کاف) |
| l | ل | لې (لام) |
| m | م | مې (میم) |
| n | ن | نې (نون) |
| ṇ | ڼ | ڼې (نوڼ) |
| o | و | ووٴ اوږد و (مجهول و) |
| p | پ | پې |
| r | ر | رې |
| ṛ | ړ | ړې |
| s | س (ث، ص) | سې (سین) |
| š | ش | شې (شین) |
| t | ت (ط) | تې |
| ṭ | ټ | ټې |
| u | و | لنډ (و) (معروف و) |

| | | |
|---|---|---|
| w | و | ېږواك ( يا معدوله و ) |
| x | خ | خې |
| x̌ | ښ | ښې |
| y | ی | ېږواکه ( ی ) |
| z | ز ( ض، ظ ) | زې |
| ž | ژ | ژې |
| ay | ی | زورواله ی |
| əy | ۍ | زورکیواله ۍ |

## ۱-۲۷: کوشنۍ ترینه جوړه *Minimal Pair*

ژبه یو داسې غونډال سېستم دی چې هره نښه (سېمبول) یا توك (عنصر) یې له بل هر بل هغه سره توپیر لري . په دې توگه که وغواړو، د یوې ټاکلې ژبې د یوه توك آروالی، یا په بله وینا، د هغه ژبنی ارزښت جوت کړو، نو له خپل ژبني چاپېریال سره یې له بل یوه داسې ژبني چاپېریال سره تر کتنې لاندې نیسو چې دواړه چاپېریاله نور له هره پلوه ورته وي، مگر یوازې یو توك یې ورسره بډوالی (تقابل) جوړوي او تر دا منځ مانیز توپیر راولي، نو بیا وایو چې په دغو دواړو چاپېریالو کې نوموړي دوه توکه سره بډوالي یا مخامخی (تقابل) جوړوي، یا په بله وینا ، که دغه دواړه توکه له دواړو چاپېریالو ځخه واېستل شي، پاتې چاپېریالونه سره یو راز کېږي. دغسې دوه توکه (کوشنۍ ترینه جوړه ) بلل کېږي.

د اوازونو ( فونیمونو ) کوشنۍ ترینه جوړه، لکه : /پ/ : /ت/ په دوو چاپېریالو (وییو)، " پور " او " تور " کې . ځکه دلته وینو چې له یوه یوه اواز پرته نور اوازونه سره په دواړو وییو کې یو راز دي او یوازې په همدې توپیرېږي چې په یوه کې /پ/ ده او په بل کې /ت/ .

په همدې ډول وایو چې /پ/ او /ت/ دواړه د پښتو ارزښتناك غږونه (فونیمونه) دي. په دغه جوړه کې هممهال اوږد و ( o ) او ر ( r ) هم همداسې زباد مومي . دلته کېدای شي، همدغه غږونه له ټولو پښتو غږونو سره جوړې رامنځته کړي خو یوه جوړه یې اړین بنسټیز آړ (شرط) گڼل کېږي . د ساري په ډول ژ / ږ د سرغږونو په توگه ښایي له یوې جوړې پرته بله ونه لري، لکه : ژوی، ږوی (غانبی، کوتل : گواه یا شاهد) که دا جوړه هم نه وای، نو دواړه پر یوه یوازیني ارزښتناك غږ (فونیم، اواز) شمېرل کېدل، هغه هم پر /ژ/ ځکه له /ز/ او نورو ډېرو غږونو سره هم جوړې جوړولای شي او پر دې سربېره په سوېل لویدیځ کې هم زیاتره " ږ " د " ژ " ټِل غږ دی. دا چې پښتو واولونه له الف (ā) پرته نور اوږده واولونه (ē ، i ، ō ، ū ) نه لري، په همدې لاسوند چې خپلمنځي او نورې

جوړې نه شي رغولای. ټول (۳۶) واړه کره پښتو اوازونه په همدې توګه جوړې منځته راوړي او زباد مومي.

د ګړونو کوشنۍ ترینه جوړه، لکه : پلار او مور په پلارواکۍ او موروواکۍ کې . او همداسې نور لوی لوی ژبني یوونونه (واحدونه) (اولریښ ۷۳ او ماریوپای ۱۵۴).

## ۱-۲۸: کړواوونه ( تمرینونه ) :

۱: پښتو اوازونه پر کومو سترو ډلو وېشل کېږي، په غرېزه ابېڅې یې ولیکئ.
۲: پښتو ټول څو اوازونه لري او خپلواك او بېواك یې سره څنګه توپیروئ ؟
۳: د خپلواکو په زبېږ ډول کې د ژامې دریځ څو ډوله دی، ویې نوموئ !
۴: زورکی " ə " د ژبې او شونډو له پلوه څه ډول خپلواك دی ؟
۵: زور او الف ( ā – a ) سره د زبېږ له مخې څه توپیر لري ؟
۶: ایا په پښتو کې د خپلواکو لنډوالی او اوږدوالی کوم فونیمیکي توپیر پېښولای شي ؟
۷: پښتو بېواك د زبېږ ډول له مخې پر کومو ډلو وېشل کېږي ؟
۸: په معیاري پښتو کې " ږ " او " ښ " څه ډول اوازونه دي او په کندهاري او ننګرهاري ګړدود کې یې زبېږ ډول او وتوځی څنګه توپیروئ ؟
۹: ځ، څ، خ، ج، چ، غ، ه، ږ او ژ په بېواکغونډونو کې وښیاست !
۱۰: پښتو د خپلو بېواکو اوازونو لپاره کوم کوم وتوځي لري ؟
۱۱: پښتو غبرګغږونه څنګه جوړېږي، یوه بېلګه یې ولیکئ ؟
۱۲: ( ب = b ) په " بر " او " خوب " کې څه توپیر مومي ؟

# ۲ - څپرکی

# پښتو گړپوهه - صرف - *Morphology*

گړپوهه د پښتویي گرامر هغه برخه ده چې د گړونو ( مورفیمونو ۱ - ۳۲) له رغاونې، اوړون (گردان) او د هغو له ځېلونو ( ډولونو ) سره کار لري .

**ځانگې** : گړپوهه د گړونو د ډولونو له مخې پر دوو ځانگو وېشل کېږي : یوه د اوړېدونیو (گردانېدونکیو ) گړونو ځانگه او بله د ناوړېدونیو گړونو ځانگه . د اوړېدونیو گړونو ځانگه بیا دوې برخې رااخلي :

۱ : نوم گړپوهه .

۲ : کړ گړپوهه .

# لومړۍ برخه :

# نوم ګړپوهه

په نوم ګړپوهه کې د نومونو ډولونه او د هغو اوړونونه ( ګردانونه ) څېړل کېږي .

**نوم** : هغه ویی دی چې د کړ په توپیر بې له زماني اړیکي د راز راز څیزونو او ښکارندو (پدیدو) څرګندونه کوي، لکه: تېره، لرګی، سړی، سړیتوب، ښایست، روغ، روغتیا، روغوالی، زه، ته، دی، یو، دوه ....

## د نومونو ډولونه :

نومونه پر څلورو ډلو ( ګروپونو ) وېشل کېږي :

۱: څیز نومونه ( اسمه ) .
۲: ستاینومونه ( صفات ) .
۳: شمېر نومونه ( اعداد ) .
۴: نومځري ( ضمایر ) .

## د نوم اوړون اړخونه :

نومونه په ټولیز ډول له درو اړخونو ( وجوهو ) له مخې اوړون مومي، لکه : نوږی، ګڼه، پېر، خو څلورم ډول ( نومځري ) یې پر هغو سربېره د یو بل اړخ ( وګړي ) له مخې هم ګردانېږي . په دې لړ کې یو شمېر نومونه، په تېره نرینه څیز نومونه او ستاینومونه، نه یوازې بېلا بېلې پایلې راخپلوي، بلکې له منځخپلواکونج Ablaut سره هم مخامخېږي .

**لومړی - نوږی ( جنس )** : چې نوم نارینه دی، لکه ګیدړ، سور، یا ښځینه، لکه : ګیدړه، سره .

## الف - د نرینه نوم نښې یا پایلې :

دا وروسته نومونه زیاتره نرینه دي :

۱- چې وروستی اواز ( فونیم ) یې ببواک ( کنسوننټ ) وي، لکه : کور، ختیځ، هلك، غټ، ویاړ، هیواد ، غورځنګ، اورمېږ، لاس، پټ، چرګ ؛ ببدوده (مستثنی) زیاتره د خپلوانو نومونه، لکه :

خور، مور، ترور، نږور، ندرور. یا هغه ښځینه نومونه چې په وینګ کې زیاتره خپل پای خپلواك غورځوي، لکه : ستن، درغن، مېچن، قالین، منګول، خپړ، څنګل، لار، ورېندار، تندار، کټو، لوښت، ترخځ، ورځ، اوریځ . ډز ( ډزې ) او مټ (مټې) یا موټر (موټرې)، وزر ( وزرې )، لښکر ( لښکرې ) او داسې نور ناکره یا ګردودي بلل کېږي .

۲- له زورکي والې "ی" (ðy) او زورکي وال "و" (ðw) پرته هر نوم چې په غبرګغږ (ډیفتونګ) پای ته رسیدلی وي، نرینه دی، لکه : لرګی، سړی، وری، اړیکی، ځای، زوی، لوی، څارندوی، پیژندوی (مشهور)، بوي، خوي، کنډو، لو، جړاو، پړاو، کړاو، نیاو، لیو، تریو . اړیکنومونه هم په همدې ډله کې راځي، لکه : کابلی، ننګرهاری ...

۳- هغه نومونه چې په زورکي پای کېږي، لکه : تره، وراره، پسه، زړه، لېوه، مرغه، کارغه . بېدوده، لکه : خوله، ویاله، ترله، میره، لارغه ( وقفه )، بلینډه (مشعل) ...

۴- هغه نومونه چې په لنډ " و " ( u ) پای ته رسي، لکه : چاکو، ټټو، یابو، ډېبو، اردو ( پوځ )، لاټو، ماټو، لاهو، کاهو، ماکو، پټو، پېښباوو ( مقلد )، ساندو ( باجه )، ساهو ( ازاد )، بازو .

۵- په لنډه " ي " ( i ) پای کېدونکي نرینه نومونه یوازې په څار نومونو اړه لري، لکه : درزي، موچي، ټوکي، چرسي، بنډاري، پنډي، جوالي، ربابي .
۶- ځینې کوشیننومونه چې پر اوږده " و " ( o ) پای مومي، لکه : کاکو، لالا، بلو ( بلال ؟ )، جمالو، ګلو، سدو، جانو ....

## ب - د ښځینه نوم پایلې :

دا وروسته نومونه زیاتره ښځینه نښې ( پایلې ) لري :
**۱- له زورکي او لنډ ( و u ) پرته هغه نومونه چې په خپلواکو ( واولو ) پای ته رسېدلي وي، لکه :** ادې، ناوې، خوره ولې، ښادي، وروري، بیاتي، وداني، وراني، پېه، منه، پزه، ښځه، رڼا، برېښنا، بېدیا، لوړتیا، نڅا، څلا، ورا، خندا، غلا، ملا (کمر)، شا، ویسا، پښتیانا، آریانا، پیشو، زانګو، درخو، ببو، پېلبو، شادو، بیزو او ... بېدوده یو لړ هغه نومونه راځي چې په خپلوانو، ورهګرو او یا هم په ځېنو پورویيونو اړه لري، لکه : دادا ( پلار )، ماما، کاکا، لالا، بېرا، بډا ( مقابل )، بوډا، بومیا، هوسا، جلیا، ملیا، کوټا، رونډا، سبا، مېلمه، کوربه، غوبه، لېربه، لاربه، ساده، بوده، څره، جره .
**۲- د زورکي وال و (ðw ) په غبرګغږ پای کېدونکي نومونه،** لکه : کټو ( کټوه )، بړو ( بړوه )، غرورړ ( کروکودیل یا تمساخ ) .

۳- په زورکي والې " ۍ " (غبرگغږ) پای کېدونکي نومونه، لکه : ډوډۍ، هوسۍ، کبلۍ، ترۍ، ښځۍ (ناوه)، شړۍ، مړۍ، اډۍ (کرد خورد)، ډۍ (کلک دنده)، متۍ، گدۍ، کڅۍ، نجلۍ، مخۍ، ننکۍ، شپېلۍ ....

## دويم - د گڼې ( عدد ) نښې :

**الف** - د نرينه گڼې ( جمعې ) نښې يا پايلې په دا وروسته ډول دي :

**۱- ان** : زياتره هغه نارينه نومونه ډېرگړي ( جمع ) کوي چې بېواکپاتی او سا والا وي، لکه : پړانگان، هلکان، مچان، کبان، چنگاښان. ځينې خپلواك پای نرينه نومونه، لکه : لېوان، ټټوان، اسان ( اسونه )، پسان ( پسونه ) . بېدوده، لکه وړيان چې يوگړی ( وړی ) يې ډېر لږ دود لري، خو لښتيان، شونډان ... له کره پښتو سره هېڅ اړخ نه لگوي . د ( لړمانان، امراگان يا امراگانان ) غوندې د ډېرگړي هسې د ډېرښت يا سپکاوي لپاره راځي او معياري ارزښت لري. موټرې، هوټلې، لښکرې ... هم همداسې درواخله .

**۲- ونه** : زياتره بېواکه بې سا نرينه نومونه ډېرگړي کوي، لکه : سيندونه، ډنډونه، منېزونه، کتابونه، لاسونه، نسونه، سرونه، پلونه، وزرونه، پلوونه، خوږونه، تويونه، ځايونه، پړاوونه، تيونه ( تي ) خورييونه، وييونه ( ويي ) .

ځينې خپلواکپای نرينه نومونه، لکه: ترونه، وربرونه، زړونه. ځينې سا والابېواکپای نرينه نومونه، لکه: پلرونه د پلاران يا اسونه د اسان، پسونه د پسان ترڅنگه .

**۳- له منځ خپلواکونج سره، لکه د ټوپك او دښمن زورونه پر زورکيو اوښتل .**

**۴- منځ خپلواکونج ( Ablaut ) + زورکی (ə )** : دا ډېرگړی ډول هغه نرينه نومونه رانغاړي چې په يوگړې بڼه کې يې ( و، ی ) راغلي وي او د ډېرگړي کېدو لپاره يې دغه منځ خپلواك پر (زور) يا (الف) اوړي او همزمان ورسره زورکي - پايله هم ملگري کېږي، لکه : پښتون - پښتانه، وروڼ - ورڼونه، لمونځ - لمنځونه، زيږ - زږه (ږزاږه )، تريو - تروه (تراوه)، تريخ - ترخه (تراخه)، مغز - ماغزه، لور - لرونه . يا a پر ā، لکه وزر - وازره .

**۵- زورکی (ə )** : ځينې يو څپيز او دوه څپيز نرينه چې له دوو او درو بېواکو او يو يا دوو منځ خپلواکو څخه رغېدلې وي، ډېرگړي کوي، لکه : خره، غله، دښنه، مله، مره .

**۶- لنډه " ي " ( i )** : هغه نومونه ډېرگړي کوي چې پر نرمه يا زوروالـه "ی" ( ay ) پای وي، لکه: لرگي، سړي، ځلمي، لښتي، غويي، ويي، توکي، پيـاوړي، ژوي، گوي (ږوي = غائبي)، روي،

ږوي (شاهد)، کوي (چيچك). د دې وروستارې په همچارې "ان" او "ونه" هم لړو ډېر راځي، لکه
ځلميان، غويان، تيونه، وييونه، خورييونه.

**۷- يان** : د "ان" بلګړ دی او ځينې غبرګغږپای او خپلواکپای نرينه نومونه ډېرګړي کوي. لکه
ملايان، ميرزايان، اشنايان، کالخوايان، بډايان، خدايان.

**۸- ګان** : چې د "ان" همچاری "بلګړ" دی او ځينې خپلواکپای نرينه نومونه ډېرګړي کوي، لکه
سنډاګان، لاټوګان، کدوګان، ټټوګان، ماماګان، کاکاګان، لالاګان، ببراګان، بډاګان، بوډاګان،
ډيپوګان ... د امراګان يا امراګانان غوندې بيا ځلي ډېرګړي بڼې، لکه له مخه چې وويل شول. د
ډېربنت يا سپکاوي لپاره راځي او معياري ارزښت نه لري.

**۹- يو شمېر نرينه نوړنومونه** چې يوګړی نه لري او تل ډېرګړي کارول کېږي. هم په دې ليکه کې
راځي، لکه : غنم، جوار، زر، درمل، تېل، نانځړه، غوړ، غوړي، چرس، بنګ، ويتامين،
واکسين، انتي بايوتيک ...

**۱۰- "ي" ( i ) پای - ( چار - ) نومونه** په ( آن ) ډېرګړي کېږي، لکه : دوزخيان، موچيان، دوبيان،
ټوپکيان، چرسيان ...

**۱۱- له ښځينه نوړي سره ګډ ستاينومونه**، لکه : زور - پای ببچاره، بې موره، ببوزله، ببکوره،
ښايسته، ډاډه (مطمين)، ډاډه (ستې)، څړه، جره، ساده، بوله، بوده. يا الف - پای : الونيا، لګيا،
هوسا، جليا ... يا لرغوني نومونه : آريا، يما، کنيشکا، اهورا، مزدا، بودا ....

## ب - د ښځينه ګڼې ( جمع ) نښې :

**۱- اوږده ( ې )** : هغه ښځينه نومونه جمع کوي چې په "زور" يا لږو ډېر "زورکي" پای ته رسي، لکه
منې، پزې، خولې، ويالې، وړانګې، څانګې، سانګې (نبزې)، پانګې، ډبوې، شونډې، سکروټې،
پلې، ټوکې ټکالې، ملې، غلې، خرې او ....

**۲- زورکي واله "ۍ" (əy)** : هغه ښځينه نومونه ډېرګړي کوي، چې په لنډه (ي) پای ته رسيدلي
وي، لکه: ودانۍ، خپلوۍ، ښادۍ، ناروغۍ، خوښۍ، نيکمرغۍ.

**۳- وې "we"** : هغه ښځينه نومونه ډېرګړي کوي چې په "الف" يا اوږده "و" پای ته رسي، لکه
ژړاوې، خنداوې، ملاوې، نڅاوې، زانګووې، پېلبووې، ښکالووې، پېرزووې.

بل ناکره انډول يې "ګاني" هم راځي، لکه: شاګاني، نڅاګاني، بربښناګاني، زانګوګاني، بيزوګاني، تندارګاني، ورندارګاني، ندرورګاني .... کره بڼې تېنداري، ورېنداري او ندرندې يا ندروريانې راځي .

**۴- آنې** : زياتره هغه ښځينه نومونه ډېرګړي کوي چې پای ته يې لنډه "ي" راغلې وي، لکه: بيبيانې، شاديانې او د يوې بلې پايلې د انډول په توګه، لکه: دوبيانې، مزدورانې، ترورانې (تريندې)، مورانې (ميندې) ... چې دومره کره نه برېښي .

**۵- يندې** : هماغه ښواکپای خپلوان نومونه ډېرګړي کوي چې ورسره لنډون مومي، لکه : ميندې، خويندې، تريندې، ندريندې، نږيندې .

**۶- نشت يا صفر دا مانا چې په زورکي واله ( ی ) پای نومونه بې له کومې جولښزې پايلې د ډېرګړي په توګه هم راځي، لکه: کرکی، بجلی، ډوډی، څپلی، ټټری (واسکټ) . بلګړ يې "-يانې" هم يو څه دود لري، خو کره نه ګڼل کېږي، لکه: کرکيانې، بجليانې، کوچيانې، موچيانې، کبليانې، کوشنيانې (کوچنيانې)، کچنيانې، جنکيانې، ترورياني (تروری)، ډوډيانې، څپليانې، ناروغيانې ....**

ښېدوده ( مستثنی )، لکه : نجونې او نجونه، لونې او يونې .

**۷- يو لړ نور نه شمېرېدونکي نوږ نومونه هم ښځينه ډېرګړي دي، لکه : اوربشې، متيازې، اوبه، شنې، نکريزې .**

## يادښت :

۱- په پښتو کې ټول خپل او پردي ټبرنومونه ډېرګړي کارول کېږي، لکه : سهاك، غرغښت، سړبن، مومند، کورد، بلوڅ، تاجيك، هزاره، اوزبك، قرغز، عرب، يهود، اسرائيل، بړسك، ځكات، ... چې د يوګړي لپاره هم په همدا يوه بڼه کارول کېږي. يوازې يوګړی - پای هغه د يوه او ډېرو توپير کوي، لکه : ښټنی - ښټني، شينواری- شينواري ... پښتون - پښتانه يا ګدون - ګدانه خو له آره دا توپير لرلی دی .

۲- ټول ژبنومونه په دې ښځينه راځي چې په ښځينه پايلو ( - و، - ي ) پای ته رسي.

۳- ډېرګړي يا دوګړي پورويېونه، لکه: عربي معلومات، اخلاق، بين النهرين ... په پښتو کې ډېر ګړي بلل کېږي .

**درېیم - پېر یا حالت ( *Case* )** : چې نوم پخپل چاپېریال (غونډ یا غونډله) کې څه حالت لري، لکه پلوشې ډوډۍ وخوړه، د پلوشې ورور ناروغ دی، له یوه لاسه ټك نه خېژي . دلته گورو چې ( پلوشه - یو - لاس ) څنگه خپل حالتونه او بڼې بدلوي . نومپېر له آره یوه غونډله پوهیزه (نحوي ) سکالو گڼل کېږي .

د پېر نښې هماغه پایلې یا وروستاړي دي چې د نوم په پای پورې نښلي . له لومړنیو یاد شویو آرو یا رښتینو درو - پېرونو پرته نور پنځه پېرونه څکه په غبرگو لندیو کې نیول شوي چې آر یا رښتیني پېرونه نه، بلکې اړوندو پېرونو ته ورته بدلونونه، یا ناسیده دي چې د سربلونو او اوستربلو په ملتیا په نومونو کې رامنځته کېږي .

**۱ - له کړند پېر ( *Nominative* )** سره له یو لړ شمېر ناوړیدونو یوگړونومونو پرته نور ټول نوم ډولونه بېلا بېلې اوښتې بڼې راخپلوي . کړند پېر (فاعلي حالت) په هغه کړند. ( فاعل ) اړه لري چې د تېر مهال لېږند یا کړي یا "حکمی متعدی" کړ ترسره کوونکی وي، لکه : یوه سړي یوه ښځه ولیده یا یوې ښځې یو سړی ولید . دلته ( یوه – سړي ) او ( یوې ښځې ) کړند پېر لري .

۲ - **بلنپېر یا ندائیه حالت ( *Vocative* )** په هغه نوم اړه لري او بدلون ورکوي چې غږ ورته کېږي او په یوگړي (مفرد) ډول اوړیدونی وي، لکه : ( یه ) هلکه ! یه پښتانه ! یه تربوره یا تربره ! یه مېرمنې ! یه سړیه ! یه ښارندویه ! یه نیکمرغۍ ! یه پښتنو ! یه مېرمنو ! .

په پښتو کې له لرغونو انگونو هندو اروپایي نومپېرونو څخه کړند پېر ( فاعلي حالت Nominative ) او بلنپېر ( ندائیه حالت Vocative ) لړو ډېر او لنډ کړی (Accusative) خورا لږ ژوندي راپاتې دي چې آر یا رښتیني اوښتي پېرونه (Oblique Cases) بلل کېږي . پاتې نورو یې خپل چارونه، سربلونو او اوستربلونو ته پرې اېښي دي . په پښتو کې د یوه نوم د لنډ کړي (Accusative) نومپېر څرك یوازې په وسمهالکړ کې له "ما" او "تا" څخه لگېږي، لکه : ته ( ما ) ښارې، زه ( تا ) ښارم .

**۳ - لر کړی پېر یا باواسطه مفعولي حالت** : لکه زمرك زمري ته لیکانی (قلم) ورکړ، غرزي ماته روسي ژبه رازده کړه، سنك ببري ته خبره وکړه . په دې غونډلو کې " زمري " " ما " او " ببري " دریواړه نومه لر کړي پېر ورته اوښتی پېر لري .

**۴ - " لوښن پېر یا الي حالت "** : دا مانا چې یو نوم د یوه کړن وسیله شي، لکه بیاتي، لیکانی او کاشوغه په دې غونډلو کې : توریالی په بیاتي ژوبل شو، بریالی په لیکاني لیك

وکېښ، ګلخانه په کاشوغه ډوډۍ خوري . په دې ډول "په" سربل دغه اوښتون رامنځته کوي . که له "په" سره "سره" اوستربل مل شي، بيا نو "کاشوغه" او ډاسې زور - پای ښځينه دغه پايله پر "- ې" اړوي . او يا هم که "له - سره" جوړه دغه اوښتني ( انسترومنتال ) پازه پرغاړه واخلي .

**۵ - " تولپېر يا اضافي حالت "** : هغه نوم چې يو څه ورپورې اړه ولري، تولنوم (مضاف اليه) ګڼل کېږي او تولپېر (اضافي) پېر (حالت) لري، لکه : د ويالې اوبه ښې دي، د زمري کور ښکلی دی، د اوريځې څادر راخپور شو . دلته (ويالې، زمري او اوريځې) تولنومونه دي، يا په بله وينا، د تولي سربل " د " او د ( د کره - لپاره ) تراغېز لاندې دغه درېواړه نومونه له بدلون سره مخ شوي دي .

**۶ - " وتون پېر، يا منشايي يا مفعول منه حالت "** : دا مانا چې يو نوم د کار پيليځ ( منشه ) ګرځېدلی وي، لکه له کندهاره راغلم، له ښو ښه زېږي - له بدو وابنه زېږي . دلته (کندهاره - ښو او بدو) وتون پېر لري .

**۷ - " تون پېر يا ظرفي يا مکاني او زماني حالت "** : همدارنګه مفعول اليه يا استقامتي او معيتي حالت، هغه نوم چې د يوه کار ظرف وګرځي او يا پرې يو کار اړه پېدا کړي تولنوم بلل کېږي او په دې توګه بدلون مومي . دغه بدلون د ( په – کې )، ( پر - باندې )، ( پر - سربېره )، ( تر - لاندې )، ( تر - پورې )، ( سر - ته ) زېږنده ده، لکه : په کوهي کې، پر غره باندې، پر ګټ سربېره، تر زنې لاندې، تر غرمې پورې، تر مازيګره، تر کابله، په تياره پسې رڼا ده ...

**يادښت** : که يو نوم په کوم پورتني پېر کې خپلې ښې ته بدلون ورکړی وي، اوښتی نوم بلل کېږي، يا په بله وينا، هغه نوم اوښتی پېر (مغېره حالت) لري او که اوښتنه يې نه وي موندلې نو آر نوم ورته وايي او حالت يې آر پېر (اصلي حالت) بلل کېږي :
۱- د نوم پېر (اسمی حالت) ځېنې نښې يا پايلې له ګڼې (جمع) هغو سره سمون لري، لکه: ځلمی، د ځلمي - پلوشه - د پلوشې، شپون - د شپانه، غل - د غله....

۲- ډېرګړي (جمع) نومونه بيا په يو مخيز ډول اوښتی پېر په ( و ) ښيې، لکه : د ښځو، سړيو، هلکانو، خويندو، برېښناګانو ... .

په دې توګه په "ان" ګان، ي، وې، ونه، انې، ګانې، يندې او د دوې په نورو همپازو روستاړو جمع کېدونکي نرينه او ښځينه نومونه له "تون پېر"، "وتون پير" او "بلن پېر" او څه ناڅه تونپېر ( مفعول له ) پرته نوره اوښتنه نه لري . البته په "وتون" او "بلن پېر" کې ببواکپای نومونه خپل پای په "زورونو" يا ( فتحو ) او "زېرونو" روستاړي کوي، لکه : يه هلکه ! يه مورې !، له " هلکه " له "موره"، تر موره، تر کوره .

۶ - **" وتون پېر، یا منشایي یا مفعول منه حالت "** : دا مانا چې یو نوم د کار پیلیځ ( منشه ) گرځېدلی وي، لکه له کندهاره راغلم، له ښو ښه زېږي - له بدو وابنه زېږي . دلته (کندهاره - ښو او بدو) وتون پېر لري .

۷ - **" تون پېر یا ظرفي یا مکاني او زماني حالت "** : همدارنگه مفعول الیه یا استقامتي او معیتي حالت، هغه نوم چې د یوه کار ظرف وگرځي او یا پرې یو کار اړه پېدا کړي تولنوم بلل کېږي او په دې توگه بدلون مومي . دغه بدلون د ( په – کې )، ( پر - باندې )، ( پر - سربېره )، ( تر - لاندې )، ( تر - پورې )، ( سر - ته ) زېږنده ده، لکه : په کوهي کې، پر غره باندې، پر گټ سربېره، تر زنې لاندې، تر غرمې پورې، تر مازیگره، تر کابله، په تیارې پسې ړنا ده ...

**یادښت** : که یو نوم په کوم پورتني پېر کې خپلې بڼې ته بدلون ورکړی وي، اوښتی نوم بلل کېږي، یا په بله وینا ، هغه نوم اوښتی پېر (مغېره حالت) لري او که اوښتنه یې نه وي موندلې نو آر نوم ورته وایي او حالت یې آر پېر (اصلي حالت) بلل کېږي :

۱- د نوم پېر (اسمی حالت) ځېنې نښې یا پایلې له گڼې (جمع) هغو سره سمون لري، لکه: ځلمی، د ځلمي - پلوشه - د پلوشې، شپون - د شپانه، غل - د غله...

۲- ډېرگړي (جمع) نومونه بیا په یو مخیز ډول اوښتی پېر په ( و ) ښیې، لکه : د ښځو، سړیو، هلکانو، خویندو، برېښناگانو ...

په دې توگه په "ان" گان، ي، وې، ونه، انې، گانې، یندې او د دوې په نورو همپازو روستاړو جمع کېدونکي نرینه او ښځینه نومونه له "تون پېر"، "وتون پیر" او "بلن پېر" او څه ناڅه تونپېر ( مفعول له ) پرته نوره اوښتنه نه لري . البته په "وتون" او "بلن پېر" کې بېواکپای نومونه خپل پای په "زورونو" یا ( فتحو ) او "زېرونو" روستاړي کوي، لکه : یه هلکه ! یه مورې !، له " هلکه " له "موره"، تر موره، تر کوره .

لکه ځنگه چې پاس ولېدل شول او وروسته د سربلو - اوستربلو په برخه کې هم څرگندتیا مومي، بشپړ ډېرى سربلونه او اوستربلونه له یو لړ کم - اوښتوني نومونو پرته نور هر راز نومونه ( څیز نومونه، ستاینومونه، نومځري او شمېر نومونه ) اړوي، لکه په دې فارمول کې :

زه، ته، دی، دا ، څوك، سړی، ښځه، خپلوي، پېښتون، هلکان ( او بل هر ډېر گړی ) ... + سربلونه او اوستربلونه او همدا راز بلنپېر تېر لېږند یا غبرگون کړند پېر او برخیز ( وسمهال کړی پېر " ما "، " تا " ) = ما، تا ( د وسمهال کړي پېر یا مفعولیت په گډون )، ده، دې، چا، سړي، ښځې، خپلوی، پېښتنو، هلکانو ( او بل هر ډېر گړی ) له ( - و ) پایلې سره .

## کم - اوښتي نومونه :

ځېنې داسې نومونه شته چې په یوګړي بڼه په پېرونو کې کوم جولیز اوښتون (تغییر) نه مومي، بلکې ځېنې یوازې په وتون پېر او بلنپېر او یو څه تون پېر کې اوښتون مومي، او هغه دا دي :

۱ - الف – پاینومونه : لکه : کاکا، ملا، دادا، پښتیانا، اریانا، پکتیا، سبا، یما، کنښکا، لوړتیا او ... چې په اتو واړو پېرونو کې اوښتون نه مومي .

۲ - و – پای نومونه : ( لنډ یا اوږد )، لکه : زانګو، بیزو، درخو، ټټو، پېرزو .

۳ - ی -پای نومونه : لکه : نجلۍ، لېونۍ، څوکۍ، سپوږمۍ .

۴ - زورکي پای نرینه نومونه : لکه : نیکه، تره، زړه، وراره، مرغه، واده ...

۵ - ځېنې زورپای ( ستای - ) نومونه : چې هم ښځینه کارېږي او هم نرینه او څه ناڅه له پارسۍ سره ګډون لري، لکه : ډاډه، ډاده (بریان)، ښایسته، ساده، پیاده، شهزاده، مېلمه، کوربه، غوبه، بوده ... دلته یوازې ځېنې نرینه انډول ښځینه نومونه بدلون مومي، لکه : شهزادګۍ، مېلمنې، کوربنې، غوبنې .

۶ - زیاتره بېواکپای ښځینه نومونه، لکه : یه مورې ! یه ترورې ! یه خورې ! یا : له موره، له تروره ...

۷ - وي - غبرګغږ پای نومونه، لکه : یه زویه ! یه پوهندویه ! یه ساتندویه ! لویه ! بویه !، خویه ! یا : له زویه، له پوهندویه ...

۸ - ټول زور - پای یوګړي ښځینه نومونه د " په " او " په - کې " په ملتیا ناوړیدوني پاتې کېږي، لکه : په چاړه یا په چړه، په کوټه کې، او داسې نور .

## د زیاتې څرګندتیا لپاره دا وروسته لښتیلیکونه پامور دي :

# د نرینه ځیزنومونو اوړوني (تصریفي) لښتیلیک

په دې لښتیلیک کې (~) دا مانا لري چې په اړوند ځای کې نوم په هماغه لومړي تېره اوښتې بڼه پاتې کېږي . ( a - , ~ ) په دې موخه کښل کېږي چې - a اوښتوني ځېل دومره کره نه دي او سپین پاتې ځای هم د اړوند نوم ، نه بدلون ، یا په بله وینا ، د پایلې نښتوالی راښیي :

| نرینه پایلې | آرېېر (یوګړی) direct sg. | کرند (تېر لېږند کې) پېر nominative | لر کړی پېر (باواسطه مفعول حالت) dative | بلن (ندایي) پېر vocative | تولي (اضافي) پېر possessive | تون (ظرفي) پېر locative | وتون (مفعول منه) پېر ablative | لوبنن (الي) پېر instrumentative | آر پېر ډېرګړی dir. pl. | اوښتی ډېرګړی obl. pl. |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | سربلي – اوستربلي (اوښتی) پېر pre – postpositional case | | | | | |
| | | | (و) – ته (له، لره) | | د- . کره، لپاره ... | له - سره<br>په - پسې. پورې. کې<br>تر- پورې، لاندې | پر – باندې<br>له – څخه،<br>راهیسې | په – سره<br>له - سره | | |
| بېواکپای له منځخپلواک ونج (Ablaut) او زورکي پایلې سره | plar پلار | ~ | ~ | - a | | ( تر ... a ) ، | a | ~ | -(plar-) úna<br>-ān | -(plar-) úno<br>* -āno |
| | pəxtún پښتون | - (pəxt-) āna | ~ | ~ | | ~ | ~ | ~ | ~ | -(pəxt-) anó |
| | پټون | - (pāt-) ānə | ~ | ~ | | ~ | ~ | ~ | -(patan-) úna | -(patan-) úno |
| | lmunj لمونځ | - (lmānj-) ə | ~ | ~ | | ~ | ~ | ~ | -(imanj-) úna | **<br>-(lmanj-) úno |
| | lor لور | - (lār-) ə | ~ | ~ | | ~ | ~ | ~ | -(lar-) úna | -(lar-) úno |
| | xog خوږ | - (xwāg-) ə | | ~ | | ~ | ~ | ~ | ~ | -(xwag-) ó |
| | daxmán دښمن | | | - a | | - a | ~<br>- a | ~ | daxmə́n | -(dáxmən-) o |
| | topák ټوپک | | | - a | | - a | - a | ~ | topək | -(topək-) o |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| u- لنډو (و) پای | کدو kadú<br>نو nu<br>ټټو ṭaṭú<br>لډو laḍú<br>لاټو lāṭú<br>جادو<br>بانړو bāṇú<br>ساندو<br>sānḍú<br>برمانو<br>بېدوده :<br>ساهو، چمتو.<br>جرګتو ... | | | | | | | | (kadw-) ān<br>- gān<br>(tatw-) ān<br>- gān<br>- gān<br>- gān | -(kadw-) āno<br>- gāno<br>-(tatw-) āno<br>- gāno<br>- gāno<br>- gáno<br>بېدوده:<br>جارو، پارو،<br>ګوګوشتو.<br>"بانړه" خېل<br>يې تش<br>اوبنتی<br>د ېرګړی "بنو"<br>لري |
| e- زورکي پای | تره<br>راغه<br>زره<br>لېوه<br>واده<br>وراره | | | | | | | | -(tr ) úna<br>-(raɣ-) ~<br>-(zr-) ~<br><br>-(lew-) ấn<br>-(wad-)<br>úna<br>-(wrer-)úna | -(tr-)úno<br>-(raɣ-) ~<br>-(zr-) ~<br><br>-(lew-) ấno<br>-(wad-)<br>úno<br>-(wrer-)úno |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ی - ay | سړی<br>مریی<br>لبنتی<br>ویی<br>پلی<br>لیکونکی | -(sar-) i<br>-(mray-) ĭ<br>-(laxt-) i<br>-(way-) i<br>- i<br>- i | ~<br>~<br>~<br>~<br>~<br>~ | ~<br>~<br>~<br>~<br>~<br>~ | ~, -a (تر...)<br>~ ~<br>~, -a (تر...)<br>~, -a (تر...)<br>~, -a (تر...) | ~, - a<br>~, - a<br>~, - a<br>~, - a<br>~, - a | ~<br>~<br>~<br>~<br>~<br>~ | ~ a<br>~ a<br>~ a<br>~ a<br>~ a | - i -yā́n<br>~ ~<br>~<br>~<br>- i, -úna<br>~ | - o, -yā́no<br>-(mray-) ó<br>ā́no<br>- ó<br>- ó, - úno<br>-(pə́ly-) o<br>-eo |
| ـي – ي -í (nomen agents) | darzí درزي<br>ṭokí توکي<br>čarsí چرسي | | | | ~, - a (تر...)<br>~<br>~ | ~, - a<br>~<br>~ | ~, - a<br>~<br>~ | - a<br>~<br>~ | -(darz-) yā́n<br>-(ṭok-) yā́n<br>-(čars-) yā́n | -(darz-) yā́no<br>-(tok-) yā́no<br>-(čars-) yā́no |
| الف – یای د خپلوانو نومونه یا (پردیزونه) | ماما، کاکا،<br>لالا، دادا،<br>سندا، بودا،<br>بدا، بیرا ...<br>بومیا، ملیا،<br>گدا، اشنا،<br>میرزا، ملا ...<br>الونیا، هوسا،<br>جلیا ...<br>لگیا | | | | | | | | - gā́n<br>- yā́n | - gā́no<br>- yā́no<br>- wo<br>***<br>← |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| a - ېای چارنومونه ( nomen agents ) | غوبه، گډبه، لېربه، وزبه، خسبه، مېلمه، کوربه، اسبه، اوربه، ختبه، خرنه، کډبه، لاربه، لرگبه، بوتبه، اوښبه، ستنبه، رگبه … | | | | | | | • | - anǿ | - ānə́ #|
| uy - ېای | بوی، خوی … | | | | - a | - a | | - a | - úna | - úno ## |
| - yo - وی ېای | توی، لوی، وربوی، دوی (قانونٔ)، ثارندوی پوهندوی گرخندوی … | | | | - a<br>- a | - a<br>- a | | - a<br>- a | - úna<br>- āna | - o, úno<br>- ā́no ### |
| - ay - ی ېای | خای، چای، گای، دای، بډای، کالخوای، خدای … | | | | - a ~ | - a ~ | | - a ~ | - úna ~ - ān | - úno, o ~ - ā́n, - o ← |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| - úno, - o<br>~<br>~<br>~<br>- ā́no | - úna<br>~<br>~<br>~<br>- ā́n | - a<br>~<br>~<br>~ | | - a<br>~<br>~<br>~ | - a<br>~<br>~<br>~ | | | | کړاو، جړاو،<br>پړاو، نیاو ...<br>لو، کنډو، پلو<br>...<br>لیو، دېو ... | اوپای - aw - |

* نور ورته گردانېدونکي الف منځي نرینه ، لکه : کال - کلونه - کلونو / خروار - خرورونه - خرورونو .

** نوېزونه : پوهنتون ، پاخون ، روغتون ... بې خپلواکونجه گردانېږي .

*** لرغوني نومونه ( اریا ، یما ، کنښکا ... ) . شېړا ، غونجا ، لېنډا ، کوڼا ، روندا هم په همدې لیکه کې راځي .

# شهزاده، خړه، جره، ساده، بوده، شوده، خوځنده ( خزنده ) ، پوونده ... له ( ډېرگړي - گان، -گانو سره ) هم همداسې درواخله .

## په کندهاري گړدودي ډله کې زوی ، سوی هم د نورو ډلو د oy- په وړاندې په uy- ویل کېږي .

### بېدوده : زوی - زامن چې ناکره زویان هم ویل کېږي .

# د ښځینه ځیزنومونو اوړوني ( گرداني ) لښتیلیك

| ښځینه پایلي | یو گړی آر پېر (اصلي حالت) direct case | (لرغونی) اوښتی پېر (مغېره حالت) obl. case | | | سربلي – اوستربلي اوښتی پېر pre-postposition case | | | | دېر گړی آر پېر (اصلي حالت) dir. pl. | اوښتی پېر (مغیره حالت) obl. case |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | کړند (تېر لېږند کړ پېر nominative | بلنپېر (ندائیه حالت) vocative | لر کړی (باواسطه مفعول پېر (dative) | تولپېر (اضافي حالت) (possessive) | تونپېر (ظرفي حالت) (locative) | وتونپېر (مفعول منه) (ablative) | لوښنپېر (الي) (instrum.) | | |
| | | | (آ، یه) - ! | (و) – ته (له سره) | د - ، کره لپاره ... | په، پسې، پورې، کې تر- پورې، لاندې پر - باندې | له - څخه ، له هسې | په - ... په - ، سره له - سره | | |
| a - زور- بای | پزه páza ، منه maṇá | - e | - e | - e | - e | (کې ... - e, - | - e | (په ... - e, - | - e | - o |
| a - الف - بای | ملا mlā ، غوا Ɣwā | | | | | | | | - we * | - wo ◀ |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ـ (و) اوږده o- پای | bizó بيزو<br>pišó پيشو<br>perzó پېرزو | | | | | | | | - gā̂ne<br>- gā́ne<br>- we<br>** | - gā̂no<br>- gā́no<br>- wo |
| پای ـ ی - əy | ḍoḍəy ډوډۍ<br>narə́y نرۍ<br>marǧə́y مرغۍ<br>šaṛə́y شړۍ<br>guḍə́y ګوډۍ<br>kablə́y کبلۍ | | | | | | | | ***<br>~<br>-(kabl-) yāne | - ó<br>- yāno |
| پای ـ ي - i | byātí بياتي<br>bibí بي بي<br>čelamčí چلمچي<br>wadāní وداني<br>وروري،<br>ښادي، خوښي<br>... | - ə́y | - əy | - əy | - əy | - əy | - əy | - əy | -(byāt-) yāne<br>-(bib-) yāne<br>- əy | - yā́no<br>- yāno<br>- əyo |
| پای ـ ې - e | adé ادې<br>nā́we ناوې<br>خوره ولې<br>xwağa-wə́le<br>ليکونکې ...<br>likúnke | | | | | | | | - gā̂ne<br>- āne<br>~<br>~<br># | - gā̂no<br>- āno<br>- o<br>-(likúnk-) o<br>← |

| ۲- ر – پای خپلواک نومونه | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | مور | | - e | | | - a (...-تر) | - a | | -(m-) yánde | -(m-) yándo |
| | خور | | - e | | | - a (...-تر) | - a | | -(xw-) yánde | -(xw-) ỳándo |
| | ترور | | - e | | | - a (...-تر) | - a | | -(tr-) yánde | -(tr-) yándo |
| | نږور | | - e | | | - a (...-تر) | - a | | -(ng-) yánde | -(ng-) yándo |
| | نندرور | | - e | | | - a (...-تر) | - a | | -(ndr-) yánde | -(ndr-) yándo |

۱ – یو ګڼ شمېر ښځینه نومونه چې ډېر لږ یې د a - پایلې څرك لګي او په ډېرو ګردودو کې پر ترلې خپه، یا په بله وینا، بېواك (کنسوننټ) پای ته رسي، خو بیا هم د a - پای نومونو غوندې اړوون مومي، لکه: لمن ، ستن ، برستن ، مېچن ، نغن ، درغن ، کوژدن ، بن ، مېرمن ، قالین ، چین ، (خو ورته " ښون" بیا نرینه دی) ځنګل ، منګول ، کمبل ، کمپل ، خپړ ، اوریځ ، ورځ ، ږمنځ ، ترخځ ، زنځیر ، تبځ ، تربنځ یا تبنځ ، کلیز ، ګومبز ، لېچ ، نجل ، مټ ، ډز ، کټو ، برو ، لوېشت ، میاشت ، ورندار ، تندار ، لار ، کندر ، وندر ، غاښور ، بکر ، کنګر ، کچر . د " ډز " ترخنګه ډزه هم ښایي د همداسې پرمختیایي بهیر زېږنده وي .

۲ – دا چې په ټوله ژبه کې "لور" او "یور" په ډېرګړي کې پر "لوڼې" او "یوڼې" اوړي، ښایي، په منځنۍ پښتو، یا د اوسنۍ پښتو په لوېړیو کې به د "لوړې" او "یوړې" په بڼه ډېرګړي کېدې او د پېړیو په پوړیو کې به ړومبی - ر - پر - ړ - اوښتې وي او بیا - ړ - پر - ڼ - باندې چې ورونه - وروڼه یې تازه بېلګه کېدای شي ، مګر دا چې په نورو ورته - ر - پای خپلوانو نومونو (مور، خور، ترور، نږور او ندرور) کې هماغه - ر - پر " - ندی " یا (- یندې) اوښتې ، یا په بله وینا ، پر دغه راز پایلې اړول شوې ده ، ښایي دَ یوه بل اوږده مهالپېر بهیره اوسي !

۳ – دا چې د نجلۍ یا نجل ډېرګړی نجوني کره منل شوی ، ښایي آره یې نجن ولې اوسي چې وروسته پر نجل اوښتې او بیا وروړې ښځینه پایله – ی نښلول شوې ده !

* ګاني ناکره ډېرګړی ګڼل کېږي. ګنا ، سا ، پنا ، که بې ( ه ) وویل شي ، ښځینه بلل کېږي ، که نه نرینه .

** ګاني له داسې بې سا نومونو سره کره نه بریښي .

*** په " – یاني " کره نه بلل کېږي .

\# له بې – سره رغېدلې a - یا ه – پای ستاینومونه د دواړو نوږیو لپاره راځي ، لکه : بې ژبې ، بې خولې ، بېځواکه ، بې سېکه ، بې جوړې، موسیقي او ستړی مشي زیاتره ښځینه کارول کېږي .

**یادښت**: ډېرګړي نرینه او ښځینه نوږ نومونه د ناشمېر ورو ډېرګړو هغو غوندې په ټولو پېروونو کې ، سیده یا د خپلواکونج په ملتیا " o - و " پایله راخپلوي ، لکه : زر ، تېل ، غنم ، غوښت ، ږدن ، اوره ، ورږه ، غوړي ... یا وریجې ، اوربشې ، شودې ، مستې .

# د ستاینومونو اوړوني (تصریفي) لښتیلیك

په پښتو کې ستاینومونه (صفتونه) د څېزنومونو غوندې د نوري، ګڼې او پېر له مخې اوړون (ګردان) مومي، مانا دا چې له ور ته رغاونو سره ورته خپلواکونج (واولي بدلون) یا پایلې او یا دواړه ډوله بدلونونه راخپلوي، لکه په لښتیلیك کې:

| پېرونه (حالتونه) Cases | آرپېر (اصلي حالت) direct sg. | لرغوني یا ربښتیني نوموال اوښتي پېرونه | | | دویمني یا سربلي — اوستربلي اوښتي پېرونه Secondary or pre-postpositional obl. | | | ډېرګړی آر پېر dir. pl. | اوښتی پېر obl. pl. |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پایلې Endings | | کړند پېر فاعلي حالت Nominative | کړی پېر | بلنپېر ندائیه حالت Vocative | په — کې<br>په - ... | له — سره<br>له - ... (څخه)<br>بې - ... | په — پورې،<br>پسې، سره<br>د - ...<br>... - ته<br>ترپایه | | |
| بېواکپای له منځخپلواك ونج Ablaut او زورکی - ə پایلې سره | خپور، سپور، وور، موړ، سوړ، پوست،<br>ورووست، روڼ، کوڼ، روند، کوږ، پوخ،<br>لوند، دروند، پروت، ترسکون، خوږب، | خپاره ... | | ~ | ~ | ~ | ~ | ~ | خپرو ... |
| | خوږ<br>تود | خواږه ...<br>تاوده | | ~ | ~ | ~ | ~ | ~ | خوږو ... |
| | تریخ<br>تریو<br>زیږ<br>شین<br>سور | ترخه (تراخه)<br>تروه (تراوه)<br>زږه (زاږه)<br>شنه<br>سره | | ~ | ~ | ~ | ~ | ~ | ترخو ... |
| | پېړ<br>اوم<br>مل<br>پل (حلال، روا) | ə - | | ~ | ~ | ~ | ~ | ~ | پېړو ... ← |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ښواکپای ستاینومونه له یوګړي اوښتي پایلي a- او له ډېرګړي اوښتي پایلي o- سره | تور، زېړ، زرغون، برګ، سپین، روغ، روښان، وران، ودان، زړور، ترور، څرګند، حوت، ټینګ، ملك، ځلاند، لالهاند، څولند | | | - a | | - a | | - و ( -o ) |
| | بل، غټ، لوړ، پېړ، پنډ، ټیټ، مالګین، وریت، ژوبل، بل، مل، وینښ، ډنګر، سوب، جړ، خړ، غوځ، پخ | | | | | | | |
| a- پای یا e- پای له یوازي ډېرګړي اوښتي پایلي o- سره | تېره، بې زړه سپېره، ویده ښیري | | | | | | | و – ( teró ) – و ( ciró ) - |
| پای - ay | نري، ملګری، ګړندی، ښېدیانی، غښتلی، ښکلی، پخوانی، اوسنی، لرغونی، پرونی، نننی | - ۂ | | - iya (-aya) | - i | - i | - i | - یو ( -əyo ) |
| پای - oy | لوی، پېژندوی، ګټندوی، ساتندوی، څرګندوی | | | - a | | (له، بې) -a | | - و ( -o ) |
| کم اوړونی (-) a- پای له یوازي ډېر ګړي اوښتي پېر سره | پوخلا، هوسا، جلیا، ساده، بوله، تکړه، ساهو، چمتو، ښایسته، نرینه، ښځینه، ښکاره، بدورده | | | | | | | ووـ ( -wo ) |

| ي - پای چارنومیز ډوله | چرچه يي، ډانګه يي، نامي جوړه يي، غرغره يي، سرسري، سراسري، بېدیایي، سارايي، مېله يي، میداني، دېوالي ... | | | | | | | o - و |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

د ښځینه ستاینومونو اوړون بیا یو څه اسان او پر دود برابر دی . لومړی یې هغه زیاترینه برخه چې له منځخپلواکونج او a- پایلې سره له پورتنیو نرینه ستاینومونو جوړېږي، نور نو یې د یوه یوګړي اوښتي پېر او آر ډېرګړي لپاره هماغه پر e- اوړي او د ډېرګړي اوښتې بڼې لپاره یې هم د هماغې ډېرګړې بڼې - e پر اوړده (و - o ) بدلون مومي، لکه په دې پرله پسې ډول :

خپره - خپرې - خپرو / خوږه - خوږې - خوږو / ترخه - ترخې - ترخو / پړه - پړې - پړو / توره - تورې - تورو / تېره (ə-) - تېرې - تېرو / ځیرې - ځیرو / نرۍ - نریو / ملګرې - ملګرو / ګړندۍ - ګړندیو / لویه - لویې - لویو / پوخلا - پوخلاوو / تکړه - تکړه وو/ چرچه یي - چرچه ییانې - چرچه ییانو / میدانۍ - میدانیانې - میدانیانو / یا ځانګړی ښځینه ستاینومونه، لکه : بي بي - بي بیانې - بي بیانو / لولۍ - لولیانې - لولیانو ...

# د نومونو څلورګونې ډلې

## لومړی - څیز نوم ( اسم )

څیزنوم چې دودیز ژبپوهان يې اسم بولي، يو داسې نوم دی چې نېغ پرنېغه د يوه څیز يا ښکارندې (پدیدې) نومونه (نامگذاري) او څرګندونه کوي او دا وروسته ډولونه لري :

**۱ - پژ نوم ( اسم ذات )** : په يو ننګېرېدونکي (حس کېدونکي) څیز اړه لري . يا په بله، وينا داسې يو څیز نوموي چې زموږ په حواسو حس کېدای شي، لکه: ډبره، لرګی، اوبه، هوا، سندره، غږ، ښځه، سړی او داسې نور .

**۲ - مانا نوم ( مانا اسم )** : په يوه نه ننګېرېدونکي (غیرمحسوس) څیز، يا په لنډه وينا، په يوې ښکارندې (پدیدې) پورې اړه لري او هغه نوموي، لکه : ښايست، رښتیا، روغتیا، هیله، ننګ، پت، مېړانه، پیاوړتوب، رخه، سخه (عناد)، خوښي، خوږ (درد)، وير، زغم، اندېښنه، لویي، ستروي، درناوی، سپکاوی، ښېګڼه، بدي ....

**۳ - ځانګړ نوم ( خاص نوم )** : يو ځانګړی څیز، پدیده، وګړی، يا ځای نوموي، لکه: پښتو ژبه، پښتونواله، خوازك، زرمینه، ننګرهار، کندهار، پکتیا، هند، ایران ....

**۴ - ټولنوم ( عام اسم )** : ذاسې څیز يا ښکارنده نوموي چې ځانګړی او خاص نه وي، بلکې ډولونه او څېلونه ولري، لکه: ونه، هلك، نجلۍ، هېواد، څاروی، وګړی، ولس، ترون، ژمنه ....

**۵ - نوږ نوم ( جنس اسم )** : په يوه نه شمېرېدونکي څیز (جنس) اړه لري، لکه : زر، اوبه، غنم، کوچ، غوړ، غوړي، چرس، بنګ، کوکنار، جوار، واښه، سابه، کورت، درمل، ویتامین، هایدروجن. له زیاتره نوږ نومونو سره د ډېرګړي چلند کېږي . بېدوده، لکه : وسپنه، خته، بوره، شکره ... که يو نوږ نوم ډولونه ولري، نو بیا هم ډېرګړي کېدای شي، لکه: ویتامین، درمل، واکسین ....

زیاتره نوږ نومونه ډېرګړي دي . د دا راز نومونو نرینه او ښځینه توپیر د پایلو له مخې کېږي . نرینه، لکه: غنم، غوړي، سابه (د سبو) ؛ ښځینه، لکه: اوبه، اوربشې، نکریزې، شودې، مستې چې ګردودي ځېل يې "شوده" او "ماسته" ډېرګړي نرینه راځي .

ځېنې نوږ نومونه یا یوګړي راځي او یا هم ډېرګړي، لکه: خاوره، ایره، غله، مالګه، شکره، بوره چې کله ناکله ډېر ګړي کېدای شي، خو په ټولیز ډول یو ګړي نوږ نومونه د نه شمېرل کېدونکیو، یا په بله مانا ، د کچې (مقدار) غوندې ورسره ډېرګړي ناټیکنومځري راځي، لکه نوره وسپنه، نوره خاوره، نوره غله، نوره خټه یا له " څه "، " ځینې "، " ټول "، "واړه" سره . دا چې بله خاوره، بله وسپنه، بله خټه ... ویل کېږي، موخه ترې بېلا بېل ډولونه دي . د همدغو ډولو له مخې ځېنې ډېرګړي نوږ نومونه پر یوګړي هم اړول کېږي، لکه : د غزني غوړی ښه دی، د کوندوز اوبه ښه ده، " غنمان "، توتان ... بیا د ډېرښت لپاره هم ویل کېږي .

**۶ - غونډ نوم ( جمع اسم )** : یوه ډله او غونډ نوموي، لکه: ټولنه، ټبر، ټولی، ټولګی، ګوند ، سازمان، ولس، ګورم ( پاده )، رمه ... .

**۷ - انګینوم ( صوت اسم )** : د طبیعي یا مصنوعي اوازونو انګې یا انګازه (پژواک) نوموي، لکه : درز ، دروز ، درزی، درزا ، درزهار، ګرپ، ګروپ، ګرپی، ګرپهار، ترپ، تروپ ... .

## دویم - ستاینوم

ستاینوم (صفت) په خپلواک ډول څه نه نوموي، بلکې د یو څه ځرنګوالی نوموي؛ یا په بله وینا، یو ستاینوم په یوه څیز نوم آړه لري او د هغه ځرنګوالی ښیي، لکه: تود ، سوړ، غټ، ووړ، تور، سور، ښکلی، ښایسته، غښتلی، کمزوری، روغ، ناروغ ... .

په پښتو کې ستاینوم د لوړتیا د پوړونو ؛ یا د لږوالي، ډېروالي، سستوالي او توندوالي، بېلا بېلې ښکاره درې ګونې درجې نه لري، لکه په دري ژبه کې : به، بهتر، بهترین ؛ یا بزرګ، بزرګتر، بزرګترین .

له دې کبله یو پښتو ستاینوم د نورو وییو او وییکو (اداتو) په ملتیا خپل پوړونه، پوړۍ یا درجې او طبقې ښکاره کوي، لکه : ښه – ډېر ښه – لا ډېر ښه، یا سپین – ډېر سپین - خورا سپین – تر ټولو سپین - زښت زیات سپین او داسې نور. ټینګاري کړولونه ( زښت، خورا، لا ) یا ټینګاري ستاینومونه ( ډېر، ښه، ښخرته، بې کچه ... ) پر پورتنۍ دندې سربېره د ورپسې نورو ستاینومونو د ټینګتیا، پراختیا یا پیاوړتیا لپاره هم کارول کېږي .
په کره لیکنۍ پښتو کې د ستاینومونو د پوړیو د ښوولو لپاره له د تر - او ترین - روستاړو کارونه هم لږو ډېره دود شوې ده .

## د ستاينوم ډولونه :

ستاينوم په دوه ډوله دی : ۱-: لنډ ؛ ۲-: لر .

**۱- لنډ ستاينوم :** هغه دی چې تر څيز نوم له مخه او ورسره پتليز راځي او لنډ پر لنډه يې ستايي، لکه : توره دړه، روغ سړی، ښکلې نجلۍ ....

**۲- لر ستاينوم :** هغه دی چې تر څيزنوم وروسته راځي او له کړوالي برخې (مُسند) سره پيوستون لري، که څه هم هماغه څيزنوم ستايي، هغه هم په دې نوموالو غونډو کې، لکه : دړه توره ده، سړی روغ دی، نجلۍ ښکلې ده .... هرگوره په کړوالو غونډو کې له کړ سره اړه پيدا کوي او په دې توگه پر کړول (قيد) اوړي، لکه : هلك ( پلی ) راغی – اسمان په ستورو ( ښه ) ښکاري – پلوشه (ښکلې) بربښي – زه کور ته ( ډېر ) څم ....

## د ستاينوم او ستايلي (صفت او موصوف) گرداني سمون :

په پښتو کې ستاينوم ( لنډ يا لر ) او ستايلی يا هغه څيزنوم چې ستايل کېږي، د نوم اوړون د دروگونو اړخو ( نوږي - گنې - پېر ) له پلوه سره زياتره سمون لري، لکه : ړوند غل، ړنده غله، ړانده غله، ړندې غلې، د ړانده غله، د ړندې غلې، د ړندو غلو ....

يا په نابشپړ ډول او يا لږ تر لږه د يوه يا دوارو خواوو له پلوه، لکه : لوی غل، لويه غله، لويې غلې، د لوی غله، د لويې غلې، يا سپين غل، سپينه غله، سپين غله، سپينې غلې، د سپين غله، د سپينې غلې، د سپينو غلو ....

لښتيليك ( جدول ) کې :

| | |
|---|---|
| شين ختهکي | شنه ختهکي |
| د شنه ختهکي | د شنو ختهکيو |
| شنه هندوانه | شنې هندوانې |
| د شنې هندوانې | د شنو هندوانو |

مگر له " په " او " په - کې " سره دغه راز ښځينه نومونه له خپلو اړوندو ستاينومو سره له اوښتي پېر سره نه مخامخېږي .

**يادښت :** له څېزنوم سره د ستاينوم اوړوني (گرداني) سمون څېنې بېدودی هم لري :

۱ – په تولېز ډول ي - پای پور ستاينومونه اوړون نه مومي، لکه : علمي مرکز، علمي منځی، د علمي منځيو .... د همدا راز پايلې والا نوي پښتو ستاينومونه، لږو ډېر بې اوړونه پاتېږي، لکه : پرمختيايي، بشپړتيايي، بېلښتي ....

۲ – که په یوه غونډ (عبارت)، سرلیك او یا (زیاتره نومواله) غونډله کې یو ځیزنوم د څو ستاینومونو، تړلنومونو (مضافونو)، یا شمېر نومونو (عددونو) لپاره ګډ وکارول شي، د نوړي او ګڼې له پلوه له هماغه وروستي ستاینوم، تړلنوم یا شمېرنوم سره سمون خوري او هماغسې یو ګړی پاتې کېږي، یا په بله وینا، که د نوموالې غونډلې بڼه ولري، اړوند نوموال ( to be ) کړ ورسره هم یو ګړی ( دی، وو ) راځي، لکه : ( یو ژوندی ولس او وګړي ) له منځه تلای نه شي . زموږ په هېواد کې د یوه سړي او ښځې ربنتې سره برابرې نه دي، لکه :

- اتلسمه، نولسمه او شلمه پېړۍ ( بده نه وه ) . پارسي : سده های هژده، نوزده وبیست ( بد نبودند ) .

- د پوره څرګندتیا لپاره ( دړبواړه ) ورسره هم کارول کېدای شي : ... پېړۍ دړبواړه بدې نه وې .

- ورمه او بېګا شپه را باندې ارامه تېره شوه . د تېرې میاشتې ړومبۍ، دویمه او وروستۍ چهارشنبه مې وزګاره وه .

- ووړ او لوی اختر پوره تود وو . پارسي : عیدهای خورد وکلان کافی ګرم بودند .

۳ – همدا راز که په یوه غونډ، سرلیك یا غونډله کې یو شمېرنوم یا ستاینوم یا دواړه غبرګ تر دوو یا ډېرو ځیز نومونو له مخه راشي، له هماغه لومړني ځیزنوم سره اوړوني اړخ لګوي او نور ورسره عطف کېږي، لکه : یوه ښځه او سړی راغلل، یو پلونډ سړی او ښځه له کوره راووتل، یوه پښتنانه هلك او نجلۍ سره واده وکړ . د سپین توکم او تولنې وګړي د تور توکم او تولنې له وګړو سره نه جوړېږي .

یوه تولنه او هېواد له پوهنیزې پرمختیا او پرمختګ سره پیاوړي کېږي .

- په تېر یوه کال او درو میاشتو کې یا په تېرو دوو کلو او یوه میاشت کې هېڅ اوربنت ونه شو . له تولې بشري پوهې او تخنیك څخه ....

## درېیم - شمېر نوم ( عدد ) :

شمېرنوم هم د ستاینوم غونډې په خپلواك ډول کومه نومونه نه کوي، بلکې په یوه ځیزنوم اړه لري، خو د ستاینوم غونډې یې څرنګوالی نه، چې څومره والی او پوړوالی ( تدرج ) ښیي، لکه: یو، دوه، درې ... یا لومړی، دویم، درېیم ....

## د شمېر نوم او شمېرلي ( عدد او معدود ) ګرداني سمون :

په پښتو کې شمېر نوم، لکه لنډ ستاینوم ترخپل اړوند ځیز نوم شمېرلي له مخې راځي او لږو ډېر ورسره اوړون مومي، هغه دا چې لومړي دوه شمېره ( یو، دوه ) ورسره د نوړي او پېر له مخې ګردانېږي او نور پورته ورسره یوازې د پېر له مخې، لکه په لاندې لښتیلیك کې :

| | |
|---|---|
| یو غل | یوه غله |
| یوه غله | یوې غلې |
| دوه غله | دوې غلې |
| دوو غلو | دوو غلو |
| درې غله | درې غلې |
| درو غلو | درو غلو |
| څلور غله | څلور غلې |
| څلورو غلو | څلورو غلو |

## د شمېر نوم ډولونه :

شمېر نوم دا وروسته ډولونه لري :

**۱ - آر شمېر ( اصلي عدد )** : لکه یو - دوه - درې - څلور ...

**۲ - پوړ شمېر ( وصفي یا رتبي عدد )** : چې د خپل شمېرلي پوړ او پوړۍ ښیي او د ستاینوم غوندې د ګڼي، پېر او نورې له مخې اوړون مومي، لکه : یوم یا لومړی، دویم، دریېم، څلورم ... سلم، یوسل ویوم، دوه سوم ... ښځینه یې د a په زیاتولو سره رغېږي . ډېر ګړې ښځینه پایله یې e او د دواړو نوریو اوښتې به په - o جوړېږي .

**۳ - ووړ شمېر ( کسري عدد )** : چې د اړوند څیز نوم ( شمېرلي ) ماتوالی او برخه والی ښیي، لکه : دویمه - دریېمه - څلورمه ... سلمه، یوسل یومه ... لسیزه یا لسی ( دهه )، سلیزه ( سلی )، زریزه یا زری ( هزاره ) یو ډول ګروپي شمېر نومونه یا مهالپېرونه دي .

**۴ - وېش شمېر ( انقسامي عدد )** : چې د اړوندو څیز نومونو وېشنه او جوړه جوړه کونه څرګندوي او په دې توګه د ووړ شمېر غوندې له ډېرګړیو ( جمع ) څیز نومونو سره اړه لري ؛ نه له یوه سره، لکه : یو یو، دوه دوه، درې درې، څلور څلور ... .

**۵ - اټکل شمېر ( تخمیني عدد )** : د یوه څیزنوم (معدود) پرڅای غبرګ غبرګ څیز نومونه ښیي، او یو هم نه ټاکي، لکه : یو دوه، یو درې، دوه درې، درې څلور، لس شل، شل دېرش، پنځوس شپېته ... .

په دې توګه اړوند څېز نومونه د دواړو شمېر نومونو ترمنځ اټکلېداى او امرېداى (انتخابېداى) شي. یا لومړی یا دویم او یا د هغو ترمنځ جوړه جوړه شمېر نومونه پرله پسې وي، لکه: یو دوه - دوه درې او یا په ټاکلي او ټولمنلي واټن سره، لکه: اته لس یا لس شل. مګر ښایي هېڅ یو ښېتون دوه څلور، درې پنځه، څلور شپږ ... ونه وایي. البته (یو) له هر پورته شمېر سره جوړه کېداى شي، خو هغه هم زیاتره د پېژند (حرف تعریف) په توګه چې اټکل ورسره په څېرمه (ضمني) ډول هم څرګندېږي.

## څلورم - نومځري ( ضمیر ) :

نومځری هغه ویی دی چې د یوه څېزنوم ښکارندویي کوي، د هغه پرځاى راځي او یا یې ملګرتیا کوي. او د همدغې دندې له مخې د نومونو په ډله کې ځاى نیسي. له نورو نومونو (څېز نوم – ستاینوم – شمېرنوم) سره د نومځري توپیر دا دى چې دا پر درې ګونو اړخو (نوږي – ګڼې او پېر) سربېره د وګړي (لومړي، دویم او درېیم) له مخې هم اوړون مومي. (اولرېښ ۹۴۲)

**د نومځرو ډولونه :** نومځري د جولې او چار له مخې پر دې وروستیو ډلو وېشل کېږي:

**۱ - ځانګړي نومځري ( شخصي ضمیرونه ) :** چې له شعر وادب پرته یوازې د انسانانو لپاره راځي، دوه ډوله دي: ۱ – غښتلي؛ ۲ – کمزوري.

## الف - غښتلي ( منفصل ) :

| ګڼه / وګړی | | یو ګړی | | ډېر ګړی |
|---|---|---|---|---|
| | | آر پېر | اوښتی پېر | |
| ۱ | | زه | ما | موږ |
| ۲ | | ته | تا | تاسې |
| ۳ | نرینه | دی<br>هغه | ده<br>هغه | دوي<br>هغوي |
| | ښځینه | دا<br>هغه | دې<br>هغې | |

## ب - کمزوري یا ( متصل ) :

| گڼه / وګړي | یو ګړی | ډېر ګړي |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | یې | یې |

## ۲ - تولنومځري ( ملکي یا اضافي ضمیرونه ) :

چې د وګړو لپاره بشپړ او له ناوګړو ( څیزونو، پدیدو او ژویو ) څخه یوازې درېیم وګړي لپاره کارول کېږي، تول ( ملکیت ) او اړوندي ( تعلق ) ښیي . دغه نومځري هم پر غښتلیو او کمزوریو وېشل کېږي :

## الف - غښتلي ( منفصل ) :

<table>
<tr><th>گڼه / وګړي</th><th colspan="2">یو ګړی</th><th>ډېر ګړي</th></tr>
<tr><td>۱</td><td colspan="2">زما</td><td>زموږ</td></tr>
<tr><td>۲</td><td colspan="2">ستا</td><td>ستاسې، ستاسو</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۳</td><td>نرینه</td><td>د ده</td><td rowspan="2">د دوی<br>~</td></tr>
<tr><td>ښځینه</td><td>د دې</td></tr>
</table>

## ب - کمزوري ( متصل ) : کټ مټ د ځانګړیو کمزورو هغو غوندې دي :

| گڼه / وګړي | یو ګړی | ډېر ګړي |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | یې | یې |

## ۳ - نغوتنومځري ( اشاري ضمیرونه ) :

هغه نومځري دي چې وګړیو یا څیزونو ته نغوته (اشاره) کوي او د هغو د نومونو ځای نیسي او یا ورسره لکه ستاینوم ملګرتیا کوي. نغوتنومځري د څیزونو، پدیدو او ژویو لپاره د ځانګړو نومځرو پرځای هم راځي . په بله وینا ، ځانګړي نومځري یوازې په وګړو ( انسانانو ) اړه لري .

نغوتنومځري د نوړي، ګڼې، پېر او یوازي دریېم وګړي او واټن ( فاصلې ) له مخې اوړون لري . په کندهاري ګړدود کې نغوتنومځري د واټن له مخې پنځه ډوله دي : ډېر نژدې (دا ، ها ، آ)، لږ نژدې (دغه، داغه)، لرې (هغه)، لالرې (هاغه، آغه)، ډېر لرې ( هوغه ) . ( حبیبي، تعلیقات، تاریخ تلفظ وصرف پشتو ج ۲ ص ۲۷۳-۲۷۴) . :

| ګڼه / وګړی | | یوګړی: نومځری / واټن | آرپېر | اوښتی پېر | ډېرګړی: آرپېر | اوښتی پېر |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳- ( یوازي دریېم وګړی ) | لنډ | نرینه | دغه | دغه-∂ | دغه | دغو |
| | | ښځینه | دغه = دا | دغې دې | دغه | دغو |
| | لر | نرینه | هغه | هغه-∂ | هغه | هغو |
| | | ښځینه | هغه | هغې | هغه | هغو |
| | لالر | نرینه | هاغه | هاغه-∂ | هاغه | هاغو |
| | | ښځینه | --- | --- ې | --- | --- |
| | ډېر لر | نرینه | هوغه | هوغه-∂ | هوغه | هوغو |
| | | ښځینه | هوغه | هوغې | هوغه | هوغو |

**یادښت** : اروانباد علامه حبیبي ( هماغه پارسي اخځ ) له دغو ټولو نغوتنومځرو سره د یو لړ روستاړو په ملتیا منځته راغلي بېلنګونه ( مشتقات ) هم یو مخیز له دوه ګونو ګړدودي ځېلو سره په یوه لښتیلیک کې رانغښتي دي . حال دا چې له هغو ځخه یوازي د ( - سې ) والا هغه ( داسې، دغسې، هاغسې، هوغسې ... ) د اړیکوییکو د پاڅي ترځنګه د نغوتنومځرو چار پر غاړه اخلي او نور ( دومره، دغومره، دورې، هغورې، دلته، دغلته، هغلته ... ) کړولونه او اړیکوییکي بلل کېږي . په هر ډول دلته هغه لښتیلیک کټ مټ رااخلو :

| اقسام | ١<br>نزدیکتر | ٢<br>نزدیك | ٣<br>دور | ۴<br>دورتر | ۵<br>دورترین |
|---|---|---|---|---|---|
| ١ - مجرد<br>(اشاری،<br>فاعلی،<br>مفعولی،<br>اضافی) | دا = ها<br>= آ | دغه =<br>داغه | هغه | هاغه<br>= آغه | هوغه |
| ٢ - کمی<br>(مقداری) | دونی =<br>دومره =<br>هومره | دغونی =<br>دغومره | هغونی =<br>هغومره | هاغونی =<br>هاغومره | هوغونی =<br>هوغومره |
| ٣ - کیفی<br>(تشبیهی) | داسی =<br>دسی =<br>هسی | دغسی =<br>داغسی | هغسی | هاغسی | هوغسی |
| ۴ - طرفی | دوری | دغوری | هغوری | هاغوری | هوری |
| ۵ - ظرفی | دلته =<br>دالته<br>دلې | دغلته =<br>داغلته | هغلته | هاغلته =<br>هلته | هوغلته =<br>هولته |

**۴ - پوښتنومځري ( استفهامي ضميرونه – *Interrogative Pronouns* )** : له دويم وګړي څخه د يوه وګړي يا يوه څه د پوښتنې لپاره پر کار لوېږي . زياتره د پوښتغوندلو يا غونډو په سر کې راځي او يا هم د غونډلو د لنډون په توګه ځانته کارول کېږي چې په دې لاندې درو ډولو وېشنه مومي :

**١ - څوک - چا ( ؟ )** : د وګړي يا وګړو لپاره راځي چې څه يې کړي وي يا يې کوي يا پرې څه شوي وي يا کېږي . د پېر له مخې، لکه : څوک راغی ؟ څوک راغله يا راغلل ؟ څوک راغلې ؟ څوک ځي ؟ چا وويل ؟ څوک وايی ؟ چا ډوډۍ وخوړه ؟ څوک يې وواهه ؟ څوک يې ووهله ؟ څوک ووهل شو ؟ څوک ووهل شوه ؟ څوک وهل کېږي ؟ څوک د ناټيکنومځري په توګه هم کارول کېږي، لکه : څوک مې وليد ، نن يو څوک راځي چا ووهلم .

**٢ - کوم ( ؟ )** : د وګړي يا وګړو، څيز يا څيزونو ترمخه راځي او د همدغو څومره والی، څرنګوالی، چارونقش يا نور څه پوښتي . کوم د دوو نورو پوښتنومځرو پرخلاف پر پېر سربېره د نوږي له مخې هم اوړون لري، لکه په دې وروسته غونډلو کې :

کوم سړی راغی ؟ کوم سړي وویل ؟ د کوم سړي رنګ ژیړ وی ؟ کومه ښځه راغله؟ کومې ښځې وویل ؟ کومو ښځو – سړیو وویل ؟ د کومو ښځو – سړیو رنګونه ژیړ وي ؟

**۳ –څه ( ؟ )** : زیاتره د یوه څیز یا وګړي ترمخه راځي او څومره والی، څرنګوالی، چارونقش یا نورڅه یې پوښتي او زیاتره په ډېرګړي او نورِ نوم (جنس اسم) پورې اړه لري، بې له دې چې خپله بڼه واړوي، لکه: دا څه دی ؟، دا څه دي ؟، څه دې وکړل ؟، څه دې راوړل ؟، څه یې نرخ دی ؟، څه یې ارزښت دی ؟

## یادښت :

د نورو ډېرو ژبو غونډې پښتنومځرو ترځنګه یو شمېر پوښتکړولونه هم لري : مهالي، لکه : کله، تونې، لکه : چېرې، څرنګیز، لکه : څنګه، څومره ییز، لکه : څومره، استدلالي، لکه : ولې او داسې نور .

## ۵ - پلوي یا کړولي ( سمتي یا قیدي وییکنومځري ) :

هغه نومځري دي چې له آره د یوه کړ او چارلوری څرګندوي، خو په ترڅ کې د ځانګړ نومځرو کار هم ورکوي او هغه هم په بې چار ( مفعولي ) حالت کې . ټولې درې بڼې لري او هره بڼه یې د یوه وګړي ( یو ګړي یا ډېرګړي ) ښکارندویي کوي:

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | را | را |
| ۲ | در | در |
| ۳ | ور | ور |

## ۶ - وییکنومځري ( اداتي ضمیرونه ) :

چې له وییکو ( اداتو )، په بله وینا له سربلو په تېره اوستربلو څخه منځته راځي او د اړوندو اداتو له چار او دندې سره سم د نومځرو ځای نیسي :

**۱ – پکې ( در آن - ها )** : چې د ( ور کې ) د همچاري په توګه دریېم ( یو ګړی یا ډېر ګړی ښځینه یا نرینه ) وګړي په ناوړېدوني په تون پېر کې ښیي، لکه :

باغ وای د ګلونو ( پکې ) ناست وای زه او ته
( خوشال )

د کندهار خواته یې پرځای ( پکښې کې ) او په یو نیم ګړدود کې یوازې " کې " هم په همدغه جاج کارول کېږي .

۲ – **پسې ( بسوی او - ایشان )** : چې د ورپسې د لنډیز په توګه دا هم د پاس په څېر دریېم وګړی په تون پېر کې ښيي، لکه : د زهرو ګولۍ خورم ( پسې )
( ملنګ جان )
" پسې " د مخکړ په توګه هم لکه د څېنو کړونو پرله پسېوالی ځرګندوي، لکه : پسې تلل .

۳ – **باندې ( ورباندې )** : د " ورباندې " د لنډیز په توګه په هماغه پاسني ډول دریېم وګړی په تون او هغه هم په پورتني ( استعلایي ) پېر کې ښيي، لکه :
ګل وای غوړېدلي ( باندې ) ملاست وای زه او ته
( خوشال )

۴ – **پرې ( برآن - برآنها ... )** : دا هم "ورباندې"، یا په بله وینا ، "باندې" ته ورته دنده پرځای کوي، لکه : ما پرې سر کېښود ، پېسې مې پرې پور دي .

۵ – **پې ( به آن )** : چې ( په او پرې ) هم ویل کېږي، په یوه لوښني ( الي ) پېر کې د یوه نوم ځای نیسيَ او له ( پرې ) سره یې په دې غونډلو کې توپېر کولای شو :
زه ( په پښتو = پې ) لیکنه کوم ( من به پښتو می نویسم )، زه ( پر پښتو = پرې ) لیکنه کوم ( من درباره پښتو می نویسم ) .

۶ – **ترې ( از آن - از آنها ... )** : چې د ورځخه ( ورنه، ورځنې ) د یوه لنډ انډول په توګه یو نوم په وتون او تون او هغه هم په کښتني ( استفلایي ) پېر کې ښيي، لکه: ما ترې لاندې یا کښته کېښود ، قلم مې ترې واخېست .

۷ – **ځنې** : کټ مټ د "ترې" او ورځنې ( ورځخه، ورنه ) د همهانیز او همچاریز په توګه کارول کېږي چې په ناکره ډول له " څېنې " یا په کندهاري وینګ " ځینې " سره یو رنګ کاریدنګ لري .
له پلوي نومځرو ( را - در - ور ) سره تړنګونه هم جوړوي .
۸ – **له ( را – در – ور )** پلوي نومځرو سره د بېلا بېلو اوسترېلونو په ملتیا تړښتي وییکونومځري، یه په بله وینا ، تړښتي پلوي نومځري رغوي، د لومړي وګړي لپاره، لکه : راسره، راکره، راځخه، راځنې، راکې، راباندې، رالاندې، راپسې، راپورې، راته . همدا راز له "در" سره د دویم او له "ور" سره د دریېم وګړي لپاره.

## ۷ - اړیکنومځري ( ارتباطي ضميرونه *Relative Pronouns* ) او پښتو ( ! )

پښتو د نورو نژدې خپلوانو ژبو په څېر د اروپايي ژبو ورته اړيکنومځري نه لري، بلکې پرځاى يې له نومونو يا نورو نومځرو ( ځانګړو نومځرو، تولنومځرو، نغوتنومځرو ... ) څخه داسې کار اخلي چې زياتره يوازينى اړيکوييکي "چې" يې له اړوندو ژبنيو يوونونو (واحدونو) لکه اېښيو (مسنداليه وو) او اېښونيو (مسندونو) سره تړاو ورکوي او په دې ډول له آرې غونډلې سره څېرمه غونډله ملګرې کوي چې همدغه څېرمه غونډله بيا اړيکغونډله بلل کېږي، لکه: ځلمی راغی چې زمرى ووينې. دی راغی چې ما وويني ... د کړولي (قيدي) اړيکو د تينګولو لپاره په اړوندو ملو غونډلو کې له نومونو يا نومځرو سره يا غبرګ غبرګ کړولونه جوړه کېږي او يا په يوه کې "کړول" راځي او په بله کې يوازې "چې"، يا هم صفر، لکه "څنګه غر" ( دی )، "هسې کربوړی" (دی)، " هغه سړی بيا "راغی"چې پرون مې" ليدلی وو. "ما دومره" کار وکړ، "څومره چې مې" کولای شو، " کله چې ته " راغلې، "زه هم" راځم . "زه هله" درځم، " کله، چې ته" راشې ....

داسې برېښي چې د اروپايي ژبو اړيکنومځرو هم له ورته اړيکوييکي پرمختيا مونډلي وي، لکه واخلئ انګريزي that چې د اړيکوييکي پر پلازې سربېره وګړيز او ناوګړيز تړاو هم پرغاړه اخلي، يا په بله وينا، هم د ناوګړيز اړيکنومځري which پرځاى راځي او هم د وګړيز اړيکنومځري پرځاى، لکه:

Where is the cheese that (= which) was in the fridge?

" هغه " پنير چېرې دی "چې" په يخچال کې وو ؟

Do you know the woman that (= who) Tom is talking to?

ته " هغه " ښځه پېژنې " چې " تام ورسره غږېږده ؟ [ Murphy 184 ] .

هرګوره په دغو پښتو انډولو کې ځکه له نغوتنومځري "هغه" کار اخېستل شوی چې د انګريزي " the" غونډې پېژند (ارتيکل، حرف تعريف) نه لري. که څه هم سلاوي ژبې روسي، چکي، پولينډي ... هم ارتيکل نه لري، خو اړيکنومځري په بشپړ ډول کاروي. په هر ډول د دغو ټولو ژبو "ليکوالو" په دغه چم سره خپل کار اسان کړی او هغه داچې د غونډلو د ملتيا لپاره يوازې په هماغه يوه کې د اړيکنومځري په کارونه بس راوړي، نه دا چې زموږ غونډې په يوه کې يو اړيکوييکی (صله) راوړي او په بله کې بل اړيکوييکی (موصول). نو که په پښتو کې د دغو نومځرو ړندې پېښې وکړو، نو د اردو غونډې به ترې يوه خپللاسې (مصنوعي) ژبه جوړه شي. د بېلګې په توګه د پورتنيو انګريزي غونډلو تکي پر تکي ژباړه څومره بې مانا او بېخونده برېښي. که څه هم د ارتيکل پرځاى له "هغه" هم کار اخېستل شوی دی او که نه نوره هم پسې مسخه کېده :

" هغه " پنير چېرې دی، ( کوم ) چې په يخچال کې وو ؟

" هغه " ښځه پېژنې . ( له چا سره ) چې تام غږېږده

په پښتو کې دا پېلګې هم لږې نه دي چې د دويمې (آرې) برخای د رومبۍ (ځېرمې) غونډلې يا منځپښې (معترضه) په سر کې راشي او اړيکغونډلې رامنځته کړي، لکه په دې متلو کې:
"چې" ځي ځې، ابازو له به راځي. "چې" د رښتياوو وار راځي، دروغو به کلي وران کړي وي.
يا په دې ځلور غونډله ييز متل کې چې لومړی او درېيمه پکې اړيکغونډلې دي:
"چې" ستړې يې، پر شا به دې کړم - "چې" نه (يې) خورې، څه به دې کړم.
او په همدې (لومړني) دريځ کې له ځان سره کړول يا ځيز نوم او يا هم نومځری هم مختاړی يا روستاړی اکوي، له کړول سره، لکه:
" چېرې چې " اوسې، په خوي به د هغو سې.
له ځيز نوم سره، لکه:
(د) " مېړې چې " مرګ راشي، وازره وکړي.
له نومځري سره، لکه:
" ځوك چې " خوب کوي، نر کټې زېږوي.
" څه چې " کړې، " هغه " به رېبې.

کله کله د اروپايي ژبو په پښتو ژباړه کې دېته هم اړتيا پېښېږي چې د اړيکنومځرو د ټکي پر ټکي را اړونې د مخنيوي لپاره له منځپښو او يا هم جلا جلا خپلواکو غبرګو يا ګډو غونډلو زيات کار واخېستل شي، لکه: زمری چې کور ته راغی، پلار يې وليد يا زمری کور ته راغی او پلار يې وليد ... ان د ډېرو کوشنيو ترلبو غونډونو، يا په بله وينا، وييونو (نومونو) په را اړونه کې د سرباري اړيکغونډلو کارول هم اړين بريښي، که د منځپښو په بڼه وي او يا د پرله پسې جلا جلا ځېرمو يا آرو غونډلو په بڼه. حال دا چې په اروپايي ژبو کې د يوه پېژند يا ارتيکل لکه انګريزي the او يا هم د يوه ننګښي (،) يا بېلنده ليکې (-) په مټ دغه راز اړيکي ټينګېږي، لکه:

Tom, the teacher, came out of the school.

پښتو ژباړه: تام چې ښوونکی دی، له ښوونځي راووت.

په پارسۍ کې، سره له دې چې د پښتو غونډې بې ارتيکلّه ده، تر ډېر ځايه د اړيکنومځرو له پېښو ډډه شوې ده او د پښتو "چې" انډول "که" يا "تا" د اړيکنومځري پرځای ګاروي. دا چې د پورتنی انګريزي غونډلې په بېلګه پکې د يوې نيمې پېښې دود هم رامنځته شوی دی، بيا هم د ټاکلو اړيکنومځرو هومره زيان ورپېښ وي، لکه: د اکرم عثمان د "بازګشت" داستان په سر کې:
... چند روز ميشد که ببو، مادر واسع شوهرش را از دست داده بود (ښخوا په پښتو او پارسي دواړو ژبو کې دغلته د ننګښي پرځای له عربي "يعنی" کار اخېستل کېده).

په کره لیکنی پښتو کې کله کله د لنډیز او اسانتیا د آر له مخې د داسې غونډونو، ویینو ورته تړاو یو بل راز ترسره کېدای شي، لکه : د افغانستان په پلازمینه، کابل کې د زمري په کور، شېرشاه مېنه کې ...
چې د بېلګې په توګه د لومړي غونډ یا سرلیك انګریزي په دې ډول راځي :
In Kabul, the capital of Afghanistan.
پاس د راوړې پارسي بېلګې پښتو ژباړه هم داسې کره راځي :
... څو ورځې کېدې چې د واسع مور، ببو خپل مېړه له لاسه ورکړی وو، د صدیق کاوون دا پارسي پېښې " زوی ته مې برمل ته " داسې سمون موندای شي :
خپل زوی، برمل ته مې، یا : خپل برمل زوی ته مې .

په هره توګه په دغو بېلګو کې هم لېدل کېږي چې کړولي، (وګړیز یا ناوګړیز) ځیز نومیز او نومځریز اړیکي هماغه "چې" ټینګوي، نه پخپله کړولونه، ځیزنومونه یا نومځري. مانا دا چې بیا هم له اړیکنومځرو سره کار نه لرو. ان په وروستي بېلګه کې "هغه" نغوتنومځری چې د (څه) ناټیکنومځري استازي کوي، هم د اروپايي ډوله اړیکنومځري کټ مټ انډول کېدای نه شي . په "مېړې چې" او "څوك چې" کې "مېړی" او "څوك" هم اړیکنومځري نه شي ګڼل کېدای، ځکه چې د خپلو اړیکو واك يې د "چې" په لاس کې دي. همدا "چې" ده چې "مېړی" او "څوك" يې د اښنیو (مسندالیه وو) په توګه د دواړو ملو غونډلو له اښنونو (مسندو) سره نښلولي دي . څوك، هغه او داسې نور نومځري یا ځیزنومونه د "چې" په مټ په دغه رلز یوه چاپېریال کې د اروپايي ناټیکنومځرو تشه ډکوي، نو غبرګون (تکرار) ته يې هېڅ اړتیا نشته.

په دې وروسته درې غونډله یېزه لنډۍ کې د ړومبۍ نیمه کې ړومبنۍ ټوټه یوه اړیکغونډله ده او دویمه ټوټه آره او بیا دا دواړه د وروستۍ نیمکۍ، یا په بله وینا، غونډلې لپاره ځبرمه یا اړیکغونډلې دي .

دلته ځیزنوم له "چې" سره مل شوی او همدغه "چې" ورته هم له "مري" سره د ګړند په توګه تړاو ورکړی او هم يې ورته له بلې غونډلې سره تولي (اضافي) تړاو . له درېیمې غونډلې سره تړاو يې بیا هم د دویمې "چې" په وسیله شوی او د ناټیك (مُبهم) نومځري "دواړه" بر بنسټ يې د اړوند اښنوني (په یوه لحد کې خاورې شونه) د غبرګ اښني یو ټوك ګرځولي دی :
"چې جانان" مري، ما يې کفن کړې
"چې" په یوه لحد کې دواړه خاورې شونه

دا چې په پښتو کې د اړیکنومځرو پرځای اړیکوییکي کارول کېږي، تر اړوندو (اروپايي) ژبو پکې د دغو وییکو رنګارنګي او ډېر پېښني زیاته ده او په جولیز او ناجولیز ډول د ورته دندې لپاره

وېړې لاړې چارې پر کار اچوي، نو اړوندې پېښې يې ګردېسره غونډله پوهيزه (نحوي) ونګه ورمسخ کوي، لکه:

غرزی کندهار ته ولاړ، "څوك چې" هلته خپلوان وګوري .

~ ~ ~، "چېرې چې" هوا توده ده.

~ ~ ~ ، "له کوم ځايه "چې هېلمند ته ځي .

~ ~ ~ ، "کله چې" پر کابل واوره وشوه .

~ ~ ~ ، "له چا سره چې" دېر کتابونه ول .

.... ... ... ... ... ... ...

ما يو ليکانی واخېست، "کوم چې" ښه کار کوي .

~ ~ ~ ، "کوم يوه ته چې" مې اړتيا درلوده .

~ ~ ~ ، "په کوم چې" ليکل کوم .

.... ... ... ... ... ... ...

کار وزيار مې خوښېږي، "کوم" يا "څه چې" نېکمرغي راوړي .

.... ... ... ... ... ... ...

ما دوه مره غنم وپېرل، "څومره چې" مې پېرلای شول .

~ ~ ~ ، "کله چې" مې ورته اړتيا پېدا شوه .

~ ~ ~ ، "له کومو چې" ښې ډوډۍ پخېږي

~ ~ ~ ، "په کومو کې چې" غاورې شګې نشته .

سمې بڼې يې:

غرزی کندهار ته ولاړ چې خپلوان وګوري .

غرزی "څکه" کندرهار ته ولاړ "چې هلته" هوا توده ده .

غرزی "د دې لپاره" کندرهار ته ولاړ "چې بيا" هېلمند ته ولاړ شي .

يا : غرزی کندرهار ته ولاړ او له هغه ځايه بيا هېلمند ته ځي .

غرزی "هله" کندرهار ته ولاړ "چې" پر کابل واوره وشوه .

غرزی کندرهار ته ولاړ "چې" دېر کتابونه ورسره ول .

ما يو ليکانی واخېست چې ښه کار کوي .

ما يو ليکانی واخېست چې مې ورته اړتيا درلوده .

ما يو ليکانی د دې لپاره واخېست چې پې ليکل وکړم ؛ يا : ما يو ليکانی د ليکلو لپاره واخېست

کار وزيار مې "په دې" خوښېږي "چې" نيکمرغي راوړي .

ما " دوه مره " غنم وپېرل " چې " مې پېرلای شول .
ما غنم " هله " وپېرل " چې " مې ورته اړتیا پیدا شوه .
ما " داسې " غنم وپېرل " چې " بنې ډوډۍ " ترې " پخېږي .
ما " داسې " غنم وپېرل " چې " خاورې شګې " پکې " نشته .

د اجمل ختك په خبر یوه وتلي ویناوال، ان په شعر کې، هم د انګریزي - اردو تراغېز لاندې په نااګاهانه ډول اړیکنومځری "څوك" له "چې" سره یوځای کړی دی. سره له دې چې په رومبنی (آره) غونډله کې یې ځیزنوم او نغوتنومځری هم راوړي او په دې توګه یې همدغه اړیکوییکی او انډول "چې" له څېرمې (اړیك -) غونډلې سره د تړاو لپاره بس ول او هسې بېځایه یې له "چې" سره "څوك" ملګری کړی دی:
ځئ " هغه خوارو " ته جنت وګټو
" څوك چي " له موره دوزخیان پیدا دي

په اردو ځیلې کنبېنی، په تېره ناپېیلې لیکنی پښتو کې دغه راز پېښو د یوې - کره لیکنی پښتو مخې ته تر نورو رغاونیزو او وییزو توپیرونو ډېرې کرکنډې راغښتې دي او که همداسې پایښت وموومي، خبره به له ګړدودي او لیکدودي بریدونو څخه ورواړوي او کورته به ژبني برید او بېلتانه ته ورسي . [ د زیاتې خبرتیا لپاره : د همدې کتاب د اړیکوییکو ځانګړې سکالو او د لیکوال نورې اړوندې لیکنې او کتابونه ] .

## ۸ - غبرګون نومځري ( انعکاسي ضمیرونه *Reflective Pronouns* ) :

هغه نومځري دي چې د چار هم کړند اوسي او هم کړي . په پښتو کې دا راز نومځري له نومونو یا ځانګړنومځرو سره د " ځان " په ملګرتیا کولو لاسته راځي چې زیاتره په همدې یوه یو ګړي (مفرده) بڼه هرځای راتلای شي، لکه: ځلمي ځان ژوبل کړ؛ ځلمي او زمري "ځانونه" ژوبل کړل : هغه ځان ژوبل کړ، هغوی ځانونه ژوبل کړل . له ډېر ګړي ځیزنوم سره د یو ګړي په توګه، لکه: پر لمبو باندې ځان ولې پتنګان ... ( خوشال پ - ۱۸۴ ) .

د پوره څرګندتیا لپاره له "ځان" سره "ځپل" هم ملتیا کوي، لکه : هغوی "ځپل ځان" وژغوره . که څه هم "ځان" له آره د "ځپل" ځایناستی او همپازی دی .

## ۹ - ناټیکنومځري ( ابهامي ضمیرونه *Indefinite Pronouns* ) :

چې د یوه ناجوت (نامعین) وګړي یا ځیز پرځای راځي او که د نومونو مختاړي شي، پر ښتاینومو بدلېږي او که بیا په اېښونی (مسند) کې راشي، نو د کړولو چار پرغاړه اخلي . ناټیکنومځري هله

یووستوی کارول کېدای شي چې ترمخه یې نژدې پر نژدې څیز نوموونه یا نور نومځري راغلي وي . د بېلا بېلو دندو له مخې په لاندې ډولو دي :

۱ – **هر** : چې زیاتره په یو ګړي اړه لري او د نوري او پېر له مخې لرو ډېر اوړون لري، لکه : هر ځلمی، هره پېغله، هر خت (کمیس)، هره ګنډۍ (کرتی)، هرې پېغلې ... . له ډېرګړي سره، لکه : هرلس هلکان او هرلس نجونې سره یوه یوه لوبډله جوړوي .

په اوښتي ډېر ګړي کې یې ګرداني – و ملګری کېږي، لکه : هرو پنځو شاګردانو ته یو لیکی ورسید . یا زه په هرو دوو ورځو کې (یوځل) لمبا ته ځم . له پیژند "یو" او ځېنو نورو ناټیکنومځرو سره ترېښتي هغه هم جوړوي .

۲ – **بل** : یوازې د شمېریدونکي یوګړي نوم پرځای راځي او یا ورسره د نغوتنومځري غونډې ملګرتیا کوي، لکه : بل ځلمی، بله پېغله، د بل ځلمي، د بلې پېغلې ... . که په یوه ژبني چاپېریال کې د اړوند نوم له مخه راغلې وي، نو "بل" ځانته هم راتلای شي، لکه : یو سړی راغی، پسې بل راغی .

۳ – **نور** : د بل سرچپه یوازې د شمېرېدونکي ډېرګړي او نه شمېریدونکي یوګړي او ډېرګړي نوړ نوم (جنس نوم) ښکارندویي او ملګرتیا کوي او څه ناڅه اوړون لري، لکه : نور هلکان، نورې نجونې، نور غنم، نوره وسپنه، نوره خاوره، نورې اوبه، د نورو هلکانو، د نورو پېغلو، د نورو غنمو، د نورې وسپنې، د نورې خاورې، د نورو خاورو، د نورو اوبو ... .

۴ – **ټول** : زیاتره په ډېرګړي او ( یوګړي او ډېرګړي ) نوړ نوم اړه لري، مانا دا چې د نوړي، پېر او څه ناڅه ګنې له مخې اوړون مومي . او له کندهارۍ پښتو پرته هماغسې اوړون مومي، لکه: ټول هلکان، ټولې نجونې، ټول تېل، ټوله خاوره، ټولې خاورې، ټولو هلکانو، د ټولو هلکانو، د ټولو نجونو، ټولو نجون، د ټولو تېلو، د ټولو تېلو، د ټولې خاورې، د ټولو خاورو ... .

له ټولنوم ډوله او نه شمېرل کېدونکو یو ګړو نومو سره د "ګرد" یا "درست" په مانا د ستاینوم په توګه، لکه : ټول ولس، ټول ښوونځی، ټول ځان، ټوله ونه، ټول غم، ټول هېواد ، ټول کتاب، ټوله نړۍ، ټوله سیمه ... .

۵ – **واړه** : د ټول هممانیز دی، لکه : واړه هلکان، واړې نجونې، واړو هلکانو، واړو نجونو، واړه خاوره، واړې خاورې، دواړې خاورې، دواړو خاورو ، د ستاینوم یا په بله وینا کړول په توګه، لکه د خوشال په دې شعر کې :

واړه عشق دی چې یې سر راته ګیاه کړ ... .

۶ – **دواړه** : تل د وګړی ( تثنيه ) دی او په نوري او پېر اړه لري، لکه دواړه هلکان، دواړې نجونې، د دواړو هلکانو، د دواړو نجونو . . .

۷ – **څه** : پر پوښتنومځري سربېره يو ناوړيدونی ناټيك نومځری هم دی، لکه : څه مې ولېدل. څه نشته. چې نه کار – هلته څه کار !

" **څه** " له نورو ناټيکنومځرو او ځينو ستاينومونو سره تړښتي ناټيك نومځري جوړوي، لکه : بل څه، نور څه، هرڅه، هېڅ څه ( هېڅه )، لږ څه، ډېر څه : همدارنګه يې له پېژند ( يو ) سره ناټيکوالی يو څه راکمېږي، لکه : يو څه . د پېژندوييکي په دريځ کې له ډېرګړي يا نه شمېر کېدونکي سره، لکه : څه وګړي يا څه اندېښنه نشته . په متل کې : پر ما څه ورانه، څه ودانه .

۸ – **ځينې** : د ډېر ګړي شمېرل کېدونکي نوم ښکارندويي کوي، لکه: ځينې شاګردان، ځينې شاګردانې، ځينو شاګردانو . . .

۹ – **هېڅ** : د يوه ناټاکلي ځيز يا ځيزونو نشتوالی ښيي او کوم اوړون نه لري، لکه: هېڅ هلك، هېڅ هلکان، هېڅ نجلۍ، هېڅ نجونې، هېڅ هلکانو، هېڅ نجونو، هېڅ غنم، هېڅ غنمو . . . هېڅ له پېژند (يو)، او زياترو ناټيکنومځرو سره د لومړي ټوك په توګه تړښتي (ترکيبي) ناټيکنومځري منځنه راوړي، لکه: هېڅ يوه، هېڅه(هېڅ څه)، هېڅ کوم، هېڅ بل، هېڅ نور، هېڅوك (هېڅ څوك). يا په درې ټوکيزه تړنګ (درې جزئی ترکيب) کې، لکه: هېڅ کوم يو، هېڅ کوم څوك يا په څلور ټوکيز تړنګ کې، لکه: هېڅ کوم يونيم، هېڅ کوم يو بل . . . په " هېڅا " کې يې – ځ له چ سره همرنګ شوې او يکې مدغم شوې ده .

۱۰ – **څوك** : هم پر پوښتنومځري سربېره يو ناټيك نومځری هم دی چې هم د ځيز نوم ښکارندويي کوي او هم د پېژند ( ارتيکل )، لکه : نن څوك راځي، څوك يو کار کوي، څوك بل، چا مې ليکانې واخېښت، څوك سړی راروان دی، څوك ښځه مې وليده . په اوښتي پېر کې، لکه : چا نه مې ليکې ورکړی دی . خو، اوس مې هېر دی، له چا نه مې ليکې واخېښت بيا مې هېر شو، خپل کار په چا نه کوم، زلمی له چا سره پر يوه لاره نه ځي، زه نه څوك وهم، نه پر چا کار لرم، څوك چې بل چاته کوهي کېني، پخپله يکې لوېږي، له ما سره د چا څه کار دی، په شپه کې چاته ورتګ ښه نه دی . . . چا ښېلوره مې د مينې نړۍ ورانه کړه، څوك دښنه راته په لار کې ناست دي .

له پېژند ( يو ) او ځينو نورو ناټيکنومځرو سره هم تړښتي ( ترکيبي ) ناټيکنومځري جوړوي، لکه : يو څوك، هر څوك، هېڅوك، بل څوك، نور څوك، څوك سړی، کوم څوك، کوم چا، يا لکه پېښنوريان چې وايي : چا ظالم مې ژبه پرې کړه . د رحمان بابا په شعر کې يې هم ځرك لګي .

۱۱ - **سړی** : پر ځیزنوم او ستاینوم سربېره یو ناټیکنومځری هم دی. لکه: سړی دې هڅه کوي چې ځوك ترې ونه خوربړي. باید د سړي له لاسه داسې کار ونه شي چې وروسته پرې پښېمان شي. دلته د سړي هره هیله نه پرځای کېږي. سړی دې سړي ته گوري او بیا دې ورسره همغسې چلند کوي. لومړی دې سړی سړي ته پور نه ورکوي او که ور یې کړ، نو بیا دې ترې ژر نه غواړي. له ځېنو نورو ناټیکنومځرو سره تړنگونه (ترکیبونه) هم جوړوي او په دې توگه یې نور هم پسې ناټیك او ناپېژندویه کوي، لکه: یو سړی دې خواته رادرومي، یوه سړي ته راز ویل په کار نه دي. هر سړی، (هو. هر سړی پیدا دی خپل خپل کار لره کنه - خوشال)، هېڅ سړی نه ښکاري. سړی سړی سم کار ته نه پرېږدي. له خوازك پرته بل سړی مې ونه لید. ځوك سړی زموږ خواته راځي. کوم سړی چې د سړي نه خوښېږي، څه په کار چې پرمخه ورځي. څه سړي غوندې رادرومي، یونیم سړی خپل ژوند ته پام نه لري، کوم نیم سړی مې ونه لید، کوم یونیم سړی راغی ...
۱۲- **پلانی او بیستانی** هم له عربي او دري (فلان - بستان) څخه پښتو شوي ناټیکنومځري گڼل کېږي.

نور بدلگري ناټیکنومځري چې له آره کړولونه، په تېره اړیککړولونه، پوښتنکړولونه. پېژندچار پرځای کوونکی شمېر نوم (یو)، په یووستوې بڼه یا هم له دغو توکونو سره په ملتیا هم یو لړ ساده یا تړښتي ناټیکنومځري منځته راوړي.

۱۳- " **ځو** " : چې له آره زماني کړول او پوښتکړول دی، په دې غونډلو کې د یوه ناټیکنومځري پازه راخپلوي. لکه : "ځو" پېسې مې په کار دي، ځو کتابه مې په کار دي. له ناټیکنومځري "نور" او پېژند "یو" سره یو تړښتي ناټیکنومځری هم جوړوي، لکه : "ځو" مې واخېستل او "ځو نور" به وروسته واخلم. "یو ځو" کسه راغلل، "یو ځو نور" هم راځي.

۱۴- " **ځومره** " : بیا د اړیککړول او پوښتکړول د پازو ترځنگه کله ناکله د ناټیکنومځري پازه هم پرغاړه اخلي. لکه "ځومره" مې چې لگېدل، وامې خېستل. د "هر" ناټیکنومځري په ملتیا تړښتي ناټیکنومځری رامنځته کوي، لکه : "هرځومره" دې چې په کار وي.

۱۵- **ډېر** " او " **لږ** " ستاینوم د ناټیکنومځري په دریځ کې هم هغه مهال راځي چې ترمخه یې اړوند ځیز نوم یا نومځری راغلی وي. لکه : " ډېره " لاړه، " لږ " ولاړه: "ډېر" ولاړل او نور هم پسې روان دي. له "نور" ناټیکنومځري سره، لکه : "نور ډېر" یا "ډېر نور" هم راغلل.

۱۶ - **نور ستاینومونه**، لکه : "بهرني" راغلل خو "کورني" لا نه دي راغلي.

۱۷ - **شمېر نومونه** هم که د مخنی نغوتې یا قرینې له مخې ځانته وکارول شي، پر ناټیکنومځرو بدلېږي، لکه: یو راغی بیا دوه راغلل، پسې درې شول، ځلور شول. هسې خو "یو" د ناپېژند

وييكى (نكرې) په توگه له هر شمېرنوم او ځيزنوم سره ناټيكنومځرى رامنځته كوي. لكه: يو دوه، يو لس، يو زر ... (افغانى مې په كار دي) يا يو شمېر (كلي وران شول)، يو موټى (خاوره)، يوه برخه (كار)، يو اندازه (پېسې، اوړه ...) .

پر دغو پورتنيو آرو او څېرمه ناټيكنومځرو سربېره يونيم توكى او وييكى هم دغه دريځ راخپلوي: - " دا " چې له آره يو نغوتنومځرى ( ← ) دى او د ګڼې له پلوه ناوړېدونى، د انگريزي " it " يا جرمني " es " غوندې د يوې ړومبنى څېرمې غونډلې د يوه ناجوت ( مُبهم ) كړند ( فاعل ) په توگه داسې راڅرگندېږي :

" دا " ناشونې ده چې نن درشم .

" دا " به څومره نازغمه وي چې كلونه كلونه تا ونه وينم .

" دا " څه توكې نه دي چې ځان د زمري په خوله كې وركړې .

همدارنگه بېلبنتي نغوتنومځرى " داسې " هم درواخله، لكه :

" داسې " برېښي چې نن هوا ښه شي ...

## ۱۰ - گډ تولنومځرى ( اشتراكي ضمير ) :

پښتو له "خپل" څخه پر نورو پازو سربېره د يوه تولنومځري (ملكي ضمير) كار هم اخلي او دا چې د درو واړو وگړو لپاره راځي، نو گډ تولنومځرى (مشترك ملكي ضمير) بلل يې غوزه دي، لكه شپون خپله رمه پيايي، رمه خپل شپانه وپېوله، هرڅوك په خپل كار كې خوښ دي، ځښې خلك خپل ځان نه پېژني، ځلمى په خپله خونه كې كار كوي، خوازك خپل كورته ناوخته ځي، خوازك له خپل ورور سره ښار ته ولاړ، بري له خپلو ملگرو څخه مننه وكړه، بريالى له خپلې خوښې څخه نه اوړي، ځېنې په خپله گناه نه پوهېږي .

خپل د پېژند او ناټيك ستاينوم په توگه هم كارول كېږي، لكه: خپله لاسه، گله لاسه! چې بيا هم پكې د تول (ملكيت) جاج (مفهوم) پروت دى. په بيا ځلي ډول لكه په مخني بيت كې: (هو، هرسړى پيدا دى خپل خپل كار لره كنه) "خپل" د نورې او پېر له مخې بشپړ اوړون لري، خو د ګڼې له مخې نه، له "ځان" سره غبرگون نومځرى جوړوي، لكه: خپل ځان مې ژوبل كړ. او له دې سره سره د هماغه تولوالي او پېژندوالي دنده هم څرگندوي .

## ۱۱ - تول - ځانگړي نومځري ( شخصي - ملكي ضميرونه ) :

چې د غبنتليو تولنومځرو او غبنتليو ځانگړو يا نغوتنومځرو په يو ځاى كېدو سره جوړېږي او په دې توگه پر يوه وخت د دوو دوو نومځرو دنده پرځاى كوي، له همدغه امله دوه اړخيزه اوړون لري

او هغه هم د نوېږي. گڼې. پېر او وگړي له مخې چې ځانگړي نومځري ورسره یوازې په دریېم وگړي اړه لري. لکه:

## ۱ - تولنومځري + یو گړي ځانگړنومځري :

| گڼه / وگړي | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | زما دی - هغه ( ده - هغه ∂ )<br>زما دا - هغه ( دې - هغې ) | زموږ دی - هغه ( ده - هغه ∂ )<br>زموږ دا - هغه ( دې هغې ) |
| ۲ | ستا دی - هغه ( ده - هغه ∂ )<br>ستا دا - هغه ( دې - هغې ) | ستاسې دی - هغه ( ده - هغه ∂ )<br>ستا دا - هغه ( دې - هغې ) |
| ۳ | د ده دی - هغه ( ده - هغه ∂ )<br>د هغه a دی - هغه ( ده - هغه ∂ )<br>د دې دی - هغه ( ده - هغه ∂ )<br>د دې هغه - هغه ( ده - هغې ) | د دوی دی - هغه ( ده - هغه ∂ )<br>د دوی دا - هغه ( دې - هغې ) |

## ۲ - تولنومځري + ډېر گړي ځانگړنومځري :

| گڼه / وگړي | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | زما دوی - هغوی | |
| ۲ | ستا دوی - هغوی | زموږ دوی - هغوی |
| ۳ | د ده دوی - هغوی<br>د هغه دوی - هغوی<br>د دې دوی - هغوی<br>د هغې دوی - هغوی | ستاسې دوی - هغوی<br>د دوی دوی - هغوی |

## ۳ - تولنومځري + لنډ یو گړي نغوتنومځري :

| گڼه / وگړي | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | زما دغه - | دغه ∂ - دغې | زمونږ - دغه - | دغه ∂ - دغو |
| ۲ | ستا دغه - | دغه ∂ - ~ | ستاسې دغه | دغه ∂ - دغو |
| ۳ | د ده دغه - | دغه ∂ - ~ | د دوي دغه | دغه ∂ - دغې |
| | د هغه دغه - | دغه ∂ - ~ | | |
| | د دې دغه - | دغه ∂ - ~ | | |
| | د هغې دغه - | دغه ∂ - ~ | | |

## ۴ - تولنومځري + لر يو ګړي نغوتنومځري :

| گڼه / وګړی | يو ګړی | | ډېر ګړی | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | زما هغه - | هغه ∂ - هغې | زمونږ - هغه - | هغه ∂ - هغې |
| ۲ | ستا هغه - | هغه ∂ - ~ | ستاسې هغه | هغه ∂ - هغې |
| ۳ | د ده هغه - | هغه ∂ - ~ | د دوی هغه | هغه ∂ - هغې |
| | د هغه هغه - | هغه ∂ - ~ | | |
| | د دې هغه - | هغه ∂ - ~ | | |
| | د هغې هغه - | هغه ∂ - ~ | | |

## ۵ - تولنومځري + لالر يو ګړي نغوتنومځري :

| وګړی گڼه | يو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زما هوغه - هوغه ∂ - هوغې | زمونږ هوغه - هوغه ∂ - هوغې |
| ۲ | ستا ~ ~ ~ | ستاسې ~ ~ ~ |
| ۳ | د ده ~ ~ ~ | د دوی ~ ~ ~ |
| | د هغه ~ ~ ~ | |
| | د دې ~ ~ ~ | |
| | د هغې ~ ~ ~ | |

او همداسې ملګري نغوتنومځري هم ډېرګړي کېږي. خو يوازې له اوښتي ډېرګړي پېر سره پايله بدلوي. لکه زما يا زموږ مېلمنو ډوډۍ وخوړه : زما، يا زموږ هغو هم وخوړه . دا دی د تول + ځانګړنومځرو د پوره څرګندتيا لپاره څو بېلګيزې غونډلې وړاندې کوو :

| | |
|---|---|
| ايمل : | زما زوی ناروغ دی . |
| خوشال : | زما هغه هم ناروغ دی . |
| ايمل : | زما زوی ښوونځي ته ځي . |
| خوشال : | زما دی لا کوشنی دی . |
| ايمل : | زما وراره ښوونځی ووايه . |
| خوشال | زما هغه ∂ هم ووايه . |
| ايمل : | زما ماما آس واخېست . |
| خوشال : | زما هغه ∂ هم واخېست . |
| ايمل | زما ورور خلمي ته يو ليکی ورکړ . |
| خوشال | زما ده هم هغه ∂ ته يو ليکی ورکړ - زما هغه ∂ هم هغه ته يو ليکی ورکړ . |
| ايمل : | زما زامنو ښوونځی پای ته ورساوه . |
| خوشال | زما " دغو " يا " هغو " هم پای ته ورساوه . |
| ايمل | زما ليکی ځلمي واخېست . |
| خوشال | زما دا زمري واخېست. زما هغه زمري واخېست<br>زما دا هم ده واخېست، زما هغه هم هغه واخېست . |
| ايمل . | زما ورځنی ګټه سل افغانۍ ده . |
| خوشال : | زما دا دوه سوه افغانۍ ده . |
| ايمل : | د ده کور لرې دی . |
| خوشال : | د ده دا نژدې دی، د ده هغه هم لرې دی . |
| ايمل : | د هغه مور ناروغه ده |
| خوشال : | د هغه هغه هم ناروغه ده ( د هغې هم ناروغه ده ) |
| ايمل : | د دې ورور زما ټولګيوال دی . |
| خوشال | ستا دی بيا زما ټولګيوال دی |
| ايمل : | زما مور وپلار مړه دي |
| خوشال | زما هغه ژوندي دي . |
| ايمل . | زما مور وپلار کوم رسمي کار نه لري . |
| خوشال | زما دوی هم کار نه کاوه ( زما هغوی هم کار نه کاوه ) |
| ايمل | زموږ کلی له ښاره لرې دی . |

| | |
|---|---|
| خوشال | زموږ دا هم له ښاره لرې دی |
| ایمل | زموږ هغه دومره لوی نه دی |
| خوشال | زموږ دا ستاسي له هغه څخه ډېر لوی دی |
| ایمل | د دویم ټولگي شاگردانو کتابونه نه دي اخیستي |
| خوشال | د لومړي ټولگي هغو هم نه دي اخیستي |
| ایمل | د دریم ټولگي شاگردانو خپل کتابونه بېرته ورکړي دي |
| خوشال | د څلورم ټولگي هغوي خپل هغه بېرته نه دي ورکړي |

## کړاوونه :

۱: ګړپوهه له څه نه غږېږي ؟
۲: ګړپوهه لومړی پر کومو دوو څانګو وېشل کېږي ؟
۳: د اوړېدونو ګړونو څانګه کومې برخې رااخلي ؟
۴: نوم ګړپوهه له څه نه غږېږي ؟
۵: د نوم اوړون ( اسمی ګردان ) اړخونه کوم دي ؟
۶: نوم څه ته وايي او کومې څلور ډلې رااخلي ؟
۷: څيز نوم او ستاينوم څه توپير سره لري ؟
۸: نومځری څه ته وايي او په پښتو کې پرڅو ډلو وېشل کېږي .
۹: نومځری ( ضمير ) د څو اړخو له مخې اوړون مومي ؟
۱۰: په لاندې ټوټه کې هر ډول نوم نښه کړئ او ونوموئ !

بارك له ما څخه يو ليکی وغوښت، خو ما ترې وژغوره، ځکه ټولګی يې راڅخه ښېل دی. په ښوونځي کې د ده دا دريېم کال دی او زما (دا) دويم. له يوه ټولګيوال سره يې چال چلند سم نه دی. دی خورا چوغلګر دی او د يو بل خبريال. د يوه خبره يوه ته وړي او د بل، بل ته. کله يې له يوه سره اخ و ډوب وي او کله يې له بل سره. څوك ترې ارام نه دي. له هرچا سره چې يوځل کښېني، بيا يې ورته ويار او بد وايي.

د غله په غره کې ځای نشته. پر بد بوټي سپی هم متيازې نه کوي. هرسړي ته په کار دي چې خپل کار ته پام ولري او د بل په کار کې ځان ګډ نه کړي. وينبياران وايي :

د خوارې کونډې زويه – خپلې روټې زويه ( ژويه ) !

۱۱: ناوښتوني نومونه کوم دي ؟
۱۲: د نرينه نومونو پاېلې کومې دي ؟
۱۳: ښځينه نومونه په څه پېژنئ ؟
۱۴: آن، يان، ګان او آنې، ګانې سره څه اړيکي لري ؟
۱۵: د ننداور، پور، ترور، نرور، ډېرګړي وښياست !
۱۶: د "مور او لور" ډېرګړي څه راز دي ؟
۱۷: اوښتوني نومونه کومو نومونو ته ويل کېږي، څنګه او کله اوښتنه مومي ؟
۱۸: ( زما دا ) يا ( زما هغه ) په کومو نومځرو کې راځي ؟
۱۹: "ما" او "تا" کله د کړي ( مفعول ) دريځ راخپلوي ؟
۲۰: ناټيکنومځري راوپېژنئ او وليکئ !
۲۱: نغوتنومځري څنګه اوړون ( ګردان ) مومي ؟
۲۲: ( را – در – ور ) څه راز نومځري دي او په کومو وګړو اړه لري ؟
۲۳: په پښتو کې درملونه او ټېرنومونه يو ګړي دي که ډېر ګړي ؟
۲۴: په پښتو کې معلومات او بين النهرين يو ګړي دي که ډېر ګړي ؟
۲۵: په پښتو کې ژبنومونه ولې يو ګړي ښځينه دي ؟

## دویمه برخه :

# کړ ګړپوهه - د فعل صرف - *Conjugation*

په کړ ګړپوهه کې د کړ له راز راز ډولونو او اوړونونو (ګردانونو) څخه خبرې کېږي.

**کړ** : هغه ويی (لغت) دی چې د زمانې په چوکاټ کې د يو څه پېښېدنه څرګندوي.
دا چې د کړ جاج (مفهوم) بې د زمانې له ملګرتيا نه پوهېدل کېږي، نو ځکه کړ ته مهال ويی هم وايي.

### ۲-۲۸: کړ نوماند يا کړنومی ( مصدر ) :

په پښتو کې يو کړ په مصدر (کړنوماند يا کړنومي) نومول کېږي، لکه چې وايو : د "وهل" کړ يو لېږند (متعدي) کړ دی. که نه په کار وه، هر کړ د خپلې ولی، لکه اوه - په نامه ياد شوی وای. عربي مصدر په اروپايي پېښو " ناپای " هم راپښتو شوی (پالوال ۵-۱۰ مخ) او هغه په دې لاسوند چې يو ناپای Infinitive کړ دی، يا په بله وينا، يوه ټاکلې اوړوني بڼه (صيغه) نه راڅرګندوي، بلکې د نوم غونډې له زماني اړوندی ازاد دی او دا چې يوه ناپايه کړنه او پېښېدنه څرګندوي، نو ښايي له همدې لاسونده ورسره په پښتو کې د يوه ډېرګړي (نرينه) چلند کېږي او همداسې اوړون مومي.

### د کړنوماند ( مصدر ) جوړښت او دنده :

په پښتو کې يو کړنومی په يوه يوګړيز (يو مورفميز) روستاړي (- ل) پېژندل کېږي، دغه روستاړی چې لړو ډېر د دويم يا تېرمهال بنسټ د روستاړي په توګه هم راڅرګندېږي، په کړولی (فعلي ريښې) پورې سيده نښلي. په دې آړ (شرط) چې ګړ ساده، يا په بله وينا، يو ګړيز يا يو مورفيميز

وي او که بېلبنتي او ترښتي (اشتقاقي او ترکيبي) وي، نو په ستبې يا مونډ (stem) پورې نښلي، نه په کړ ولی پورې، لکه: مونډل، وهل، خوړل په مونډ پورې، لکه: غورځول، اوبول، کښېناستل، پرېوتل، يوځای کول، لاس ته راوستل، تود تود کېدل، نبغ نبغ کېدل، پوخلا کېدل يا کول ...

د کړنومي يا مصدر دنده همدا ده چې يو کړ ونوموي، کټ مټ، لکه: ونه، ډېره، سړی، کندهار ... دا چې مصدر د يو څه کړنه او پېښېدنه څرګندوي، نو د کړنې او پېښېدنې نوم دی، نه د کړ آره (منشا) يا "صدورځی"، ځکه زماني او نور اوړوني اړخونه نه لري دا چې دوديزو ژبپوهانو "مصدر" بللی او بيا يې له خپلې ويېيزې (لغوي) مانا سره سم د کړ د بېلا بېلو بڼو (زېرېند) او يا بنسټ بللی دی. يو بې سروبوله خبره ده. (ربنتين: ۱۳۲۷ او ۱۳۴۴)
د کړ بنسټ هماغه کړولی (فعلي ريښه) ده چې پخپله مصدر ترې د (- ل) په ورنښلولو جوړېږي

که مصدر په رښتيا سره د ټولو فعلي بېلونو او بڼو بنسټ او زېرېند وای، نو بايد په هره بڼه کې روغ رمټ پاتېدای، حال دا چې موږ ګورو، يوازې کړولی (فعلي ريښه) په هره بڼه کې خپل شتوالی ساتلای شي، لکه: "وهـ" په "وهم"، وهو، وهې، وهي، وهئ يا وواهه، وهلی دی او داسې نورو کې. له دې کبله د مصدر پرځای "کړ نومی" يا "کړ نوموونکی" ويل په کار دي، ځکه چې همدغه "نومول" يې دنده ده.

که د مصدر نومونه (اصطلاح) پر يوه کړ نوم واړوو، ښايي له نورو ډېرو کړ نومونو سره يې ګډون راشي، لکه خوړنه، خوړانه، خوړنګ، خوړونکی، خوړلی، خوړ، خوړين، خوړوونکی، خوړولی، خوړند، خوړنده، خوړندی، خوړی، خوړکه او داسې نور چې د خوړل غونډې له "خوړ" او "خوړ" ولی ريښې څخه جوړ شوي دي.

د پښتو مصدر د يوه نوم په توګه تل ډېرګړی نارينه دی او يوازې د پېر (حالت) له مخې اوړون مومي، لکه
ډېرو لوستلو ستومان کړم، يا د عبدالقادر خټک په لاندې شعر کې:
مه شه خوښ د پادشاهی پرتخت (ختلو)
همېشه يې غم کوه د (پرېوتلو)

## د کړ اوړوني توکونه او اړخونه یا ټولۍ (کټیګورۍ):

یو اوړون موندلی (ګردان شوی) کړ تر څوارلسو توکونو پورې په جولیز او ښکاره ډول یا ناجولیز او ناښکاره ډول پخپل ځان کې راځایولای شي، چې څه ناځه د هماغو له مخې راز راز بڼې او اوړون مومي او هغه بڼې دا دي:

**۱ - مخکړ** **Preverb** : چې د کړ یو بشپړوونکی او پلو ټاکونکی ټوک (جز) ګڼل کېږي، لکه: کنښې -. په "کنښېناستل" او "کنښې وتل" کې او "پرې" په پرېوتل او پرېولل یا پرېمینځل کې

**۲ - کړولۍ یا کړ بنسټ** ***Verbal root*** : چې د کړ رېښتینی بنسټ دی، لکه خور-√ یا خوړ -√په خورم، خورو، خوري ... او وخوړ، خوړای، خوړلای او داسې نورو کې. خوړ - هم له آره خور دی چې د تېرمهال لپاره یې راوروسته "- ر" پر "- ړ" اوښتې ده. په بله مانا، دلته له غږیز بدلون سره ګړیز بدلون هم راغلی دی چې دې راز بدلون ته مورفو — فونیمیکي بدلون وايي

کړولۍ پر دوه ډوله ده: یوه لومړۍ یا وسمهال (حال) ولۍ، لکه: خور-√ او وین√ بله دویمه یا تېرمهال (ماضي) ولۍ، لکه: خوړ -√ او لید -√. دا دواړه (ولۍ) په ګډه د یوه راز کړ، اوړون (ګردان) بشپړوي. او سترمهال کړ (مستقبل فعل) کومه جلا ولۍ یا بنسټ نه لري، بلکې هماغه وسمهال ولۍ یا لومړۍ ولۍ ورسره شریکه ده. دویمه ولۍ، یا په سهې مانا، "بنسټ" پر دې سربېره چې ګرد تېرمهال کړونه ترې جوړېږي، د وسمهال او سترمهال بېچار کړونه (مجهول افعال) هم ترې جوړښت مومي. کړ نومونه بیا له دواړو ولیو څخه لرو ډېر منځته راځي.

د کړنومي یا مصدر جوړښت زیاتره له تېرمهال بنسټ څخه دود لري، لکه: خوړل، لیدل. دلته لیدل له لید -√ ولۍ څخه جوړ شوی چې دویمه یا تېرمهاله ولۍ بلل کېږي او لومړۍ یا وسمهال ولۍ یې وین - ده. د دغو ولیو پارسي انډولونه د ید-√او بین -√دي. په زړه پارسۍ کې د بین -√ پخوانۍ بڼه وین√ وه).

**۳ - سټه** ***Stem*** : سټه یا مونډ د یوه ګردان شوي کړ هغه برخه ده چې له کړولۍ او یوه بل ګرداني توکه رغېدلې وي، په بله وینا، که له ګردان شوي کړ څخه مخکړ یا بل مخنۍ توك (لکه و -wa) او وګړیزه پایله لرې کړ شي، د کړ سټه پاتېږي. پښتو کړپوهه، یا په بله مانا. کړ اوړون د نورو نومهالو آریاني ژبو غوندې د دوو ګورو (متقابلو) سټو پربنسټ ټیکاو لري. یوه وسمهالې او بله تېرمهالې سټه. وسمهالې سټه یا یووستوې، یا په بله ژبه، له کړولۍ سره برابره وي، لکه: په خورم، حورو ... کې، یا یو ساده توك یا نبنه (- ېږ -) په نالېږند کړ (نخښېږم، کېږم) یا لکه (او - aw) په لېږند کړ او لېږند چار کړ (اچولوم، اچوو ... یا نځوم، نځوو ...) کې تېرمهالې سټه

هم، یا یووستوې، یا په بله وینا، له کړولې سره برابره وي، لکه : په (و) پېره، (و)پېرل ... کې، یا یو ساده نبنه لري، لکه " - ید - " په نالېږند کړ، لکه (و)رسېدم، (و)رسیدو ... کې د ستې دغه رغنده توك چې له وسمهالي " - بړ - " سره انډولتیا لري، په لېږند تېرمهال کړ کې پر ( - ل - al ) اوړي او په ځینو ګړدودو کې دواړه غبرګ کارول کېږي، لکه په (و)رسېدلم، (و)رسېدلو ... کې ځینې یووستوې وسمهالې او تېرمهالې ستې سره یوازې په یوه ناڅیز مورفو- فونیمیکي بدلون توپیر مومي، یا په بله وینا، کوشنۍ ترینې جوړې (←) رامنځته کوي، لکه خور-/خوړ- او مر- مړ- په وخوري / وخوړ او ومري / ومړ کې.

د مکنزي ( ۵۵۹ مخ ) د اړوندو څرګندونو له مخې د تېرمهالې ستې نبنه له آره په زړې ببچاړ کړ نوموالي ( صفت مفعولي Perfect passive participle ) پایلې ( - ته - ta - ) پسې ځي چې هغه خجن ( - ل - al - ) دی او زیاتوي، سره له دې چې په پښتو کې تر بلې هرې هممهالې آریانې ژبې فونېتیکي پرمختیاوو د پخوانۍ غاښیزې ستې ببلتیا ( ممیزه ) ګرد سره غورځولې او یا یې پر ( - ل - ) اړولې ده . خجن ( - ل al - > اتي ati - ) چې له کړنومیزې (مصدري) پایلې سره سمون خوري او په تولیز ډول یې نالېږنده وسمهالې نبنه (بړ -) او ورسره لړو ډېر جوړه کېدونکې تېرمهالې انډول (- ید - ) ښکارندویې کوي، له آره د تېرمهال ګرداني توك ګڼل کېږي، خو لږو ډېر د ګړدودي لاسوند او اسانتیایي آر له مخې په کره لیکنۍ پښتو کې ترکېدونه غورځول کېږي او پرځای یې خپلواکونج یا واولي بدلون (ablaut) د ګرداني پایلو لپاره بس ګڼل کېږي، لکه په دې وروسته ګردانونو کې . دلته د ببلګې په توګه ګورو چې د لېږند کړ (خوړ -) او نالېږند (راتل - راغل -) د بشپړ او نابشپړ تېرمهال یوګړی نرینه بې ( ل - ) اوړون مومي (وخوړ، خوړ او راغی، راته) او ښځینه هغه که یوګړی دی، که ډېرګړی، ( - ل ) توکی یوازې په نالېږند هغه کې غورځوي او په لېږند کې دا پېښنه ډېره لږه ده .

یا په بله وینا، په بشپړ او نابشپړ لېږند تېرمهال کې د نرینه یوګړي پایله تل بې ( - ل ) راځي او ښځینه یوګړي او ډېرګړي هغه په تولیز ډول له (- ل) سره راځي او هسې یوه نیمه بېدودي ( استثنا ) ښیي، په داسې اکر کې چې له نالېږند هغه سره یې بیا په سرچپه ډول نوموړی توك په تولیزه توګه غورځي او چېرې یوه نیمه بېدودي رامنځته کړي، دغو لاندېنیو ببلګو ته ځیر شئ :

(و)رتله، (و)غندله، (و)ستایله، (و) کېنله، (و)کېنبله، (و)شنله، (و)څېرله، (و)وهله ... مګر : (و)ابسته، ننه ابسته، (و)خوړه، (و)لیده، (و)کته، (و)لوسته، راوسته، راوړه، یووړه، (و)کړه، (و)رغبده ... راځي .

په " کنبېناستل " کې " - ناست - "، یا په بله وینا، " ناستل - " دویمه ( تېرمهال ) ستېه ده، او "کنبې -" مخکړ دی . په "اخېستل" کې "اخېست -"، په "اغوستل" کې "اغوست -"، په "پاڅېدل" کې "پاڅېد -" او په "څملاستل" کې "څملاست -" ستې ګڼل کېږي چې زیاتره یې " - ل " نه ملګری کېږي، یا په بله مانا ترې لوېږي . مګر په : راغله، راتله کې هاغه ستېه بیا راڅرګندېږي.

ډېرګړي نرينه بيا په دوارو لېږندو او نالېږندو (او بشپړو او نابشپړو) تېرمهالو کې په ټوليز ډول پر ( - ل ) پای ته رسي او چېرې په يونيم ګړدود او بيا ځېنو کړو په تېره نالېږندو هغو کې ( - ل ) غورځي او يوازې اړوند زورکى يې پاتې کېږي، په لېږند کې، لکه: ما پنځه غله (و)ليده. (و)اخېسته، (و)نيوه، (و)کړه، ( راکړه، درکړه، ورکړه )، پرېوله، (و)اېسته.

په نالېږند کې، لکه: (خلك) پاڅېده، (و)نڅېده، (و)ګډېده، (و)شرمېده، ځملاسته، کښېناسته، ولاړه، (و)لمبېده. (و)درېده، (و)خاته، (و)زېږديده، وه ( ول )، (و)شوه يا (و)شو -(و)شول ... خو تر هرڅه له مخه يې له يوګړي سره د ګډون له کبله معياري نه ګڼل کېږي. په (راغلل) او (راتلل) کې هرګوره د غبرګو "لامونو" راتګ ښايي د ترنمي موخې زېږنده وي، خو راوروسته لومړي "لامونه" د تېرمهال کړ بنسټ توك ګرځيدلي او دويمي د نرينه ډېرګړي د پايلې ښکارندويه دي چې په يو لړ ګړدودو کې غورځي او هماغه راپاتې ملګري زورکي يې استازي کوي. يا په بله وينا " راغله a " او " راتله a " ويل کېږي. ناويلې دې پاتې نه شي، په لنډ (قريب) او لر (بعيد) تېرمهال کې چې له غځېدلي تېرمهال ببچار کړنوم (مفعولي حالت) څخه جوړېږي، (- ل) په ټوليز ډول د اړوند بېچار نوم د اړين رغنده توك په توګه خوندي پاتېږي او يوازې د ياد شويو (- ل) غورځوونکو کړونو تواني، اړوتې (شرطي)، ارماني او يوې نيمې بلې ناخبري بڼې (- ل) له لاسه ورکولای شي. لکه: (و)خوړای، (و)رسېدای، (و)کړای، (و)شوای، وای، که (و)ورېدای ... [ د زياتې شننې لپاره: مکنزي ۵۵۸ - ۵۶۲، سکېرو ۳۹۴ - ۳۹۶ ].

**۴ - کړتړ** : چې زياتره د يوه خپلواك اواز په بڼه د مونډ او وګړيزې پايلې ترمنځ کله کله پېښېږي، لکه: ( زورکى ) په کښېناستم او پرېوتم کې.

**۵ - دود** ***Mood*** : د کړ د ځرګندولو ډول ښيي چې يا خبري وي يا ناخبري. خبري يا ګزارشي چې بې له اړينګ وخرخشې د يوه کړن خبر يا ګزارش ورکوي، لکه: ولاړم، ځملاستم، ځم، ځملم، ومې خوړ، خوړ مې، وخورم، ولاړ شم ... خبري کړ يا بشپړ (مطلق) وي، لکه: ولاړم، ولاړ شم، وخورم ... يا بشپړ (استمراري يا همېشني)، لکه: تلم، خوړ مې، ځم، خورم ... په ناخبري يا انشايي کې پوښتني، امري، تواني، ګوماني، ارماني، شرطي ... راځي چې يا بشپړوي يا نابشپړ

**۶ - ځېل** ***Voice*** : چې د کړ (مُسند) او کړند يا کړي (مُسندالیه) ټاکنه کوي. په دې مانا چې کړ چاروال (معلوم) دی، که بېچار (مجهول)، يا منځوال (انعکاسي) چاروال، لکه: ببرك زمرى وهي، زمرك وهل کېږي، زمرك ځان وهي. په لومړۍ غونډله (جمله) کې کړ پر کړند (ببرك) استناد

کوي یا ډډه لګوي. په دويمه کې پر کړي (زمرك) او په دريیمه کې هم پر کړند او هم پر کړي، چې دواړه هماغه يو وګړی (زمرك) دی . ځېل په جوليز او ناجوليز ډول د ستې يو توك بلل کېږي.

**۷ - لېږد** : په دې مانا چې کړ لېږند (متعدي) دی، که نالېږند (لازمي)، لکه (سمندر وايي) او (سمندر راغی). لېږد په جوليز يا ناجوليز ډول د مونږ يوه برخه جوړوي. د لېږد جولېز توك د ستې (←) پايله ده. يو نيم نالېږند کړ، لکه "پېژندل" کېداې شي، د ( را - در - ور - ) په مټ پر لېږند واوړي.

**۸ - اړخ *Aspect*** : يا بشپړتيا او نه بشپړتيا (مطلقيت او نه مطلقيت) چې توك يې سرباړي ( Augment ) "و -" يا صفر دی . په دې مانا چې په ټوليز ډول له ساده بشپړو کړونو سره خجن ( و - wə ) مختاړی کېږي او له بېلبنتي او ترېنتي سره نه، بلکې پرځاى يې د اړوند کړ لومړنی څپه خجنه کېږي، لکه په پرېمينځل، پرېوتل، پورېوتل، راتلل، راکول، درکول، ورکول ... او لاسته راوړل. ترسره کول ... کې ځېنې ارکايېك (زاړه) بېلبنتی (مشتق) کړونه هم ترهمدې دود يا قاعدې لاندې راځي، لکه پاڅېدل يا څملاستل، که څه هم په يونيم ګړدود ، لکه کندهاري هغه کې له پاڅېدم، پاڅېدو ... سره هم (و -) مختاړی کېږي .

**۹ - مهال *Tense*** : چې د کړ مهالي يا زماني اړيکی (ارتباط) څرګندوي، په دې مانا چې کړ په کوم مهال کې پېښ شوی دی، لکه : څوکری ولاړ، څوکری ځي، څوکری به ولاړ شي .

د پښتو کړ مهالونه په ټوليز ډول درې دي :

۱. تېرمهال : چې پر بشپړ، نابشپړ يا همېشني او روږدني، لنډ او لر وېشل کېږي.
۲. وسمهال : چې پر بشپړ، نابشپړ يا همېشني او روږدني وېشنه مومي .
۳. وسترمهال : چې دا هم دوه ډوله دي بشپړ او نابشپړ .

د تېرمهال توك په ستېه کې راځي، لکه: په ودرېدم او درېدم کې دويم (- د -)، يا په ودرېږم يا ودرېږو کې (- ږ -) چې د يوه مورفونيميکي بدلون ښکارندويه ده.

**۱۰ - وګړي يا شخص Person** : چې کړند يا کړی لومړی وګړی ( متکلم ) دی، دويم وګړی ( مخاطب )، يا دريیم وګړی ( غايب ) دی . لومړی وګړی ( زه - موږ ) دويم وګړی ( ته - تاسې ) او دريیم وګړی ( دی - دوی ) . د وګړي نښنه چې وګړيزه پايله بلل کېږي، د کړ وروستۍ برخه جوړوي، لکه : (- م ) او ( - و ) په " راغلم " او " راغلو " کې .

۱۱ - نوږی یا جنس *Gender* : چې وګړی نرینه دی، که ښځینه . په پښتو کې یوازې د دویمې ولی په اوړون کې دغه توپیر کېږي، لکه : شینکی راغله، ژېړی راغی : چې دلته (( زور )) او ( - ی ) نوږیز توکونه دي : په دې توګه نوږیز توك د وګړیزې پایلې یو ضمني توك ګڼل کېږي .

## ۱۲ - ګڼه یا عدد ( افراد وجمع ) *Number* : چې وګړی یوګړی (مفرد) دی. که

ډېرګړی ( جمع ) . یوګړی، لکه : هلك راغی، ډېرګړی، لکه : هلکان راغلل .
ګڼه یوازې په لومړي او دویم وګړي کې توپیرېږي نه په دریم کې، لکه : هلك ځي. هلکان ځي

## ۱۳ - لېږند چار یا ضاعیت Causative : دغه کړ د لېږند کړ په ځېر د aw- په پایله

جوړېږي او یو لېږند کړ دویم ځلې لېږند ( متعدي ) کوي، لکه په پارسي خوراندن یا خواندن کې چې په دغه ژبه کې له ( - ان ) پایلې سره له هر کړ څخه جوړېدای شي . پښتو زموږ د څېړنې له مخې د ننګرهار ګردود او خوشال خټك په لاسوند یوازې دوه لېږند چار کړونه لري، لکه : خورول (خواندان) او وییول (ګویاندن) . په نورو کړونو کې دغه راز ځرګندونه یوازې د وییکو ( اداتو ). یا په بله وینا . د سر بلي غونډونو ( Phrase ) په وسیله ترسره کېږي، لکه : ما پر ځلمي خپله خبره ومنله ( من بر زلمی سخن خود را قبولاندم ) . په دې توګه یو لېږند چار کړ دوه کړنده ( فاعله ) او دوه کړیه لري .

لکه په پورتنۍ بېلګه کې "ما" او "ځلمی". "کړندونه" او "خپله خبره" "کړی" ده او په یو مهال کې بیا "ځلمی" او "خپله خبره" دواړه "کړي" دي . ځېنې "حکمي" لېږند کړونه بې له وییکو هم د لېږند چار دنده پرځای کوي، لکه : ما وژړوله، ما وخندوله او داسې نور . یا داسې هم ویل کېږي : ځلمي دورخانې پر خبرو راوسته . مانا دا چې خبرې یې پرې وکړې . واریګ دغسې دویم کس لکه "درخو" کړند نه، بلکې کړی او اړوند کړ بېچار بولي . په دې ډول په لېږند چار کې یو کړند او یو کړی راځي .

## ۱۴ - د ( نفې یا نهې ) توك، " نه " یا " مه " :

" نه " چې له امریه کړ پرته د نورو ټولو کړ ډولونو د نښې ( نفې ) لپاره راځي او زیاتره، یا په بله وینا کره پښتو کې د مخکړ یا ترېنتې او بېلبنتې توك ترمنځ، لکه : په کښې نه ناست، پانه څېد ، وانه خېست، رانغی کې " مه " چې په عربي یې د نهې حرف بولي، یوازې د دویم وګړي د منفي امر (نهې ) لپاره د یوه نا تیرمهال کړ په سر کې راځي . له یوګړي نهې کړ سره، لکه : مه خوره. له ډېرګړي نهی کړ سره، لکه : مه خورئ .

**کم اوړوني ( حکمي متعدي ) کړونه** : پښتو داسې یوه ډله کړونه لري چې د نالېږند کړ غونډې کړند لري او کړی نه، خو په تېرمهال کې ورسره اړوند کړندونه کړند پېر راخپلوي. خو پخپله کړونه ورسره په هماغه یوه (نرینه ډېرګړي) بڼه اوړون مومي. لکه: (ما، تا، ده، دې ...) ونځل، وګډل، وخندل، وژړل، وکتل، ولښل، ولمبل، وویل، ومنل، ودانګل، وترپلل، ولمبل، وځغاستل، وګوابنل ....

خو که نځېدل، ګډېدل، خندېدل، ژړېدل، لښېدل، ویېدل، مسېدل، ځغلېدل، ګوابنېدل ... وویل شي، بیا ورسره کړندونه هم پر آره بڼه یا پېر پاتېږي، لکه : ونځېدم، وګډېدم او داسې نور [ پښتو (۱۴۴ مخ) دغه راز کړونو ته "غیرشخصي متعدي فعلونه" وایي ] .

د کړ اوړون پورتني ۱۴ ګوني اړخونه په لاندېنۍ بېلګه کې په یوځایي توګه ښوول کېږي :

## راوګرځولم :

| را - | -و - wə | ... | ګرځ - | ول - awəl - | - کړتر - ə - | - م |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۸ | ۱۴ | ۲ | ۵-۶-۷-۹ | ۴ | ۱۰-۱۱-۱۲-۱۳ |
| | | | ۳ | | | |

## اوړونونه ( ګردانونه ) :

## لومړی - تېرمهال :

دا مهال له دویمې یا تېرمهالې ولې یا بنسټ څخه د نومړو څوارلسګونو توکونو او اړخونو په پام کې نیولو سره جوړېښت او اوړون مومي او لړو ډېر پکې ( - ل ) غورځي .

**الف** - له لېږند خوړ -، دویمې ولې یا بنسټ څخه .

**یوم - خبري** ( *Indicative* ) :

**۱ - بشپړ تېرمهال ( مطلقه ماضي )** : دغه مهال د خوړ - له دویم یا تېرمهالي بنسټ " خوړ - " څخه زیاتره د خجن " و " په مختاړي کولو، د وګړیزو پایلو په نښلولو او د ارګاتیف سېستم (۱-۱۲۲) په پام کې نیولو سره جوړېږي :

| ګړوال: ګنه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ما وخوړ، وخوړه، وخوړل، وخوړې ... | موږ وخوړ، وخوړه، وخوړل، وخوړې ... |
| ۲ | تا ~ ~ ~ ~ | تا ~ ~ ~ ~ |
| ۳ | ده ~ ~ ~ ~ | دوی ~ ~ ~ ~ |

بې چار

| گڼه / وگړی | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه وخوړل شوم | موږ وخوړل شو |
| ۲ | ته وخوړل شوې | تاسې وخوړل شوئ – شواست |
| ۳ | دی وخوړل شو<br>دا وخوړل شوه | دوي وخوړل شول<br>دوی وخوړل شوې |

غبرگوال

| گڼه / وگړی | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | ما ځان وخوړ | موږ ځان وخوړ- ځانونه وخوړل |
| ۲ | ته وخوړل شوې | تاسې ځان وخوړ - ~ ~ |
| ۳ | ده – دې ځان وخوړ | دوی ځان وخوړ - ~ ~ |

**یادښت** : لکه څنگه چې مو پاس ولیدل، د ارگاتیف سیستم ( - ) له مخې په تېرمهال کې چاروال کړ د بېچار کړ غونډې د کړي (مفعول) تابع دی، نه د کړند، لکه : ما ختکی وخوړ، ما ختکي وخوړل، ما هندوانه وخوړه، ما هندوانې وخوړې ... د بېچار هغه هم دلته د یادونې وړ ده چې د یونیم گړدود او کره - لیکني معیار له مخې په هر بېچار کړ کې ستاینوم پایله ( - ی، - ې، - ي ) غورځول کېږي او یوازې وگړیزې پایلې په مرستیال کړ ( شول، کېدل ) پورې بس گڼل کېږي .

۲ – نابشپړ تېرمهال ( استمراري ماضي ) :

نابشپړ تېرمهال د بشپړوالي (مطلقیت) له (و -) پرته نور د بشپړ هغه غونډې جوړښت مومي. بېچار یې د بېچار کړ نوم په لنډون (خوړل) د مرستیال کړ (کېدل) په ملگرتیا جوړېږي او وگړیزې پایلې هم په دغه مرستیالکړ پورې نښلي:

چاروال

| گڼه / وگړی | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | ما خوړ، خوړه، خوړل، خوړې | موږ خوړ، خوړه، خوړل، خوړې |
| ۲ | تا ~ ~ ~ ~ | تاسې ~ ~ ~ ~ |
| ۳ | ده، دې ~ ~ ~ ~ | دوی ~ ~ ~ ~ |

| گڼه / وگړي | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل کېدم | موږ خوړل کېدو |
| ۲ | ته خوړل کېدې | تاسې خوړل کېدئ - کېداست |
| ۳ | دی خوړل کېده ∂<br>دا خوړل کېده a | دوي خوړل کېده ∂ - کېدل<br>دوی ځوړل کېدې - کېدلې |

بې چار

غبرگوال : ما ځان خوړ، موږ ځان خوړ . . .

## ۳ - روږدنی ( اعتیادي ) تېرمهال :

دا هغه راز کړ دی چې د همېشوالي ترڅنگه د روږدتیا (اعتیاد) جاج (مفهوم) هم رااخلي، په دې توگه دې راز کړ ته روږدنی همېشنی کړ هم ویلای شو. له هسې عادي همېشني کړ سره یې توپیر دا دی چې تر کړوال غونډ له مخه پرې د (به) وییکی هم زیاتېږي:

چاروال

| گڼه / وگړي | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | ما به خوړ، خوړه، خوړې، خوړل | موږ به خوړ، خوړه، خوړل، خوړې |
| ۲ | تا ~ ~ ~ ~ | تاسې ~ ~ ~ ~ |
| ۳ | ده ~ ~ ~ ~ | دوی ~ ~ ~ ~ |

| گڼه / وگړي | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه به خوړل کېدم | موږ به خوړل کېدو |
| ۲ | ته به خوړل کېدې | تاسې به خوړل کېدئ، کېداست |
| ۳ | دی به خوړل کېده ∂<br>دا به خوړل کېده a | دوی خوړل کېده ∂ - کېدل<br>دوی به خوړل کېدې، کېدلې |

بې چار

غبرگوال : ما به ځان خوړ . . .

## ۴ - لنډ تېرمهال ( قریبه ماضي ) :

د دې مهال کړ د چار او پېښنگ له مخې کله داسې وي چې په تېرمهال کې یومخیز بشپړ شوی وي او یا دا چې تر وسمهال هم څه ناڅه راغځېدلی وي . رغښنگ یې دا ډول دی چې له بېچار کړ نوم یا ستاینوم ( مفعولي – صفت ) "خوړلی" سره مرستیالکړ ( - ول ) په وسمهال کې اوړون مومي

. په بېچار کې يې پر دې سربېره دويم مرستيالکړ " کېدل " يا " شول " ورسره هم اوړون کوي او د دې لپاره چې وگړيزې پايلې په دواړو مرستيالکړونو پورې نښلي، نو د اسانتيا لپاره د بېچار کړ نوم پايلې ته اړتيا نه پاتېږي . همدا راز په لر تېرمهال بېچار کړ کې هم د بېچار کړ نوم ( خوړلی ) پای غورځي او د ( خوړل ) په بڼه پاتېږي چې ځينې دوديز پښوپېوهان ( گرامر پوهان ) يې له ( مصدر ) سره گډوي، سره له دې چې د اړوندې پريکړې مخکښ همدوی پخپله ول :

**چاروال**

| گڼه / وگړي | يو گړی | ډېر گړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما خوړلی دی، خوړلې ده<br>خوړلي دي، خوړلې دي | موږ خوړلی دی، خوړلې ده، خوړلي دي، خوړلې دي |
| ۲ | تا ~ ~ ~ ~ | تاسې ~ ~ ~ ~ |
| ۳ | ده، دې ~ ~ ~ | دوی ~ ~ ~ ~ |

**بې چار**

| گڼه / وگړي | يو گړی | ډېر گړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل شوی، شوې يم | موږ خوړل شوي، شوې يو |
| ۲ | ته خوړل شوی، شوې يې | تاسې خوړل شوي، شوې - ياست |
| ۳ | دی خوړل شوی دی<br>دا خوړل شوې ده | دوی خوړل شوي دي<br>دوی خوړل شوې دي |

غبرگوال : لکه ما ځان خوړلی دی ....

## ۵ - لر تېرمهال ( بعيده ماضي ) :

د لر تېرمهال کړ ته هغه وخت اړتيا پرېوځي چې وروسته ترې بشپړ ( کله هم نابشپړ ) تېرمهال، يا لنډ تيرمهال کړ پېښ شوی وي . يا په بله وينا، لر تېرمهال کړ يو له دغو نورو ډلو تر کارېدنې وروسته کارول کېږي، لکه چې وايي :

ته پر لسو بجو راغلې ( بشپړ ) - او زه پر نهو بجو راغلی وم ( لر )

يا ته پر لسو بجو راغلی يې ( لنډ ) ~ ~ ~ ~ ~ ~

د لر تېرمهال اوړون نور د لنډ هغه غوندې دی، خو دلته ورسره مرستيالکړ " ول " سم اوړون مومي:

چاروال

| گڼه وګړي | یو ګړی | ډېر ګړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما خوړلی وو، خوړلې وه خوړلي ول، خوړلې وې | موږ خوړلي وو، خوړلې وه، خوړلي ول، خوړلې وې |
| ۲ | ته ~ ~ ~ ~ | تاسې ~ ~ ~ ~ |
| ۳ | ده، دې ~ ~ ~ ~ | دوی ~ ~ ~ ~ |

بې چار

| گڼه وګړي | یو ګړی | ډېر ګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل شوی، شوې وم | موږ خوړل شوي، شوې وو |
| ۲ | ته ~ ~ ~ وې | تاسې ~ ~ ~ واست |
| ۳ | دی خوړل شوي وو دا خوړل شوې وه | دوی خوړل شوي ول دوی خوړل شوې وې |

غبرګوال، لکه : ما ځان خوړلی و . . .

## دويم - ناخبري ( انشايي *Subjunctive* ) :

## ګوماني تېرمهال ( احتمالي يا شکيه ماضي ) :

په درست پښتو کړ اوړون کې يوازې لر تېرمهالکړ د شکيه وييکي "به" او د "ول" يا "اوسېدل" مرستيالکړ په اوړون او په ترڅ کې د غاړې (لحن) په بدلون رغېدنګ مومي او په دې توګه يې همدومره له خبري هغه سره توپير کېږي . په داسې اکر کې چې د نورو ګردو تېرمهالو او ناتېرمهالو هغو لپاره د "به" پرځای جلا نحوي توکي (ګونډې . بنايي يا لکه چې) او يا هم کورته ځېرمه (چارتاکي ◄ ) غونډله لار هواروي، لکه څنګه يې چې بېلګې پرخپل خپل وار وړاندې شوي دي . دا دی، دلته د همدغه لر تېرمهالکړ ګوماني اوړون په لاندې ډول مخې ته ږدو:

چاروال

| گڼه وګړي | یو ګړی | ډېر ګړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما به خوړلی، خوړلې، خوړلي، خوړلې وي (اوسي) | موږ به خوړلی، خوړلې، خوړلي، خوړلې وي (اوسي) |
| ۲ | تا به ~ ~ ~ ~ | تاسې به ~ ~ ~ ~ |
| ۳ | ده، دې ~ ~ ~ ~ | دوی به ~ ~ ~ ~ |

بې چار

| گڼه / وگړي | یو گړی | ډېر گړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل شوی، شوې (اوسم) | موږ خوړل شوي، شوې اوسو |
| ۲ | ته به ~ ~ ~ اوسې | تاسې به ~ ~ ~ ~ واست |
| ۳ | دی خوړل شوی وي<br>دا خوړل شوې وي | دوی خوړل شوي وي<br>دوی خوړل شوې وي |

غبرگوال : ما به ځان خوړلی وي ....

## ۲ - ارماني تېرمهال (تمنايي ماضي) :

چې د یوه ارمان ځرگندونه کوي او د دود له مخې په بشپړ تېرمهال، نابشپړ تېرمهال، لر او گوماني تېرمهال پورې اړه لري .

## ۳ - ارماني بشپړ تېرمهال (تمنايي مطلقه ماضي) :

چې د رغېدنې له مخې په بشپړ تېرمهال او د جاج او موخې (مطلب او مفهوم) له مخې په وسمهال پورې اړه لري . جوړېدنه یې د بشپړتیا (مطلقیت) "و -" ( ⟵ ) په مختاړي کولو او بیا د ټولو گرداني بڼو لپاره چاروال د بېچار کړ نوم " مفعولي صفت " په اوړدولو او بېچار د پای په غورځولو او د مرستیال کړ " شول " د بېچار کړ نوم په اوړدولو " شوای " ترسره کېږي . دغه راز یې د زیاتې ځرگندتیا لپاره تر اېښي (مسندالیه) له مخه یا وروسته د (کاشکې) وییکی د یوه نحوي توک په توگه هم ملگری کېدای شي :

چاروال

| گڼه / وگړي | یو گړی | ډېر گړي |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې ما وخوړای | کاشکې موږ وخوړای |
| ۲ | کاشکې تا ~ | کاشکې تاسې ~ |
| ۳ | کاشکې ده – دې ~ | کاشکې دوی ~ |

بې چار

| گڼه / وگړي | یو گړی | ډېر گړي |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه وخوړل شوای | کاشکې موږ وخوړل شوای |
| ۲ | کاشکې ته ~ ~ | کاشکې تاسې ~ ~ |
| ۳ | کاشکې دی، دا ~ ~ | کاشکې دوی ~ ~ |

غبرگوال : کاشکې ما ځان وخوړای ... .

## ۴ - ارماني نابشپړ تېرمهال :

چاروال يې بې د بشپړتيا ( مطلقيت ) له " و " د بشپړ هغه غوندې جوړېږي او بېچار يې بې له دغه " و - " د مرستيالکړ په بدلولو ( شول پر کېدل ) د بېچار بشپړ هغه غوندې راځي :

چاروال

| گڼه / وگړی | يو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې ما خوړای | کاشکې موږ خوړای |
| ۲ | کاشکې تا ~ | کاشکې تاسې ~ |
| ۳ | کاشکې ده - دې ~ | کاشکې دوی ~ |

بې چار

| گڼه / وگړی | يو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه خوړل کېدای | کاشکې موږ خوړل کېدای |
| ۲ | کاشکې ته ~ ~ | کاشکې تاسې ~ ~ |
| ۳ | کاشکې دی، دا ~ ~ | کاشکې دوی ~ ~ |

غبرگوال : کاشکې ما ځان خوړای ... .

## ۵ - ارماني لرې تېرمهال ( تمنايي بعيده ماضي ) :

چاروال يې داسې جوړېږي چې په بېچار کړنوم ( مفعولي صفت ) پسې د مرستيالکړ " ول " بېچار کړنوم اوږد " وای " راشي او بېچار يې د بېچار کړنوم په لنډولو او ورسره د " شول " په گردانولو رامنځته کېږي :

چاروال

| گڼه / وگړی | يو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې ما خوړلی، خوړلې، خوړلي، خوړلې وای | کاشکې موږ خوړلی، خوړلې، خوړلي، خوړلې وای |
| ۲ | کاشکې تا ~ ~ ~ ~ | کاشکې تاسې ~ ~ ~ ~ |
| ۳ | کاشکې ده، دې ~ ~ ~ ~ | کاشکې دوی ~ ~ ~ ~ |

بې چار

| گڼه / وگړی | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه خوړل شوی، شوې، شوي، شوې وای | کاشکې موږ خوړل شوي، شوې، شوي، شوې وای |
| ۲ | کاشکې ته ~ ~ ~ ~ | کاشکې تاسې ~ ~ ~ ~ ~ |
| ۳ | کاشکې دی، دا ~ ~ ~ ~ ~ | کاشکې دوی ~ ~ ~ ~ ~ |

غبرگوال : کاشکې ما ځان خوړلی وای ...

## ۴ - ارماني - گوماني لر تېرمهال (تمنايي احتمالي ماضي) :

له عادي گوماني لر تېرمهال سره د "به" په غورځولو د "وي" پر "وای" بدلولو او "کاشکې" په زیاتولو توپیرېږي.

| گڼه / وگړی | یو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې ما خوړلی، خوړلې، خوړلي، خوړلې وای | کاشکې موږ خوړلی، خوړلې، خوړلي، خوړلې وای |
| ۲ | کاشکې تا ~ ~ ~ ~ | کاشکې تاسې ~ ~ ~ ~ ~ |
| ۳ | کاکاشکې ده، دې ~ ~ ~ ~ ~ | کاشکې دوی ~ ~ ~ ~ ~ |

**اړوتی تېرمهال ( شرطیه ماضي )** : چې د یو اړوتي کړن لپاره آړ (شرط) څرگندوي. په دې توگه دا راز کړ د یو بل کړ لپاره آړ (شرط) برابروي، مانا دا چې که دغه کړ ترسره نه شي، هغه بل کړ هم کېدون نه لري، لکه: (که وریځ نه وي، باران نه کېږي)، یا که وریځ وي، (نو) باران کېږي، یا باران به وشي. دلته لومړی غونډله چې په آړ وییکي "که" پیلېږي، آړه څېرمه غونډله ده او دویمه اړوتې آره غونډله. څنگه چې آړ (شرط) په هر کړ او کړن کې راتلای شي، نو د وسمهال غوندې په ټولو تېرمهالو کې راڅرگندېږي او هماغومره ډولونه لري :

۱ - اړوتی بشپړ تېرمهال : چې له خبري بشپړ تېرمهال څخه د "که" په مخکې کولو سره جوړېږي او په جاج ( مفهوم ) کې په وسمهال پورې اړه لري، لکه : که ما وخوړ، که موږ وخوړ، یا که ما وخوړای، که موږ وخوړای ....

۲ - اړوتی نابشپړ تېرمهال ( شرطیه استمراري ماضي )، لکه : که ما خوړ، که موږ خوړ یا که ما خوړلای - خوړای، که موږ خوړلای - خوړای ....

۳ - اړوتی لنډ تېرمهال ( شرطیه قریبه ماضي ) : لکه : که ما خوړلی دی، که موږ خوړلي دي ....

۴ - اړوتی لر تیرمهال ( شرطیه بعیده ماضي ) :
لکه : که ما خوړلی وو، که موږ خوړلي وو یا که ما خوړلی وو، که موږ خوړلی وي ...
په دې توګه هر اړوتی تېرمهال په څېرمه ( ضمني ) ډول ګوماني، ارماني، هېښنې ... هم کېدای شي.

## تواني تېرمهال ( امکاني یا اقتداري ماضي ) :

چې د یوه کړ کېدون ( امکان ) یا نه کېدون ترې څرګندېږي. په پښتو تېرمهال کړ کې په ساده جولیز ډول یوازې بشپړ او نابشپړ هغه تواني کېدای شي او همدغه دوه ډوله تېرمهالونه په څېرمه توګه نور تېرمهالونه هم رانغاړي. رغېدنګ یې د بېچار کړ نوم د پای غبرګغږ په اوږدولو ( خوړلای یا خوړای ) او ورسره د مرستیالکړ ( شول یا کېدل، یا دواړو ) په ګردانولو ترسره کېږي.
۱ – تواني بشپړ تېرمهال : لکه ما وخوړلای شو – وخوړای شو، تا وخوړلای شو – وخوړای شو ...

۲ – تواني نابشپړ تېرمهال : لکه : ما خوړلای شو - خوړای شو، تا خوړلای شو - خوړای شو ...
۳ – اعتیادي : لکه : ما به خوړلای شو - خوړای شو، تا به خوړلای شو - خوړای شو ... په ناکره (کندهارۍ) پښتو کې – آی ( -āy ) پایله په آر او مرستیال دواړو کړو کې راوړي، لکه : ما به خوړای سوای ...

## ټینګاري تېرمهال ( تاکیدي ماضي ) :

چې د کړ د ترسره کولو یا نه ترسره کولو ټینګار ( تاکید ) څرګندوي او یوازې په نابشپړ او لر تېرمهال کې راتلای شي :
۱ ) ټینګاري بشپړ تېرمهال : چې له چار کړنوم سره د "به"، "و" یا "وای" په ملګرتیا جوړېږي، لکه : ما به خوړلی وو یا ما به خوړلی وای او یا خوړلی به مې وو، خوړلی به مې وای. لکه چې پاس وویل شو، په کره لیکنۍ پښتو کې یوازې مرستیالکړ āy - آی پایله درلودای شي، نه آر یا آر او مرستیال دواړه. لکه څېنې چې وایې یا لیکي : ما به خوړلای وای ...
۲ ) ټینګاري نابشپړ تېرمهال : چې له اعتیادي سره په اهنګ کې توپیر لري، لکه: ما به خوړ، یا ما به خوړلې، ما به خوړای. کله کله یې "بویه" یا "باید" هم په سر کې راتلای شي او د پای لیکښنبه یې هم ندائیه راځي، لکه: ما باید یا بویه خوړای.

## ۵ - هېښني تېرمهال ( تعجبي ماضي ) : چې په هېښتیا ( تعجب یا تحیر ) سره څرګندېږي.

دا راز کړ یوازې په اهنګ کې له خبري هغه سره توپیرېږي، لیکښنبه یې یوه بلښنبه ( ندائیه ) ده ببلګه، لکه : ما وخوړ!، تا وخوړ! ...

## ۶ - پوښتني تېرمهال ( استفهامي ماضي ) :

چې د يوه کړن پېښېدنه يا نه پېښېدنه پوښتي . دا هم له خبري کړ سره يوازې په اهنګ کې توپير مومي، په دې توګه چې د خبري کړ اهنګ له عادي خج يا اهنګ سره اوار پيل مومي او ټيټ پای ته رسي او د پوښتني دا له يوه زيات پياوړي خج، يا په بله وينا، له يوه هوار اهنګ سره پيل مومي او په پای کې لوړېږي . پوښتني کړ په بشپړ تېرمهال، نابشپړ تېرمهال، لنډ تېرمهال، لر تېرمهال او تواني تېرمهال کې راتلای شي . پای ليکنښه يې يوه پوښتنښه (؟) ده .

۱) پوښتني بشپړ تېرمهال، لکه : ما وخوړ ؟ تا وخوړ ... ؟

۲) پوښتني نابشپړ تېرمهال، لکه : ما خوړ ؟ تا خوړ ... ؟

۳) پوښتني لنډ تېرمهال، لکه : ما خوړلی دی ؟ تا خوړلی دی ... ؟

۴) پوښتني لر تېرمهال، لکه : ما خوړلی وو ؟ تا خوړلی وو ... ؟

۵) پوښتني تواني تېرمهال، لکه : ما خوړلای شو ؟ تا خوړلای شو .... ؟

يا نابشپړ تواني، لکه : ما خوړلای شو ؟ تا خوړلای شو ... ؟

## ب - نالېږند تېرمهالکړ :

نالېږند کړ (راتلل) له بشپړ اندو (سوپلتيفو) دويمو يا غبرګولو بنسټونو (راتل -)، ( رات - ) او ( راغل - ) او ( راغ - ) څخه جوړېږي . " راغل - " او " راغ - " بشپړ (مطلق) او راتل – د نابشپړ (غيرمطلق) سټه يا بنسټ هم بلل کېږي .

### يوم - خبري :

چې له راغل - يا راغ - بنسټ څخه جوړښت او اړونن مومي .

### ۱ - بشپړ تېرمهال ( مطلقه ماضي ) :

| ګڼه / وګړی | يو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه راغلم | موږ راغلو |
| ۲ | ته راغلې | تاسې راغلئ - راغلاست |
| ۳ | دی راغی ( راغلئ ) دا راغله | دوی راغلل (راغله)<br>دوی راغلې( راغللې )× |

×په لينديو کې راغلې څېلونه کره نه ګڼل کېږي او يوازې په شعر کې راتلای شي .

## ۲ - نابشپړ تېرمهال ( همېشنی یا استمراري ماضي ) :

چې د " راغل - " له بشپړ اندې ملګرې یا غبرګولې ستې " راتل - " یا " رات - " څخه جوړښت او اوړون مومي، په دې توګه چې وګړیزې پایلې په همدغه ولې پورې سیده نښلي :

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه راتلم | موږ راتلو |
| ۲ | ته راتلې | تاسې راتلئ - راتلاست |
| ۳ | دی راته ( راتلو، راتلئ )<br>دا راتله | دوی راتلل ( راتله )<br>دوی راتلې ( راتللې ) |

## ۳ - لنډ تېرمهال : چې د لېږند کړي غوندې د بېچار کړنوم له انډول (راغلی) څخه د مرستیالکړ (ی -) او (د -) په ملتیا جوړېږي چې بېلا بېلې وګړیزې پایلې ورپورې نښلي :

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه راغلی یم، راغلې یم | موږ راغلي، راغلې یو |
| ۲ | ته راغلی، راغلې یې | تاسې راغلي، راغلې یئ، یاست |
| ۳ | دی راغلی دی، دا راغلې ده | دوی راغلي دي، دوی راغلې دي |

## ۴ - لر تېرمهال ( بعیده ماضي ) : چې له لنډ تېرمهال سره په مرستیالکړ کې توپیر مومي، هغه دا چې دلته د " ول " ولې " و " پر کار لوېږي .

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه راغلی وم، راغلې وم | موږ راغلي، راغلې وو |
| ۲ | ته راغلی، راغلې وې | تاسې راغلي - راغلې وئ - واست |
| ۳ | دی راغلی وو، دا راغلې وه | دوی راغلي ول (وه)، دوی راغلې وې |

## ۵ - روږدني تېرمهال ( اعتیادي ماضي ) : چې له نابشپړ تېرمهال څخه د ( به ) وییکی زیات لري، لکه : زه به راتلم، ته به راتلې ...

## دویم - ناخبري ( انشايي Subjunctive ) :

### ۱ - ارماني تیرمهال ( تمنايي ماضي ) :

چې په بشپړ، نابشپړ او لر تېرمهال پورې اړه لري او د موخې او جاج (مفهوم) له مخې زیاتره په وسمهال پورې اړه نیسي . بشپړ یې له نابشپړ سره د بشپړتیا (مطلقیت) په " و- " توپیرېږي . بشپړ یې، لکه : ( ولاړ لای ) یا ( ولاړ ای ) . او نابشپړ یې، لکه : (تللای) یا (تللای) . لر یې د آر کړنوم د غبرګغږ د اوږدولو پرځای د مرستیالکړ " ول " هغه پر اوږده غبرګغږ اړوي . د یوه ارمان د پوره څرګندتیا لپاره د دواړو ډولو په سر کې د " کاشکې " وییکي د یوه نحوي توك په توګه هم راوړل کېدای شي .

#### ۱) بشپړ ارماني :

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه (راغللای) راغلای | کاشکې موږ (راغللای) راغلای |
| ۲ | کاشکې ته ~ ~ | کاشکې تاسې ~ ~ |
| ۳ | کاشکې دی، دا ~ ~ | کاشکې دوی ~ ~ |

#### ۲) نابشپړ ارماني :

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه ( راتللای ) راتلای | کاشکې موږ (راتللای) راتلای |
| ۲ | کاشکې ته ~ ~ | کاشکې تاسې ~ ~ |
| ۳ | کاشکې دی، دا ~ ~ | کاشکې دوی ~ ~ |

#### ۳) لر ارماني :

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه راغلی، راغلې وای | کاشکې موږ راغلي، راغلې وای |
| ۲ | کاشکې ته ~ ~ | کاشکې تاسې ~ ~ |
| ۳ | کاشکې دی، دا ~ ~ | کاشکې دوی ~ ~ |

**۲ - توانی تېرمهال ( امکاني ماضي ) :** چې په " تلل " غونډې نالېږند " کړ " کې په ساده ډول یوازې نابشپړ تېرمهال رااخلي او هغه هم په دې ډول جوړېږي چې د بېچار کړنوم انډول " تللی " پای غبرګغږ اوړدېږي او مرستیالکړ " شول " ورسره اوړون مومي .

| ګڼه وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | زه ( راتللای ) راتلای شوم | موږ ( راتللای ) راتلای شو |
| ۲ | ته ~ ~ شوې | تاسې ~ ~ شوئ، شواست |
| ۳ | دی ~ ~ شو<br>دا ~ ~ شوه | دوی ~ ~ ( شول ) شو<br>دوی ~ ~ ( شولې ) شوې |

**۳ - ګوماني تېرمهال ( شکیه یا احتمالي ماضي ) :** چې بشپړ، نابشپړ، لنډ او لر تېرمهال یې په دغو لاندې ډولو جوړېږي :

**۱) بشپړ ګوماني :** چې د " لکه چې " په ملتیا د خبري هغه غونډې جوړښت مومي، لکه :

| ګڼه وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | لکه چې زه راغلم | لکه چې موږ راغلو |
| ۲ | لکه چې ته راغلې | لکه چې تاسې راغلئ، راغلاست |
| ۳ | لکه چې دی راغی<br>لکه چې دا راغله | لکه چې دوی راغلل (راغله)<br>لکه چې دوی (راغللې) راغلې |

**۲) نابشپړ ګوماني :** چې له خبري نابشپړ تېرمهال څخه د " ګوندې "، " ښایي " یا " لکه چې " په ملتیا جوړېږي او د روږدني لپاره یې " به " هم ملګرې کېږي .

| ګڼه وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ګوندې، (ښایي یا لکه چې) زه راتلم | ګوندې، ( ښایي، لکه چې ) موږ راتلو |
| ۲ | ~ ~ ~ ~ ته راتلې | ~ ~ ~ تاسې (راتلئ) راتلاست |
| ۳ | ~ ~ ~ ~ دا (راتلله) راتله | ~ ~ ~ دوی راتلل ( راتله )<br>~ ~ ~ ( راتللې ) راتلې |

روړدني، لکه : زه به ګوندې ( ښايي يا لکه چې ) راتلم، ته به ګوندې راتلې ... ( کړند لَه " به " سره تر شکيه توکو مخکې وروسته کېداى شي ) .

**۳) لنډ ګوماني :** د بشپړ ګوماني غونډې په " لکه چې " يا " به " له خبري هغه سره توپېرېږي .

| وګړي \ ګڼه | يو ګړى | ډېر ګړي |
|---|---|---|
| ۱ | لکه چې زه راغلى، راغلې يم | لکه چې موږ راغلي، راغلې يو |
| ۲ | ~ ~ ته ~ ~ | ~ ~ تاسې ~ ~ (يئ) ياست |
| ۳ | ~ ~ دى، دا ~ ~ ده | ~ ~ دوى ~ ~ دي |

يا : زه به راغلى يم ....

**۴) لر ګوماني :** چې له خبري هغه سره د " ګوندې "، " ښايي " يا " لکه چې " په سرباري کولو توپيرېږي، لکه: ګوندې زه راغلى وم يا زه به ګوندې راغلى وم ....

**۴ - ټينګاري تېرمهال ( تاکيدي ماضي ) :** چې بشپړ، نابشپړ او لر راتلاى شي او د موخې او جاج له پلوه زياتره په وسمهال اړه لري او د پوره څرګندتيا لپاره يې په سر کې " بويه " يا " بايد " هم ملګرى کېږي ؛ هرګوره " بويه " زياتره د کړ پرځاى له مصدر سره راځي، هغه هم ترې وروسته :

**۱) بشپړ ټينګاري :** د " به " يا " بايد " په مختاړي کولو او د " – اى " په وروستاړي کولو له " راغلل – " يا " راغل – " څخه جوړېږي، لکه : زه به راغللاى - راغلاى، يا زه بايد راغللاى، راغلاى ( راغاى ) .

**۲) نابشپړ ټينګاري :** چې د " به " يا " بايد " په مختاړي کولو او " – اى " وروستاړي کولو، له " راتلل " يا " راتل " څخه جوړېږي، لکه : زه به راتللاى - راتلاى يا – زه بايد راتللاى - راتلاى او داسې نور .

**۳) لر ټينګاري :** چې له خبري تېرمهال څخه د " به " په سرباري کولو د " به " ځاى " بايد " يا " بويه " ونيسي، نو بيا د " ول " کړ نوم پاى غبرګغږ ورسره، لکه ارماني هغه غونډې اوږدېږي، لکه:

زه باید راغلی وای - ته بویه راغلای وای، چې البته په درو واړو وګړو کې بیا نرینه او ښځینه سره توپیرېدای شي، د پای لیکنښه یې بلنښه " ! " راځي.

**۵ - پوښتني تېرمهال ( استفهامي ماضي )** : په دې مانا چې که په هر ډول تېرمهال کې پوښتنه راشي، نو پوښتني تېرمهال بلل کېږي. بشپړ، لکه : زه راغلم ؟ ؛ نابشپړ، لکه : زه راتلم ؟ ؛ لنډ، لکه : زه راغلی یم ؟ ؛ لر، لکه : زه راغلی وم ؟ او داسې پسې نور.

**۶ - هېښني تېرمهال ( تعجبي ماضي )** : چې هېښتیا ترې څرګندېږي او له پوښتنې سره یوازې په اهنګ کې توپیر مومي، لکه : زه راغلم ! ته راغلې ! او همداسې په نورو تېرو مهالونو کې.

**۷ - اړوتی تېرمهال ( شرطیه ماضي )** : چې په تېرمهال کې د کوم کړ پېښېدنه، یا نه پېښېدنه په یوه آړ " شرط " پورې تړلې وي. دا کړ نور تر پای پورې د خبري هغه غوندې رغېدنګ لري، خو په سر کې یې یو نحوي توك، آړ وییکي ( شرطیه ادات ) " که " راوړل کېږي، لکه : که زه راغلم، که زه راتلم، که زه راغلی یم، که زه راغلی وم ...

## دویم - د وسمهال کړ اوړون ( ګردان ) :

وسمهالکړ دا مانا چې کړ هماغه مهال او یا یو څه وروسته پېښېږي چې یادونه یې کېږي. چاروال یې له لومړۍ ولۍ ستې څخه جوړېږي او بېچار یې له تېرمهال، یا په بله وینا، له دویمې ولۍ یا ستې څخه چې په دواړو بڼو کې ورپورې ټاکلي اوړوني تاړي ( تصریفي وندونه ) نښلول کېږي. دغه تاړي د اپښي ( مسندالیه ) او د هغه د ګڼې څرګندونه کوي، نه د نوږي او مهال. دا مانا چې په چاروال لېږند او نالېږند ناتېرمهال کې نوږی نه توپېرېږي او مهال خو په خپلې ستې سره څرګندېدنه مومي.

**الف** - له لېږند خور -√څخه :

### ۱ - بشپړ وسمهال :

**یوم - خبري :**

**چاروال خبري** : چې له لومړۍ ریښې څخه زیاتره د بشپړتیایي (مطلقیت) "و -" په مختاړي کولو او د اړوندو نښلونو په زیاتولو لاس ته راځي، خو زیاتره د ناخبري (انشایي) کړونو لپاره پر کار اچول کېږي، لکه : که وخورم، باید وخورم، کاشکې وخورم، ګوندې وخورم، ودې خورم، ودې خوري، وخوره ! ... ( ← ). په ناخبري غبرګغونډلو کې، لکه : که دې خوښه وه، ډوډۍ سره

یوځای وخورو. کاشکې راشې چې ډوډۍ سره وخورو. ګوندې ډوډۍ تیاره وي چې ویې خورو ... په مرامي (فاینل) غبرګغونډله کې هم راځي، لکه: زه راغلم چې ستا غم وخورم :

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | وخورم | وخورو |
| ۲ | وخورې | وخورئ |
| ۳ | وخوري | وخوري |

بېچار : چې له دویمې ولې څخه د لاسته راغلي بېچار کړنوم په لنډون او له هغه سره د مرستیالکړ (شول) په اوړون جوړېنت مومي :

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | وخورم | وخورو |
| ۲ | وخورې | وخورئ |
| ۳ | وخوري | وخوري |

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | وخوړل شم | وخوړل شو |
| ۲ | وخوړل شې | وخوړل شئ |
| ۳ | وخوړل شي | وخوړل شي |

غبرګوال، لکه : ځان وخورم ....

## دویم - ناخبري :

**۱ - اړوتی بشپړ وسمهال ( شرطی حال )** : چې له خبري بشپړ وسمهال سره توپیر یې یوازې د اړوییکي یا شرطیه ادات "که" په سرباري کولو څرګندېږي .

چاروال، لکه : که وخورم، که وخورې ....

بېچار، لکه : که وخوړل شم، که وخوړل شې ....

غبرګوال، لکه : که ځان وخورم، که ځان وخورې ....

**۲ - ارماني بشپړ وسمهال :** چې د ( کاشکې ) په مخکې کولو سره د خبري هغه غونډې رغېدنګ مومي :
چاروال، لکه : کاشکې وخورم، کاشکې وخورې ....
بېچار، لکه : کاشکې وخوړل شم، کاشکې وخوړل شې ....
غبرګوال، لکه : کاشکې ځان وخورم، کاشکې ځان وخورې ....

**۳ - پوښتني بشپړ وسمهال :** چې په رغېدنګ کې له خبري څخه يوازې د خج په پياوړتيا او د اهنګ په لوړتيا کې توپير لري . ليکنښه يې پوښتنښه ده :
چاروال، لکه : وخورم، وخورې ....
بېچار، لکه : وخوړل شم، وخوړل شې ....
غبرګوال، لکه : ځان وخورم، ځان وخورې ....

**۴ - هېښني بشپړ وسمهال :** له پوښتني هغه څخه يوازې په اهنګ او د غږېدونکي په اکر (وضع ) ببلتون موندلای شي او ليکنښه يې د پوښتنې (؟) پرځای بلننښه ( ! ) راځي .
چاروال، لکه : وخورم ! وخورې !
بېچار، لکه : وخوړل شم ! وخوړل شې !

**۵ - تواني بشپړ وسمهال :** چې له دويمې ولې څخه د لاسته راغلي بېچار کړنوم د پای غبرګغږ په اوړدولو او ورسره د " شول " په اوړونولو ( ګردانولو ) سره منځته راځي . د جولې له مخې له بشپړ تېرمهال سره کوم توپير نه لري . چاروال او بېچار يې سره د کړند او کړي او نورو اړوندو توکو له مخې توپيرېدای شي . چاروال، لکه : زه غم وخوړلای شم ؛ بېچار، لکه : زه په غم وخوړلای شم ....

د آر کړ او مرستيالکړ پر بنسټ د چاروال او بېچار ګډ اوړون :

| ګڼه / وګړی | يو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | وخوړلای شم | وخوړلای شو |
| ۲ | وخوړلای شې | وخوړلای شئ |
| ۳ | وخوړلای شي | وخوړلای شي |

**۶ - امري بشپړ وسمهال :** چې یوازې د دویم وګړي لپاره راځي، چاروال یې له لومړی ولې ځخه په ساده ډول او بېچار یې له دویمې ولې ځخه د لاسته راغلي بېچار کړنوم په لنډون او د مرستیالکړ " شول " په اوړون سره ترسره کېږي .

چاروال، لکه : وخوره ! وخورئ !

بېچار، لکه : وخوړل شه ! وخوړل شئ !

**۷ - ټینګاري یا تاکیدي بشپړ وسمهال :** چې له خبري هغه سره یې توپیر یوازې د ټینګار وییکي یا تاکیدي ادات ( دې )، یا " بویه " او یا باید په ورزیاتولو ترسره کېږي .

چاروال، لکه : ( له نومځرو سره )، لکه : زه دې وخورم ! ته دې وخورې ... !

بې نومځرو، لکه : ودې خورم ! ودې خوري ....

له باید سره،

بېچار، لکه : ( له نومځرو سره )، لکه : ودې خوړل شم ! ودې خوړل شې !

بې نومځرو، لکه : ودې خوړل شم ! ودې خوړل شې !

له " بویه " سره، لکه : بویه وخورم، بویه وخوړل شم ...

**۸ - غوښتني بشپړ وسمهال :** چې د عایا ښېرا څرګندوي او یوازې په ناتېرمهال کې راتلای شي. د ټینګاري هغه او کله کله د امري هغه غوندې جوړېږي، خو پوره څرګندتیا یې په یوه غوند له (جمله) کې له نورو توکونو سره کېدای شي، لکه:

سر دې وخورم یا سر مې دې وخورم، سر دې وخوره ! یا په دغو متلو کې :

نه آشه ښه ده نه ګله، دوی دې وخوري یو تربله ( میدان )

نه یوه ښه ده نه بله، دوی دې وخوري یو تربله ( د هېلمند ناوه )

په پښتو کې زیاتره آر کړونه په ساده او یووستوي توګه د غوښتني لپاره راتلای نه شي او مرستیالکړونه او توکونه ورسره ملګري کېږي .

ساده، لکه : ومره ! ژوه ! ( زنده باد ) .

ترښتي (ترکیبي)، لکه: ستړی مه شې ! خوار مه شې ! هرکله راشې ! خیر یوسې !

یا له ( خدای ) سره : خدای دې خوار مه کړه ! خدای دې وبښه، خدای دې ښه درسره وکړي ....

**۹ - ګوماني بشپړ وسمهال :** چې د اړنګ وییکو ( شکیه اداتو ) لکه " به "، " ګوندې " کړونو، غونډونو او یا ګرد سره غونډلو په مختاړي کولو له خبري هغه څخه جوړېږي .

چاروال، لکه : ښايي چې و(به) خورم، گونډې و(به) خورم، لکه چې وخورم، کېږي چې وخورم، وبه خورم ...(" به " دلته شکيه وييکی راڅي چې په ترڅ کې تش په نامه وسترمهال (!) هم جوړوي).
بېچار، لکه : ښايي چې وخوړل شم، گونډې وخوړل شم، لکه چې وخوړل شم، گونډې وخوړل شم ....

## ٢ - نابشپړ وسمهال ( غيرمطلق يا استمراري حال ) :

### يوم - خبري :

چاروال : چې بې له کوم مختاړي له لومړۍ کړولۍ سره د وگړيزو پايلو ( خاتمو ) په ملتيا جوړېږي :

| گڼه / وگړی | يو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ١ | خورم | خورو |
| ٢ | خورې | خورئ |
| ٣ | خوري | خوري |

بېچار : چې له لنډ کړ شوي بېچار کړنوم " خوړل " سره، مرستيالکړ " کېدل " په وسمهال کې اوړون مومي، لکه :

| گڼه / وگړی | يو گړی | ډېر گړی |
|---|---|---|
| ١ | خوړل کېږم | خوړل کېږو |
| ٢ | خوړل کېږې | خوړل کېږئ |
| ٣ | خوړل کېږي | خوړل کېږي |

غبرگوال، لکه : ځان خورم ....

### دويم - ناخبري

**١ - اړوتی نابشپړ وسمهال :** چې د آړ وييکي يا شرطيه ادات " که " په مختاړي کڼلو له خبري هغه څخه جوړېږي .
چاروال، لکه : که خورم، که خورې ....
بېچار، لکه : که خوړل کېږم، که وخوړل کېږې ....
غبرگوال، لکه : که ځان خورم، که ځان خورئ ....

۲ - **ارماني نابشپړ وسمهال** : چې د جولې له مخې له ارماني نابشپړ تېرمهال سره کوم توپير نه لري، لکه : کاشکې ما خوړلای . په دې توګه يې له نورو ارماني ( تېرمهال يا وسمهال ) ډولونو سره د چاروال او بېچار توپير، د دريځ او نومځرو له مخې کېدای شي .

۳ - **پوښتني نابشپړ وسمهال** : له بشپړتيايي يا مطلقه " وو " پرته نور د پرښتنې بشپړ وسمهال غوندې رغېدنګ لري، لکه خوړم ؟ .

۴ - **هيښني** : دا بيا له پوښتني سره يوازې په اهنګ او چاپېريال سره توپيرېدای شي او په ليك کې په بلننبه، لکه : خورم !

۵ - **ګوماني نابشپړ وسمهال** : له بشپړتيايي" و- " پرته نور د بشپړ هغه غوندې رغېږي، لکه : ګوندې خورم يا : ګوندې خپل سر خورم . . .

۶ - **تواني نابشپړ وسمهال** : د جولې له مخې له تواني نابشپړ تېرمهال سره کوم توپير نه لري او يوازې د جاج او موخې ( مفهوم أو مقصد ) له مخې ترې توپيرېدای شي او هماغسې د چاروال او بېچار بېلتون د نومځرو په اوښتون سره راځي، لکه : ما خوړلی شوای، زه خوړلی شوای . . .

۷ - **امري نابشپړ وسمهال** : چې کټ مټ د بشپړ هغه غوندې يوازې د دويم وګړي لپاره راځي، لکه : خوره ! خورئ !

۸ - **ټينګاري يا تاکيدي نابشپړ وسمهال** : چې د " دې " په ملتيا په دې وروسته ډول جوړېدنګ مومي .
چاروال : ( له نومځرو سره )، لکه : زه دې خورم، ته دې خورې .
بې له نومځرو، لکه : خوړل کېږم دې ! خوړل کېږې دې !

ب - نالېږند له (ځ -√، ولاړ -√او تلل -√يا تل -√)څخه :

۱ - **بشپړ وسمهال** : چې له دويمې ولۍ يا ستنې "ولاړ -" سره مرستيالکړ "شول" اوړون مومي.

**یوم - خبري :**

| وګړي \ ګڼه | یو ګړی | ډېر ګړي |
|---|---|---|
| ۱ | ولاړ شم | ولاړ شو |
| ۲ | ولاړ شې | ولاړ شئ |
| ۳ | ولاړ شي<br>ولاړه شي | ولاړ شي<br>ولاړ شي |

**دویم - ناخبري :**

**۱ - اړوتی بشپړ وسمهال** : چې د آړ وییکي یا شرطیه ادات " که " په مختاړي کولو د خبري هغه غوندې رغښدنه مومي، لکه : که ولاړ شم، که ولاړ شې ...

**۲ - ارماني بشپړ وسمهال** : چې د ټولو وګړو لپاره له " ولاړ - " څخه د جوړ شوي کړنوم " ولاړلی " په اوړدولو جوړېږي او د پوره څرګندتیا لپاره یې د " کاشکې " وییکي هم په سر کې راځي، او د جولې له مخې له ارماني بشپړ تېرمهال سره کوم توپیر نه لري، لکه :
کاشکې زه ولاړلای یا ولاړای، کاشکې ته ولاړلای یا ولاړای ...

**۳ - پوښتنی بشپړ وسمهال** : چې له خبري هغه سره یوازې په اهنګ کې توپیر لري، لکه :
ولاړ شم ؟ ولاړ شې ؟
- بدیعي پوښتنه ( Rhetorical question ) چې غبرګون نه غواړي، لکه څوک دی چې په خپله خوښه ګور ته ولاړ شي.

**۴ - هېښني** : چې له خبري، یا په بله وینا، له پوښتني هغه سره د غږېدونکي په یوه ځانګړي اکر (وضعیت) او اهنګ کې توپیر مومي، لکه : ولاړ شم ! ولاړ شې !

**۵ - تواني بشپړ وسمهال** : چې له " ولاړ " سره مرستیالکړ " شول " اوږد غبرګغږي کړ نوم " شولای " یا " شوای " اوړون مومي او په دې توګه د جولې له مخې له تواني بشپړ تېرمهال سره سمون خوري :

| گڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ولاړ شولای - شوای | ولاړ شولای - شوای |
| ۲ | ~ ~ ~ | ~ ~ ~ |
| ۳ | ~ ~ ~<br>ولاړ ~ ~ | ~ ~ ~<br>ولاړې ~ ~ |

**۶ - امري بشپړ وسمهال** : چې یوازې په دویم وګړي پورې اړه لري، لکه : ولاړ شه !، ولاړ شئ !

**۷ - تینګاري بشپړ وسمهال** : څنګه چې تینګاری کړ له آره د دویم او درېیم وګړي لپاره راځي نو په بشپړ وسمهال کې یې له خبري هغه سره توپیر یوازې په "دې" توکي کېدای شي چې هغه هم زیاتره د درېیم وګړي لپاره راځي او دویم وګړی یې ډېری په امریه ډوله اهنګ او یا هم لږو ډېر له "بویه" یا "باید" سره جوتتیا مومي، لکه : ( بویه ) ولاړ شې !، ( باید ) ولاړ شئ !، ولاړ دې شي !، ولاړه دې شي !، ولاړې دې شي !

**۸ - غوښتني بشپړ وسمهال** : چې له "ولاړ -" څخه په سیده ډول ډېر لږ دود لري، لکه : مال دې ولاړ شه سر دې نه !، سر دې وخورم ! ګور ته ولاړ شې !

**۹ - ګوماني یا احتمالي بشپړ وسمهال** : چې له " ولاړ - " سره مرستیالکړ " شُول " د اړنګ وییکو ( شکیه ادات ) یا په بله وینا ، د اړنګ توکونو او لږو ډېر د اړیکوییکي " چې " په ملتیا اوړون مومي، لکه :
بنایي ( چې ) ولاړ شم، ګوندې ( چې ) ولاړ شم، لکه چې ولاړ شم، کېږي چې ولاړ شم .... ( دلته لومړی او وروستی بېلګه چارتاکې غبرګغونډله ده ) .

**۲ - نابشپړ وسمهال** : چې یوازې د ارماني او تواني لپاره " تل - " یا " تلل - " سته راځي څکه چې د جولې له مخې له تېرمهال سره سمون لري او نور پاتې ډولونه یې د " ځ - " له ولی څخه جوړېږي چې د " تل - " یا " تلل - " او " ولاړ - "، سوپلاتیف ( بشپړ اند ) بلل کېږي .

## يوم - خبري :

| گڼه / وګړی | يو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ځم | ځو |
| ۲ | ځې | ځئ |
| ۳ | ځي | ځي |

## دويم - ناخبري :

۱ - اړوتی، لکه : که ځم، که ځې ...

۲ - پوښتني، لکه : ځم ؟ ځې ؟

۳ - هيښنني، لکه : ځم ! ځې !

۴ - امري، لکه : ځه ! ځئ !

۵ - ټينګاري، لکه : ځم دې، ځي دې ( نورې بڼې له بويه يا بايد سره رغېږي ) .

۶ - ګوماني، چې د " ګوتدې " او " لکه چې " په ملګرتيا د خبري هغه غوندې جوړېږي، لکه : ګوندې ځم، لکه چې ځم .

۷ - غوښتني : دود نه لري .

۸ - ارماني : چې د " تل - "، يا په بله وينا، " تلل - " د چارنوم " تللی " په اوړدولو سره جوړېږي خو د نورو ارماني کړو په څېر له " کاشکې " سره ښه ترا جوتتيا مومي، لکه : زه تلای، ته تلای ...

۹ - تواني : چې د " تل - " يا " تلل - " له چارنوم " تلی " يا " تللی " سره د مرستيالکړ " شول " د اوړد چارنوم " شوای " په ملتيا جوړښت مومي، او د ټولو وګړو لپاره په همدې يوه بڼه راځي، لکه : زه تللی شوای، تللی شوای ...

## درېيم - وسترمهال ( مستقبل ) کړ

که څه هم له پخوانۍ پښوييزې نومونپوهنې سره سم تر تېرمهال او وسمهال کړ وروسته وسترمهال کړ درېيم ډول جوړوي . په دې مانا چې په ګانده (آينده) کې د يوه چار پېښبدنه څرګندوي، خو زياتره ننني پښوپېوهان د کړ دغه اوړوني بڼه د جاج ومانا له پلوه له وسمهالې هغې سره ګډوي. که څه هم له جوليز پلوه ورسره يو بېلندويه ننبه يا توکی ملتيا کوي، لکه په پښتو کې "به"، په پارسۍ کې "خواه -"، په عربۍ کې "س -" او "سوف -" په انګريزۍ کې will او shall او داسې نور. خو بيا هم پښتو "به" لکه د پارسي او انګريزي انډولو غوندې نورې پازې هم لري، لکه روړدني (اعتيادي) او ګوماني (شکيه) هغه په تېرمهال کړ کې (هغه به ته، هغه به تللی وي ...) .

سره له دي چي همدغه "به" په ښکاره ډول له بشپړ وسمهاله بشپړ وسترمهال جوړوي (وبه خورم، ولاړ به شم) او له نابشپړ وسمهاله نابشپړ وسترمهال (خورم به، ځم به)، مګر د وسترمهالکړ په نامه دغه وروستی ببلګي په پرله پسي توګه د بشپړ وسمهالکړ ګوماني او روږدني بڼه هم راتداعي کوي. نو له همدي لامله نن سبا وسمهالکړ او وسترمهالکړ له ټولو بڼو یا څېلونو سره په یوه غونډ نوم "ناتېرمهالکړ" بلل کېږي، لکه څنګه چي مېکنزي او تري هم همدغه نومونه کاروي. په هره توګه دا دی، د وسترمهال له دودیزي نوموني سره سم د وسترمهال هماغه کېدوني، یا دود کړ اوړونونه په ببلګو کي وړاندي کوو:

**الف** – له لېږند "خور –" او "خوړ –" څخه

## یوم - خبري :

**۱ – بشپړ وسترمهال** : چي اړوند "به" وییکی د سرباري یا بشپړتیایي (و - ) او ګردانېدونکي کړ په منځ کي ورلوېږي:

تړوال

| گڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | وبه خورم | وبه خورو |
| ۲ | وبه خوري | وبه خورئ |
| ۳ | وبه خوري | وبه خوري |

بې چار

| گڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | وبه خوړل شم | وبه خوړل شو |
| ۲ | وبه خوړل شي | وبه خوړل شئ |
| ۳ | وبه خوړل شي | وبه خوړل شي |

غبرګوال : ځان به وخورم ....

## ۲ - نابشپړ وسترمهال :

| گڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | خورم به ( زه به خورم ) | خورو به ( موږ به خورو ) |
| ۲ | خوري به ( ته به خوري ) | خورئ به ( تاسي به خورئ ) |
| ۳ | خوري به (دی به خوري، دا به خوري) | خوري به ( دوی به خوري ) |

بې چار

| ګڼه / وګړی | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | خوړل کېږم به (زه به خوړل کېږم) | خوړل کېږو به |
| ۲ | خوړل کېږې به | خوړل کېږئ به |
| ۳ | خوړل کېږي به | خوړل کېږي به |

## دویم - ناخبري :

اړوتی ( شرطي ) :

بشپړ : که به وخورم که به وخوړل شم ...

نابشپړ : که به خورم که به خوړل کېږم

ګوماني : ګوندې خورم به ګوندې خوړل کېږم به

توانې :

بشپړ : وبه مې خوړلی شو وبه خوړلی شم

نابشپړ : خوړای به مې شو خوړل کېدای به شم

پوښتني :

بشپړ : وبه خورم ؟ وبه خوړل شم ؟

نابشپړ : خورم به ؟ خوړل کېږم به ؟

هېښني :

بشپړ : وبه خورم ! وبه خوړل شم !

نابشپړ : خورم به ! خوړل کېږم به !

امري :

بشپړ : وبه خورې ! وبه خورئ !

نابشپړ : خورې به ! خورئ به !

د ټینګاري، ارماني او غوښتني وسترمهالکړ کوم ګړدودي څرک نه لګېږي .

**ب** – له نالېږند $\sqrt{}$ ځ – او ولاړ – $\sqrt{}$ څخه .

## یوم – خبری :

## ۲ – نابشپړ، لکه :

| وګړی \ ګڼه | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ولاړ به شم ( ولاړه به شم ) | ولاړ به شو |
| ۲ | ولاړ به شې، ولاړه به شې | ولاړ به شئ، ولاړې به شئ |
| ۳ | ولاړ به شي<br>ولاړه به شي | ولاړ به شي<br>ولاړې به شي |

| وګړی \ ګڼه | یو ګړی | ډېر ګړی |
|---|---|---|
| ۱ | ځم به ( زه به ځم ) | ځو به |
| ۲ | ځې به | ځئ به |
| ۳ | ځي به ( دی – دا به ځي ) | ځي به |

## دویم - ناخبري :

## لیږند وسترمهالکړ :

اړوتی ( شرطي ) :

بشپړ : که به ولاړ شم

نابشپړ : که به ځم

گوماني :

گوندې ځم به

تواني :

بشپړ : وبه تلای شم

نابشپړ : تلای به شم

پوښتني :

بشپړ : ولاړ به شم ؟ (وبه درومم ؟)

نابشپړ : ځم به ؟

هېښني :

بشپړ : ولاړ به شم ! ( وبه درومم ! )

نابشپړ : ځم به !

## د کړ رغاوني ( ساختماني ) ډولونه

د کړ تر بېلا بېلو گرامري ډولونو او اړونونو ( گردانو ) وروسته غواړو د ویې رغاونې ( لغوي ساختمان ) له مخې د هغه رغاونه او جوړښت تر کتنې لاندې ونیسو . په دې توگه له څلورو ډولو کړونو سره مخامخېږو :

## ساده، بېلښتي ( اشتقاقي )، شا پرشا یا خوا پرخوا، ترښتي ( ترکیبي ) .

وروستي درې ډوله په یوه نامه، غونډیز یا فقره یي کړونه ( Phrasal verbs ) هم بلل کېږي :

**۱ - ساده یا یوستوی کړ** : چې ستنه یا بنسټ یې له یو گړیزې ( یوفورفیمیزې ) ولۍ څخه جوړېږي او اړوني مختاړي او وروستاړي وریورې سیده نښلول کېږي، لکه : " خور - " چې خورم، خورو، خورې، خورې، خوري، وخوړ، خوړ ... او داسې نورې جوړوني ترې کېږي .

**۲ - بېلښتي یا اشتقاقي کړ** : چې ستنه یا بنسټ یې له یوگړې ولۍ او کوم تاړي (افیکس) څخه جوړوي . په دې مانا چې د کړولۍ جاج (مفهوم) د یوه تاړي په ملتیا بشپړېږي او څرگندېږي . یا په بله وینا، دغسې یو تاړی د جاج او مانا له مخې د کړولۍ نه بېلېدونکی توک گڼل کېږي . په دې توگه یې که له ولۍ یا ستنې څخه لرې کړو، تاکلی جاج یې اوړي او یا یې کورټ له لاسه

ورکوي، لکه : راغلل، درغلل، ورغلل، راتلل، درتلل، ورتلل، راکول، درکول، ورکول، کښېوتل، کښېناستل، کښېنې ایستل، کښېښوول، پرې وتل، پورې وهل، پورې اېستل، پورې کول ... دغه راز ډېر ستاینومونه او څېزنومونه هم د روستاړو په نښلولو نه د وسمهالکړ ستنه یا په بله وینا، بنسټ گرځي، لکه : لوېدل، غځېدل، تېریدل، کارېدل، اوبېدل، دودېدل، لاسېدل، لویول، غځول، تېرول، کارول، اوبول، دودول، لاسول ...

د بېلښتي یا اشتقاقي او مشتق کړ رغاونه داسې لنډون مومي :

۱) کړ ولی + مختاړي = راتلل، درتلل، ورتلل ...

۲) ستاینوم ولی + روستاړی = لوېدل، لوبول، غځېدل، غځول ...

۳) څېزنوم ولی + روستاړی = اوبېدل، اوبول، دودېدل، دودول ... له ستاینومو یا څېزنومو پرته له تېرمهالې یا دویمې ستنې څخه، لکه : پاڅېدل، نڅېدل ... په - یدل یا - ول .

زموږ دودیز ژبپوهان دغې ډلې کړونو ته ( یدل والا مصدرونه ) وایي چې یو ناپوهیزه نومونه ده، سمه نومونه یې تېرمهالې ستنه ده چې ( - ل ) ترې په اوړون کې زیاتره غورځي .

## ۳ - خوا پرخوا یا سست ترښتي ( ترکیبي کړ ) : هغه راز کړ ته وایي چې د کړ ستنه یا

بنسټ له دوو یا ډېرو خپلواکو گړونو (مورفیمونو) څخه هسې سرسري او یا بابزیو ځایوالی موندلی وي . په بله وینا، یو پوخ ترنگ (ترکیب) یې بللای نه شو، داسې چې سره یوځای شوي توکونه، نه خج له لاسه ورکوي او نه پایلې، او په دې یې پایلې سره جلا جلا خپله اوړوني (تصریفي لوښه (خاصه) راڅرگندوي، حال دا چې په یو پوخ یا رښتیني ترنگ کې د رغنده توکونو (اجزاوو) خجونه او تصریفي پایلې پر وروستي توك باندې پنډېدنه او یو کېد (تجمع او توحید) مومي .

د خوا پرخوا کړ رغاونه په دې لاندې څرگندنو (اصطلاحاتو) کې ښوول کېږي :

۱) څېزنوم + مرستیالکړ : زمری کېدل - کول، زمری کېدل، کول، زمري کېدل - کول، زمریانې کېدل - کول ...

۲) ستاینوم + مرستیالکړ: مړکېدل - کول، مړه کېدل - کول، مړې کېدل، کول ...

۳) چاروالکړ نوم + مرستیالکړ : سرخوړونکی کېدل - کول، سرخوړونکې کېدل، سرخوړونکي کېدل - کول، سرخوړونکی کېدل - کول ...

۴) ببچار کړنوم + مرستیالکړ : سرخوړلی کېدل - کول، سرخوړلې کېدل - کول، سرخوړلي کېدل - کول، سرخوړلې کېدل -- کول ...

۵) شمېرنوم + مرستیالکړ : دوه کېدل - کول، دوې کېدل -- کول ...

۶) ستاینوم + مرستیالکړ : لوده - شوده - بدمرغه ... کېدل یا کول

۷) بیا خلي ستاینوم + مرستیالکړ : لوده لوده - شوده شوده ... کېدل یا کول .

۸) بیا خلې کړول + مرستیالکړ : پورته پورته - ښکته ښکته - وروسته وروسته کېدل یا کول ...

۹) بیا ځلي ستاینوم + مرستیالکړ : تود تود کېدل - کول، توده توده کېدل – کول، تاوده تاوده کېدل – کول، تودې تودې کېدل – کول ... .

۱۰) سربَل + څیزنوم + مرستیالکړ : ترلاسه کېدل – کول ... .

۱۱) سربَل + څیزنوم + اوستربل + آر کړ : تر سره کول، ترپایه پورې رسېدل - رسول ... .

۱۲) څیزنوم + اوستربل + مرستیاُلکړ: مخ ته کېدل - کول، شا ته کېدل - کول ... .

۱۳) څیزنوم + اوستربل + آر کړ : پای ته رسېدل - رسول، سرته ختل - خېژول ... .

۱۴) څیزنوم + اوستربل + بېلبنتي کړ : لاس ته راوړل، لاس ته راوستل ... .

۱۵) پلوي نومځری + څیزنوم + اوستربل + مرستیالکړ : رامخته کېدل – کول، رامنځته کېدل – کول ... .

**۴ - ترښتي ( ترکیبي ) کړ** : له خوا پرخوا کړ سره یې په رغاونه کې توپیر دا دی چې دلته مله یا یوځای شوي توکونه سره یو نه جلا کېدونکی یووالی منځته راوړي . په دې مانا چې مخني توکونه یې خپل خج او اوړوني تاړي او له دې سره مانیزه او گرامري خپلواکي له لاسه ورکوي او یوازې وروستنی هغه یې د گرد ترنگ په ښکارندویی یو غښتلی خج او اوړوني نښې نښانې ځان ته اخلي . البته مخني توکونه یې یا له آره ناوړېدوني وي ( لکه آر کړولونه ) او یا یې په همدغه ترنگ کې خپله اوړوني او گرامري جوله او چارومانا له لاسه ورکړي وي .

ترښتي کړ هم د ( خوا پرخوا ) کړ په توپیر تر څرگندنو، په گړنو ( ایدیمونو ) زیاته اړه لري، لکه په دې ببېلگو کې :

۱) څیزنوم + مرستیالکړ : زړه کېدل ( میل درلودل )، غلا کېدل – کول .
( خج پر مرستیالکړ ) که نه پرخوا پرخوا کړ بدلېږي .

۲) څیزنوم + مرستیالکړ : زړه کول ( جرئت کول ) .

۳) څیزنوم + مرستیالکړ : توره کول ( غیرت یا مېړانه کول ) .

۴) ترښتي څیزنوم + مرستیالکړ : زړه نازړه کېدل ( تکنی یا متردد کېدل ) .

۵) بیا ځلي څیزنوم + مرستیالکړ : سترگې سترگې کېدل ( انتظار ایستل )، غوږ غوږ کېدل .

۶) څیزنوم + آر کړ : پښه نیول، لاس اخیستل، سرخوړېدل، ځان پړسول او داسې نور ... .

## کړاوونه :

۱ – کړ څه راز ګړ دی، څه او څنګه څرګندونه کوي ؟
۲ – مصدر له کړ سره څه اړیکي لري او دغه نومونه ( اصطلاح ) د څه لپاره کارول کېده او کارول کېږي ؟
۳ – د یو کړ بنسټ او اساس څه شیز دی او په څه نامه یادېږي ؟
۴ – یو اوړون موندلی کړ څومره توکونه او چارونه درلودای شي ؟
۵ – مهال پر څو ډوله دی ؟
۶ – کړ نوړی څه ته وايي او پر څو ډوله دی ؟
۷ – وګړی او ګڼه سره څه توپیر لري ؟
۸ – چاروال، بېچار او غبرګوال یا منځوالکړ په یو یو ساري ( مثال ) راوپېژنئ ؟
۹ – کړ نوم یا حاصل مصدر څه ته وايي او څه ډول جوړېدای شي ؟
۱۰ – تواني کړ څنګه جوړېږي ؟
۱۱ – بشپړ ( مطلق ) او نابشپړ ( غیرمطلق ) کړ سره څه توپیر لري ؟
۱۲ – لر او لنډ کړ په یو یو ساري راوښیاست ؟
۱۳ – کوزاتیف یا لېږند چار کړ څه ته وايي له یو ساري سره یې وښیاست ؟
۱۴ – کړ ول څه ته وايي ؟
۱۵ – په دې متل کې د کړ خبري او ناخبري کړونه ونومېرئ :

نه آشه ښه ده، نه ګله
دوی دې وخوري یو تربله .

۱۶ – ستنه د ګردان شوي کړ کومه برخه ده ؟
۱۷ – تېرمهالې او وسمهالې ستنې سره څه جولیز توپیر لري او د لېږند او نالېږند کړ ستنې سره کومې بېلتیاوې لري ؟
۱۸ – د بشپړ او نابشپړ وسمهال بېلګې ولیکئ !
۱۹ – وسترمهال څه راز مهال دی، روږدنی ( اعتیادي ) اوړون یې څنګه راځي ؟
۲۰ – د لیېږند او نالېږند کړ توپیر په تېرمهال او وسمهال کې څنګه کوئ ؟
۲۱ – د ساده، بېلښتي او ترښتي کړونو یوه یوه بېلګه وکاږئ !

## د ګړپوهې ( صرف ) دویمه برخه :

# ناوړېدوني ګړونه Indeclinable Morphemes

د ګړپوهې ( مورفولوجی ) په تېره برخه کې مو له نومونو او کړونو څخه خبرې وکړې او په هغه ترڅ کې مو د هغو ډولونه او اوړونونه ( ګردانونه ) وړاندې کړل، په دې برخه کې غواړو، د ازادو یا ناوړېدونیو ګړونو ( مورفیمونو ) دویمه ډله ترکتنې لاندې نیسو. د دې ډلې ځانګړتیا دا ده چې د تېرې ډلې ( نومونو او کړونو ) په توپیر ناوړېدوني دي او ځانته کومه ازاده ویېزه ( لغوي ) مانا نه لري، بلکې له خپلواکو ګړونو ( نومونو او کړونو ) سره یې چار او مانا جوتېږي، یا په بله وینا، د غونډلې ( جملې ) له مرستیالو توکونو څخه ګڼل کېږي او له همدې پلوه زیاتره د ګړپوهې پرځای په غونډله پوهه کې تر څېړنې لاندې نیول کېږي.

نا آر یا ستاینومیزه، څېزنومیز او غونډ ډوله کړولونه ( ← ) بیا له نومونو او کړونو سره د آرو، یا خپلواکو ګړونو ( مورفیمونو ) ډله جوړوي.

ناوړېدوني ګړونه په دې وروسته توګه بېلا بېلې ټولې ( کټېګورۍ ) او ډولونه جوړوي :

### ۱ - کړولونه یا قیدونه *Adverbs* :

کړولونه هغه ژبني توکونه دي چې د یوه کړ د پېښېدنې څرنګوالی ښیي، دا څرنګوالی د کړ د پېښېدلو ځای یا مهال ټاکي او یا یې څرګندتیا، اړوندتیا، ټینګار او داسې نورې ځانګړتیاوې ښکاره کوي. په پښتو کې آر کړولونه ناوړېدوني دي، لکه : اوس، بیا، بېرته، ژر، ورو، هرګوره، هرومرو، زازو، ناڅاپه یا ناڅاپي، نابېره، کښته، پورته، لاندې، باندې، پاس، نن، پرون، لرغون، پخوا، وړاندې، وروسته، لرې، نژدې، دلته، هلته .... نا آر، لکه څېزنومونه او ستاینومونه او غونډونه ( فقرې ) چې په څرمه ډول د کړولونو په توګه کارول کېږي. البته ناوړېدوني نه بلل کېږي. په ټولیز ډول آر او په ترڅ کې ورسره ناآر کړولونه دا وروسته وېشنه لري :

۱ - مهالي کړول : چې د مهال له مخې د يوه کړ پېښېدنه اغېزمنوي، لکه :
اوس، وروسته، مخکې، له مخه، پخوا، وړاندې، ، سم له لاسه، سملاسي، په سر کې، په پيل کې، په پای کې، پای ته، بيرته، سرته، ژر، ورو، ګړندې، ځنډيا په ځنډ، بې ځنډه، په بيړه، په تلوار، په چټکۍ، په چابکۍ، ورمه ورځ، نن، پرون، نن سبا، سبا، سبا ته، بل سبا ته، نن شپه، نن ګهيځ، نن غرمه، نن ماښام ....، ګهيځ، سهار، غرمه، ماسپښين، مازيګر (مازيګر چېرې وې لوی مه شې - ما په منګي کې شنه بادرنګ راوړي وونه )، له وخته، ناوخته، وختي، ناوخته، لمرخاته، لمر پرېواته، بل کال ته، ترڅو يا څو، په ځغاسته، په منډه، د منډې له مخې، په لنډو ( کې )، د ولاړې له مخې او داسې نور آر او نا آر کړولونه.

بيا ځلي ( تکراري )، لکه : ژر ژر، ژر تر ژره، اوس اوس، بيا بيا، کله کله، کله ناکله، وروسته وروسته، وار له واره ، مخکې له مخکې، لنډ پر لنډ يا لنډ پر لنډه، لاس پرلاس ... - " وسمهال " يا " په اوس مهال کې " د " اوس اوس، نن سبا، نن پرون ... " ناکره انډولونه دي. همدارنګه د " اوس " پر ځای " دا وخت " يا " دا مهال " هم دومره کره نه برېښي.

**توني ( مکاني ) کړول** : چې د يوه کړ پېښېدنه د ځای او چاپېريال له مخې اغېزمنوي، لکه :
دلته، هلته، دلې، هلې، دورې، هورې، مخکې، وروسته، شاته، مخ ته، بيرته، وړاندې، لرې، نژدې ... ( دغه راز کړولونه زياتره مهالي او توني دواړه کار ورکوي، يا په بله وينا ، هم مهالي او هم توني دي )، کښته، پورته، کښته پورته، لاندې، باندې، لاندې باندې، دننه، له دننه، له د باندې، اخوا، دېخوا، اخوا دېخوا، شاوخوا، له لرې، له نژدې، له ورا- يا له ورايه، له پاسه، له باندې، له لاندې، مخامخ، پښي شا، مخ پورته، مخ کښته، مخ پر وړاندې، مخ پرشا، ستوني ستغ يا ستوني ستاخ، سر پرځنې، ځای پرځای، لور له لوره، لورا لور، کورا کور ... او داسې نور آر او نا آر يا ساده او ترښتي توني کړولونه.

**۳ - ځرګندني او ټينګاري کړولونه** : چې د يوه کړ د پېښېدنې ځرګندتيا، حالت، ځرنګتيا يا ټينګار ښيي، لکه :
په ځغرده، په ډاګه، ډانګ پېيلې ( ويل )، په ښکاره، په پټه، په ځرګنده، په غلا، په زيار، په خوارۍ، په مېړانه، په وېره خوله، په زور يا په زوره، په خوښه، ورو يا په ورو ( اواز )، په نره، مړو سترګو، په ټيټو سترګو، په جګه يا هسکه غاړه، خوله پرخوله (،) غاړه پرغاړه، په کلکه، په ټينګه، د زړه له کومې، زړه نازړه ( کول - ويل ... )، په ملاسته، هرومرو، زازو، په هر ډول، په هره توګه، هيڅ پر هيڅ يا هيڅ پر هيڅه، خوشې پر خوشې، په اوږدو، په لنډو يا په ساره، څه ناڅه، لږو ډېر، کټ مټ ... يا د اوږدو ګړنو په بڼه، لکه : له اوښکو ډکې سترګې، په سترګو سترګو کې، وانبه پرخوله رسی پرغاړه ( ورتلل ) ....

۴ - اړیککړولونه هغه دي چې د اړیکوییکو په چار کې راڅرګندېږي. همدارنګه پوښتکړولونه هم دراخله.

## دويم - وییکي ( ادوات *Particles* ) :

دا هم د ناوړېدونو یا ازادو ګړونو ( مورفیمونو ) یوه غوره برخه ده او بېلګې یې په دې وروسته ډول دي :

## ۱ - اړیکوییکي ( ارتباطي ادات *Conjunctions* ) :

چې د څومره والي او څرنګوالي یا ورته والي له مخې سرهٔ آړې او څېرمه غونډلې (جملې) نښلوي او په دې توګه دوه دوه سره غاړه کېږي. له دویمې سره یې زیاتره "چې" هم ملګرې کېږي، که څه هم "چې" د یوه ډېر چاري اړیکوییکي په توګه څانته بې .غوړې هم راځي. د اړیکوییکو جوړې، لکه " څومره " او " هومره " په دې غبرګه غونډله کې : ( - څومره ) دیګ ( هسې ) تېپر. نورې جوړې، لکه : که څه هم – بیا هم. څومره چې – هومره یا هماغومره. چېرې - هلته ( چېرې دې ښه، هلته دې شپه ) ؛ څنګه چې – هسې، ( داسې، همداسې، همدا راز، هغسې، همدارنګه، هماغسې یا همهغسې ). په کندهاري ګړدود کې " څکه " هم د " څنګه " پازه پرځای کوي، لکه چې وایي :

څکه چې ناروغ وم، نو درمل مې وخوړل. " که " بیا په اړیکوییکو کې یو آړ وییکی دی چې د دوو غونډلو ترمنځ یو آړ ( شرط )، ټینګوي او " نو " یا بل کوم توك ورسره په اړونده غونډله کې غاړه کېږي، لکه : ( که ) ته راشې، ( نو ) زه به هم راشم.

## ۲ - تروییکي ( د عطف توري ) :

چې دوه توکونه ( ویي ) یا غونډلې سره ملګرې کوي، لکه : او، و. دا تروییکي له آره په اړیکوییکو کې راځي، خو د دودیز عربي او پارسي " حروف عطف " له نومونې سره سم ورته دغه ځانګړې نوم ورکړ شو، په دې بېلګو کې :

باغ وای د ګلونو پکې ناست وای زه او ته ....

" و " او " او " سره هممانیز دي او یوازې غږیز ( فونېتیکي ) توپیر سره لري. همدغه " او " دی چې د وییونو ترمنځ په زیاته کارېدنه پر " و " اوړي، لکه : مور و پلار، خور و ورور. مګر که له خپلواکپای ویي سره بل ویی ترل کېږي نو په آره بڼه راځي، لکه : کاکا او ماما، ښه او بد .... بل دا چې زیاتره " او " یو نحوي تړاو ښیي او " و " یو لغوي تړون. هرګوره، د غونډ او غونډلو د تړاو لپاره تل "او" څېل کارول کېږي.

" سره " هم یو کړ ول ډوله تروییکی دی چې د دوو نومونو د تړاو لپاره یا د " او " پرځای راځي او یا د ټینګار لپاره له " او " سره یوځای دغه دنده پرځای کوي. له نورو تروییکو سره دا توپیر لري چې

د ملګرو توکونو ( وييونو يا غونډلو ) ترمنځ نه، بلکې وروسته ترې راځي او هغه سره تړي يا ملګري کوي، لکه : څوکری، ګنډېری سره ورونه دي، څوکری او ګنډېری سره ورونه دي.

**۳ - ناتړوييکي** ***disconjuctives*** : هغه دي چې د تړوييکو سرچپه د تړاو پرځای نه تړاو، يا په بله وينا، غوراوی ( انتخاب ) راڅرګندوي، چې له دوو يا ډېرو څيزونو يا پديدو څخه يو ومنل شي او بل يا نور رد کړ شي او هغه "که" "او" "يا" "يا ناکره" "ليا" ( لا ) دي، لکه : نن وي، (که ) سبا، دا وطن د زرغون خان دی.

(يا) به دې زلفې کمر بند کړم

(يا) به مې سر د غرغرې شمال وهينه

## ۴ - ورتني يا تشبيهي وييکي :

چې په دوديز ګرامر او ادبي فنونو کې يې ( حروف تشبيه ) بولي، هغه وييکي دي چې د دوو يا زياتو څيزونو يا پديدو ورته والی او مشابهت ښيي، لکه : غوندې، په څېر، په رنګ، په شان، په دود، په توګه، په ډول، په راز .... چې د "د" سربل ( ← ) په وړاندې له " غوندې " پرته درغلي (کاذب )، يا په بله وينا، غونډ ډوله ( فقره يي ) اوستربلونه ګڼل کېږي.

## ۵ - سربلونه + اوستربلونه :

سربلونه prepositions او اوستربلونه postpositions هغه کوشني ناخپلواک او ناوړېدونې ډېر پېښني ( کثيرالوقوع ) او ډېر کارنده ژبني توکونه يا وييکي particles دي چې په يوه غونډله ( جمله ) کې يې د خپلواکو توکونو يا نومونو (صفتونو، ضميرونو او شمېرنومونو) په ملتيا مانا او دنده څرګندېږي. سره له دې چې سربلونه او اوستربلونه د غونډلې ( جملې )، يا په بله وينا، په ناخپلواکو او مرستيالو توکونو کې راځي او مانا او پازه يې د همدغو نومونو يا کړونو او کړولونو په ګاونډيتوب کې څرګندېدای شي، خو دا چې پر دغو آرو يا خپلواکو توکونو يو ډول اغېز لري او د هغوی دريځونه او پېرونه ( حالتونه ) څرګندوي، نو اداره کوونکي، چلوونکي يا واکمن توکونه هم بلل کېږي ( په نحوي شننه کې به پرې هم خبرې وشي ).

## د رغاونې له مخې :

پښتو د پارسی، انګريزی او نورو ډېرو ژبو د يووستو سربلونو يا د هندي ژبو د يووستو اوستربلونو په وړاندې جوړه جوړه سربلونه او اوستربلونه لري. دا هره جوړه له آره يو( يوون unit )، يا په بله مانا، يوه ګرامري ټولی ( کتېګوری ) ګڼل کېږي. سربلونه تر نومونو ( څيز نومونو، نومځرو، ستاينومونو او شمېر نومونو ) له مخه او اوستربلونه وروسته راځي. زياتره سربلونه څو څو اوستربلونه لري او په دې توګه په پښتو کې تر سربلونو څخه د اوستربلونو شمېر زيات دی. داسې چې د سربلونو کارونه اړينه ده او هېرول يې په کره ليکنی پښتو کې په کار نه دي، خو په

اوستربلونو کې کله کله یو نیم غورځېدای ( حذفېدای ) شي. هرګوره، په سربلو کې یوازې "و –" له معیاره لوېدلی او اړوند اوستربل "– ته" پرځای پاتې دي.

د سربلونو ( او اوستربلونو ) ښېځایه کارونه ښایسته ډېرې ګرامري او مانیزې ښویېدنې منځته راوړي، د ښېلګې په توګه وګورئ، په دې لاندې شعرو کې د (له) پر ځای ( د ) څومره مانیز بدلون رامینځته کړی دی !

تا به تل ساتم (د) پردو وطنه !

یا په دې بل کې :

ته خو به (د) زلفو کوځې جوړې کړې - زه په دا شلېدلي ګرېوان څه وکړم (خاطر)

پښتو سربلونه، که څه هم ټول یووستوي دي، خو دا چې له هر یوه سره تر اړوند نامه یا غونډ وروسته یو اوستربل د بشپړ اند " متمم " په توګه هم غاړه کېږي، د ساري په ډول د هر انګریزي سربل پښتو اندول یوازې یو ټاکلی سربل نه، بلکې یو سربل او یو اوستربل غبرګ راځي، نو په پوره مانا یووستوي نه بلل کېږي. سره له دې چې ترمنځ یې نوم یا غونډ ټیکاو لري او پتلېز سره نه ویل کېږي. له (بې) سربل سره د ( له ) ملګري کول هرګوره دومره اړین نه برېښي، همدا راز (سره له) د ( باوجود ) په مانا کېدای شي، پر غبرګ اوستربل ( سره سره ) واړول شي چې د غبرګو اوستربلو په توګه تر نوم وروسته راځي. یوازې د شعري اړتیا یا سپما له مخې کېدای شي، ( بې له ) او ( سره له ) د غبرګو سربلو په توګه وکارول شي. له دې کبله په جلا جلا ډول ټول پښتو سربلونه یووستوي وییکي دي او بل وېش نه لري، خو اوستربلونه پر درو رغاونیزو ډلو وېشنه وومي :

۱ – یووستوي، لکه : کې، سره، پورې، باندې، لاندې، وروسته، څخه (ځنې، نه)، پرته، ته، غوندې، کره.

۲ – بېلښتي ( اشتقاقي ) او ترښتي ( ترکیبي )، لکه : لپاره، له مخې، دننه، د باندې، پسې، سربېره، راهیسې ؛ ترښتي، لکه : ( سره سره ) یا ( سره له )، دننه دننه.

۳ – بدل یا درغلي اوستربلونه ( pseudo-postpositions ) چې په پښتو کې زیاتره د " د " سربل ( ← ) په وړاندې تولي ( ملکي یا اضافي possessive ) پېر (حالت) جوړوي او ډېر د غونډو په بڼه راځي او دا چې " د " د یوه تولي ( اضافي ) سربل په توګه یو ډېر پېښنی سربل دی، نو د اړوند اوستربل غونډونه ورسره هم له شمېره وتلي برېښي، لکه :

په رنګ، په شان، په شانې ( پشانې )، په شانته، په څېر، په ډول، په توګه، لپاره ( له پاره )، په ګډون، په ملاتړ، په وینا، په بدرګه، په ننګه، په ملتیا، په ملګرتیا، په مرسته، له مخې، پر بنسټ، په ګناه، په اړه، په اړوندتیا، په اړوندی ( په اړوند ناسم )، په نامه، په پار، په پته، په توپیر، په خوښه، په مینه، په مېرانه، په زور، له لاسه، له کبله، له پلوه، په یاد، په درناوي، په هرکلي کې، په درشل کې، په باب، په باره کې، مخامخ، پرخوا، په پلوی ....

د ( له ) سربل په وړاندې، لکه : آخوا یا هاخوا ( هغه خوا ). دېخوا، دې پلو، آپلو، پلوه، سره په گډه، سره لاس پر لاس، سر اوږه پر اوږه، سره خوله پر خوله، سره غاړه پر غاړه، سره مخامخ، سره مخ پر مخ، سره شا پر شا ....

د ( تر ) سربل په وړاندې بدل اوستربلونه، لکه : پخوا، له مخه، مخکې، ډېر، زیات، غوره، مینځ ....

د " و " ( له معیاره لویدلي ) سربل د اړوند اوستربل " ته " په ملگرتیا بدل اوستربل، لکه : ته مخامخ، ته درناوی، ته ورته ( مشابه ).

د ( پر ) سربل په وړاندې چېرې کومه بېلگه نیمه پیدا کېږي، لکه : پر ځان له پاسه ( بل ځوك نه غواړم ). د بېلبنتي ( اشتقاقي ) " راهیسې " اوستربل ترځنگه ناکره واړینتونه هم په بدلو اوستربلو کې راتلای شي، لکه : را په دیخوا، په راهورې، په را دورې ....

که تولي ( اضافي ) سربل "د" پورتني اوستربلونه رامنځته نه کړي، یا په بله وینا، کړولي ( قیدي ) یا ستاینومیز غونډونه جوړ نه کړي او یوازې له یوه تولنوم سره یو ( یا زیات ) تولي ( مضافونه ) ونښلوي، نو بیا مانا دا چې " د " یوازې یو تولغونډ ( اضافي عبارت ) مینځته راوړی دی او بله دنده یې نه ده پر ځای کړې، لکه : د ځلمي کور، د هلك پلار ومور، د اسمان ستوري، ډوره کیلي، د سیند غاړه، د سرو تاویز ...

## د دغه پورتنیو پازو او دندو له پلوه سربلونه او اوستربلونه په دې وروستیو ډولو وېشنه مومي :

**۱ ) په :** چې له ( کې ) اوستربل سره د اړوند نوم، تون یا ظرفي حالت ځرگندوي، لکه : په (تولگي کې ). له ( پورې ) اوستربل سره یو بل ډول تون پېږ، یا په بله وینا، یو تړاو او پیوستون ښیي، لکه : په ځان پورې، په تا پورې، ستا په خبرې پورې ( به ارتباط گپ شما ). له " سره " اوستربل سره یو لوښنېپېر ( الی حالت ) راښیي، لکه : په بیاتي سره، په چړې سره، په وینا سره، په زور سره، په خوښی سره. له " پسې " اوستربل سره یو بل راز تونپېر یا پرله پسې والی ځرگندوي، لکه : په تا پسې، په سختې پسې اساني راځي، په ژمي پسې پسرلی دی. لکه په لښتیلیك کې چې لیدل کېږي. کله کله ترې " سره " اوستربل لویدای هم شي، لکه : په چاړه، په خوښه که په زور وي، له مظلوم به د ظالم لاس لنډېږي. په تا اړه نه لري ( په تا پورې اړه نه لري ). په لیکاني لیك کېږي (په لیکاني سره لیك کېږي ). مگر ( په کور ) له ( په کور کې ) سره یو راز نه دی، ځکه ( په کور ) له آره ( پر کور ) دی چې ظرفي نه، بلکې استعلایي مانا ښندي. همدا راز په وخت، په کال، په

مازیگر، په بجو .... د پر وخت، پر کال، پر مازیگر، پر بجو ... ناسم، یا ناکره بنې دي. همدا خبره ده چي موږ ( په پښتو لیکل ) او ( پر پښتو لیکل ) سره توپیرو.

**۲ ) پر** : یو باندینی ( استعلایي ) سربل دی چې یو اړوند اوستربل " باندې " یې زیاتره غورځېږي، لکه : پر مېز باندې یا پر مېز، پر ځمکه باندې یا پر ځمکه، پر زړه باندې یا پر زړه، پر سر باندې یا پر سر، پر زړه یو څه (او) پر خوله بل څه، پر وخت، پر کور، پر کابل، پر ورځ، پر شپه، پر مابنام، پر لسو بجو، پر ۱۳۵۶ کال او داسې نور. " پر میاشت " دومره نه ویل کېږي، بلکې "په میاشت" کې زیات کره برېښي.

" پر " هم د " په " غوندې زوړپای نومونه زیاتره پر اوښتي پېر نه اړوي. له کندهارۍ او تاریخي ادبي پښتو پرته نور زیاتره ګړدودونه " په " او " پر " سره ګډوي او پر یوه وخت دواړه په الي، ارتباطي، استعلایي او پرله پسې (تسلسلي) مانا کاروي. خو په یوه کره لیکنۍ پښتو کې د دغه دواړو سربلونو توپیر اړین دی. یو ژبنی آر هم دا دی چې دوه توکونه یا دودونه په تاریخي او اتېمولوجیک ډول هېڅکله هممانیز او همپازیز نه وي. د همدغه آر په ترڅ کې سمپایي آر هم سمبالېږي. که په ګړنۍ ژبه کې دغه آرونه دومره پرځای هم نه شي، مګر په لیکنۍ ژبه کې څو اړخیز ګټور نقش لري.

توپیر یا نه ګډون، چار وېش او سپما د نړۍ د هرې ژبې بنسټ جوړوي، په دې توګه په کار دي (په پښتو لیکل ) داسې مانا، کړو چې یو څه په پښتو ژبه لیکل کېږي، نه په بله ژبه. ( پر پښتو لیکل) دا مانا چې د پښتو په باره کې څه لیکل کېږي، نه د بلې ژبې یا بلې سکالو په اړه. همدارنګه (پر کابل اوسېږم ) دا مانا چې د کابل ښار په شاوخوا کې اوسېږم. او ( په کابل کې اوسېږم ) دا چې دننه په کابل یا کابل ښار کې اوسم.

په پارسۍ کې هم د " به " او " بر " توپیر په زاړه ادب او اوسني ایراني ادب او لیکنه کې پوره څرګند دي. همداسې یې په هندي کې هم درواخله. د " بر " بل اوستربل " سربېره " دی چې ناکره ډول یې " برسېره " هم لږو ډېر دود لري. دغه اوستربل هېڅکله نه غورځول کېږي. که نه مانا یې له " باندې " سره ګډېږي او سره یو کېږي.

" پر " چې د وییکنومځري ( اداتي ضمیر ) " پرې " پرځای هم کارول کېږي او په کندهاري ګړدود اړه لري، هم د یادو شویو ژبنیو آرونو له مخې په ټولیزه لیکنۍ پښتو کې د منلو وړ نه برېښي. همداسې " تر " او " په " هم درواخله چې له " ترې " او " پې " یا " پرې " سره ګډول یې ګډوډي پېښوي.

۳ ) **د** : يو ډېر پېښنی تولي ( اضافي يا ملکي ) سربل دی چې له " کره " او "غونډې" پرته نور ساده او آر اوستربلونه نه لري، بلکې بې شمېره بدل، درغلي (کاذب) يا په بله وينا بېلښتي، تړښتي او غونډېز ( فقره يي يا عبارتي اوستربلونه (      ) ورسره غاړه کېږي. له مهالنومونو سره بې له اوستربلونو کړولونه جوړوي، لکه : د شپې، د ورځې، د غرمې .... خو تر ټولو زياته او بنستيزه پازه يې د دوو نومونو ترمنځ د تول ( اضافت، اړيکي ټينګونه ده.

۴ ) **تر** : چې د "پر " بډ ( مقابل ) سربل دی، هغه دا چې "تر " تر هرڅه له مخه د " پر " غونډې د باندې " نه، چې د " لاندې " مانا ښندې، له دې کبله يې لومړی اوستربل " لاندې " دی چې، هېڅکله غورځېدنه، نه مني، لکه : ( ترمېز لاندې ) چې " ترمېز " بيا ګرد سره بله مانا ښندي او هغه توني او مهالي پيوستون دی، لکه : تر ننګرهاره، تر مازيګره چې اوستربل " پورې " يې هرومرو ملتيا نه کوي. دريېم اوستربل يې " وروسته " يا " راوروسته " کړول دی، لکه : تر غرمې وروسته يا تر غرمې راوروسته، تر ځلمي راوروسته زما وار دی .... له ځلورم اوستربل څخه (ځنې – نه ) سره پرتليز جاج ښندي، لکه : ترتا څخه زه ښه يم چې د دغه اوستربل په غورځېدو، " ترتا " هم سم راځي. د دې پرځای چې د نورو ژبو په پېښنو ( سږنی کال د پروسږکال په نسبت ډېر ورندی دی، ووايو )، ( سږنی کال تر پروسږکال ډېر ورندی دی ) لنډ او کره راځي. " تر " پر دغه پرتليزه (نسبي يا تدرجي ) مانا له " له " سربل سره هممانيزه کېږي. خو دا چې ( له   څخه ) تر هرڅه له مخه وتون پېر ( منشائي ) حالت ځرګندوي، نو يې بيا هم له ( تر – څخه ) سره ګډول په کار نه دي، يا لږ تر لږه بېځايه دي، لکه : ننګرهاريان چې وايي : د کوره په سارا خوښ يم-- د وېشه په تالا. خو دا چې په ګډه کره ليکنی پښتو کې دلته د پرتلې مانا موخه ( مطلوب ) ده، نو (تر کوره پر سارا خوښ يم - تر ويشه پر تالا ) ترې سم بريښي.

دغه راز په شمال ختيزو ګړدودو کې د ( په )، ( تر )، ( له ) پرځای هم زياتره ( د ) کارول کېږي چې دا هم له ژبني آرو معيار څخه چپ بلل کېږي، لکه : د ځلمي پسې، د ننګرهار پورې، د مېز لاندې، د ننګرهار نه، د ځلمي سره د کندهاره راغلم، د پښتو ټولنې د لغاتو د څانګې د خوا. يا د منځنيو ګړدودو " د تا نه يا ستا نه زه ښه يم ... ". يا خو دغلته هېڅ سربل نه کاروي، لکه : ځلمي سره، تا نه يا ستا نه .... کره ډول يې : په ځلمي پسې، تر ننګرهار پورې، تر مېز لاندې، له ننګرهاره، له ځلمي سره له کندهاره راغلم، د پښتو ټولنې د لغاتو د څانګې له خوا، تر تا (څخه ) زه ښه يم ....

۵ ) **" له "** چې له ( څخه، نه يا ځنې ) اوستربل سره له آره د يو نوم ( وتون پېر ) يا منشائي حالت ځرګندوي، لکه له سيستانه يا له سيستان څخه، يا له سيستان نه او يا له سيستان ځنې. په دويمه " نسبتي " مانا يې کارول دومره کره نه بريښي، لکه پاس چې ورته ګوته ونيول شوه.

" له " له دويم اوستربل " سره " سره د ملګرتيا ( معيت ) جاج ښندي، لکه : له ځلمي سره تر هرات پورې ملګرى وم او داسې نور. په دغه مانا يې اوستربل (سره) پر ( څخه يا څه ) اړول له ګډې کره ليکنې پښتو څخه چپ بريښي، که څه هم په ځينو ګړدودو او د خوشال په وينا کې " څخه د " سره " پرځاى هم ډېر کارول کېږي. په هره توګه بايد ( له ځلمي سره ) او ( له ځلمي څخه ) په يوه مانا ونه کارول شي. د " سره " اوستربل غبرګون ( تکرار ) د " سره له " ترځنګه د " باوجود " مانا ښندي، لکه : " سره له " ناروغۍ لمبا ته ولاړم. يا : " له " ناروغۍ "سره سره " لمبا ته ولاړم. " سر له " د ترښتي سربل په توګه له " څخه " اوستربل سره غاړه کېږي او پيل ښووند کړول رامنځته کوي، لکه : سر له ننه، سر له مابنامه. توني، لکه : سر له همدې څېرکي .... درېيم اوستربل يې " وروسته " دى چې مهالي او توني کړول ( قيد ) ورسره جوړوي او له ( تر ) سره يې پازه يو کېږي، لکه له غرمې وروسته کور ته ځم چې البته ( تر غرمې وروسته ) ترې زيات کره بريښي، په بله وينا، (وروسته ) د " له " نه، بلکې د " تر " معياري اوستربل دى.

څلورم اوستربل يې " راهيسې " دى چې يو مهالي کړول ورسره جوړوي، لکه : له پروسږکال راهيسې، له ډېرو کلو راهيسې، له پخوا راهيسې ... په دې توګه "راهيسې" د يوه اوستربل په توګه بايد په ( نوم يا نومغوند ) پورې سيده ونښلول شي او بل کوم زياتي اوستربل يا بل ژبنى توک ترې له مخه نه شي، په بله وينا ، (له ډېرو کلو څخه راهيسې) نه، بلکې ( له ډېرو کلو راهيسې ) وويل شي. ( د ډېرو کلو را په دې خوا ) يې هممانيز انډول دى، خو د پارسي ( از سالها به اينطرف ) ټکي پرتکي اړونه ده او دومره رواني او لنډون هم نه لري. د " له " پنځم اوستربل " پرته " دى چې د " سره " بېل او مقابل جاج ښندي، دا مانا چې د اړوند نوم ملګرتيا نه، چې بېلتيا او نشتوالى څرګندوي، لکه : له بلليو پرته نابللي هم راغلي وو.

۶ ) **" بې "** : چې زياتره د " نا " غوندې يو ستاينوميز ( صفتي ) مختاړى دى، لکه: بې کوره، خو لږو ډېره سربلي ځانګړتيا هم لري او هغه هم زياتره د " له " په ملګرتيا او د يواځېنې اوستربل (څخه، نه يا ځنې ) په درلودلو، لکه بې له تا څخه، بې له هغه څخه، چې ( بې له تا ) او ( بې له هغه ) هم ويل کېږي. د منځنې پېر په شعر کې يې " بېتا " د رديف په توګه هم کارول شوى دى.

۷ ) **" و "** : يو پخوانى سربل دى چې له " ته " اوستربل سره ورتلون پېر ( مفعول له حالت ) څرګندوي. پخوانى څرك يې په لويديزو ( کندهاري ) ګړدودو کې پاتې دى او نورو ټولو ګړدودو له لاسه ورکړى او د هغه اوستربل " ته " يوستوى کاروي، لکه : (و) تاته وايم، (و) ښوونځي ته ځم ....

د منځنۍ دورې شاعرانو هم ډېر کارولى او لا کله يې دويم ځلي تر نوم وروسته هم راوړي او له اوستربل " ته " سره يې بيا هم پتليز ( جوخت ) نښلولى، لکه رحمان بابا چې وايي:

خدای وما وته ښکاره کړ هغه لمر بیا.

ځینو بیا د پارسي "به" غوندې بې اوستربله هم کارولی دی، لکه پیرمحمد کاکړ چې ویلي دي :

سوز گداز د محبت وهسې مارا.

په هره توگه د ویونکو د ډېرښت په لاسوند تر (و – ته)، (ته) زیات معیاري ارزښت لري.

۸) **"لکه"** : لکه "د "په برخه کې چې ورته نغوته وشوه، پر دې سربېره چې له دغه تولي سربل سره ډېر درغلي اوستربلونه رامنځته کوي، د یووستوي سربل په توگه هم له ځان سره یو لړ بېلا بېل ساده وییکي، لکه: غوندې، هومره، هسې ... ملگري کوي : (لکه) زمري (غوندې)، (لکه) غر (هومره)، (لکه) – گل (هسې) ....

د کره لیکنی پښتو سربلونه او اوستربلونه په لښتیلیك (جدول) کې داسې ښوول کېږي :

## ۶ - بېلا بېل وییکي :

پر پورتنیو وییکو سربېره ځېنې نور راز راز وییکي هم شته چې په غونډله کې بېلا بېلې پاژې لري. په دوي کې د ځینو پاژې صرفي بلل کېږي او د ځېنو نحوي او د ځینو دواړه ډوله. صرفي، لکه "به" چې د نابشپړ او ناخبري (لکه گوماني) او اوسترمهالکړ یو توك جوړوي. یا "نه" او "مه" چې کړ نفي او نهي کوي. یا "که" چې هم ناترویيکی ( ) دی او هم آړ وییکی ؛ غونډله پوهیز یا نحوي، لکه "نه" د منفي ځواب په توگه. "سره" په صرفي ډول، لکه : سره تلل – په نحوي ډول، یا په بله وینا ، د اوستربل په توگه، لکه : له ځلمي سره ولاړ. "بیا" د کړول او هم د اړیکوییکي په توگه. کورټ، سکوټ، بېخي، چور، سوچ، هډو، چورلټ، ورټ، رټ، بېخپوره، لا، ان، هن، ایله، په مټ، په مټې یا مټې ... د مرستیالکړولونو په توگه. و، یه، یا، آ، ای ... د بلن وییکو په توگه ؛ "ایا" د پوښتوییکي په توگه چې تر بلن وییکو یې عربیوالی پوره څرگند دی ؛ پارنوییکی لکه اخ، اوخ، وش، وېش و آه ... چې د ناڅاپي خوښۍ یا وېرې او داسې نورو هیجانونو (پارېدنو) څرگندونه کوي او تر آرو او مرستیالو توکونو وروسته د غونډلې د رغنده توکونو درېیمه ډله جوړوي او پرځپل ځای ځېرل کېږي. منښتي وییکي، لکه : هو، هوکې، آهو. نمښتي (انکاري)، لکه : نه (یه)، خو، مگر او داسې نور.

## وینا وابښتي :

وینا وابښتي یا تکیه کلامونه، لکه : ماسکه، غوله یا غولې، مړه یا مړې، غوچې، چې دی ... کاکا گوري، ما گوري ... هم لړو ډېر په یوستوو او ترېښتي وییکو کې راځي چې د پار - بلن وییکو یا پارنوییکو غوندې د نومونې پاژه نه پرځای کوي، بلکې د غونډلې پرځای د وینا د توکونو په توگه راز راز ننگیرنې (احساسات) څرگندوي.

## د پښتو ګړونو ( مورفيمونو ) د ډلبندۍ انځورليك :

- ازاد
  - کړونه
  - نومونه
    - څيزنومونه
    - ستاينومونه
    - شميرنومونه
    - نومځري
  - آرکړولونه وييکي
- تړلي
  - اړيکوييکي ( تړوييکي )
    - سربلونه
    - اوستربلونه
    - آر(يووستوي) کړولونه
  - تاړي
    - (مختاړي، منځتاړي، روستاړي)
    - اوړوني (تصريفي) اوړوني
    - بېلبنتي (اشتقاقي) اوړوني

يادښت : لکه مخکې چې پاس وويل شول، انګينومونه يا اصوت ( ډز و ډوز، درب و دروب، غر و غور ... )، پارنوييکی ( وخ، اخ، ويش ... ) او داسې نور بيا د غونډلې ځېرمه توکي بلل کېږي او له آره وينا توکي دي. له دوی څخه يوازې يوه برخه، هغه هم انګينومونه د ازادو ګړونو په ډله کې راځي او نور په تړليو يا ناخپلواکو کې ( ←د غونډله پوهې اړونده سکالو ).

## کړاوونه ( تمرینونه )

۱ - سربل څه ته وایي او اوستربل څه مانا ؟ .
۲ - پښتو ټول څو سربلونه او څو اوستربلونه لري او هغه کوم دي ؟
۳ - د دې لاندې غونډلو تش ځایونه په سمو سربلونو او اوستربلونو ډک کړئ !

... کابل کې د ژمي ډېر ساړه وي. ... زړه به دې یوه وي، درېښنبه به شي بله. زه ... لیکاني سره لیکل کوم. زه ... انګلیسي ... روسي ښه غږېدای شم. کوچیان د اوړي ... کابل وي او د ژمي ... ننګرهار ... اوسي. زما پر کالیو ... مه خانده ! سپین ... تور اوښتل یا بد لېدل. اوبه ... ډانګ ښېلول ... زده کړې پسې ملا وتړه ! په تا ... اړه نه لري. زه کور ... پنځو بجو ځم. ... غره باندې واوره اوري. ... ډېوې لاندې تیاره ده. ... ځلمي سرښېره زمری هم راغی. ... ځلمي پرته نور ټول ولاړل. ... ټولګي دننه. ... ټولګي د باندې سپوږمی. ... منځ د اسمان راغله - یا خو خوب نشته یا خو ما ... نه راځینه. که غم ... شرمېدلای - ... ما به نه راتلای ځولی ځولی غمونه. ... تور ټوپك ویشتلی راشی - د بې ننګی اواز دې مه راځه مینه ! د یار ... پاره درمسال جارو کومه. ... ګودر سور سالو ښکاره شو. اشنا مې سر ... وطن کېښود - ... تار د زلفو به کفن ورته ګنډمه. که زما عمر ... ضروري وي تېر به شینه. ... لویو غرو د خدای نظر دي - ... سر یې واورې وروي چاپېر ګلونه. که ولاړ شي ... بلخه - درسره ده خپله برخه. ګلاب ... اصله شاهزاده دی - رامبېل چامبېل یې اردلیان ورسره ځینه. ... ګودر څه کانه راوشوه - چې کشره خور یې ورسره ګودر ... ځینه ما ... په سرو زرو منظور دی - که د جانان ... لاسه خاورې اېرې وینه. خپه پرې نه یم ... جانان سره به یمه. ... خمارو سترګو دې جار شم - چې ... ژړا شي مرغلرې تویوینه. ... وچه ډاګه د لونګو بوي راځینه. زما ... تشه خندا مسته. ما به جانان ... لاس نیولی ګرځونه. که شینکی خال مې د چرو ... ځوکو ځینه. چې ... سنګره پورې زه درسره ځمه. سپوږمی. ... دې څه احسان دی - زما جانان ... د دیواله سیوري ته ځینه.

# ۳ - څپرکی

# غونډله پوهه ( نحو Syntax )

لکه څنګه چې د غږ پوهې د سکالو یوون ( د بحث واحد ) غږ دی او د ګړ پوهې هغه ګړ دی. نو د غونډ له پوهې د سکالو یوون غونډله ( جمله ۱-۴۴ ) ده. په بله وینا، غونډله پوهه د غونډلو. دغه راز د غونډونو ( فقرو ) او ګړنو ( ایډیمونو ) جوړښت، اوډون او ډولونه تر کتنې او څېړنې لاندې نیسي

## غونډله ( جمله ) :

غونډله د ګړونو او ویپونو یو داسې اوډلی غونډ ( کُل ) دی چې یو بشپړ جاج (مفهوم) او موخه (مطلب ) پرې پوهول کېږي. له بله پلوه. دا چې خبرې یا وینا په غونډلو کېږي او بې غونډلو خبرې او وینا نه ترسره کېږي، نو داسې یې هم پېژندلای شو : غونډله د خبرو . وینا یا ګړهار هغه بشپړه خپلواکه ناشنونې رغاونه ده چې نرې بله ستره رغاونه نشته، په بله وینا : غونډله د خبرو او ویناوو تر ټولو لوی یوون ( واحد ) دی.

## د پښتو غونډلې جوړښت :

پښتو یوه " کړند - کړی - کړ " اوړوني ( تصریفي ) او په دې ډول یې غونډله لومړی پر دوو برخو یا غونډونو ( فقرو یا ګروپونو ) وېشل کېږي چې یوه ته نوموال ( اسمي ) او بل ته کړوال ( فعلي ) غونډ وایي. د پاڅي له مخې نوموال غونډ ته اېښنی ( مسندالیه ) او مبتدا. او کړوال غونډ ته اېښوونی ( مسند ) یا خبر هم ویل کېږي. په اېښني کې یا کړند له خپلو اړوندو سره راځي ( که په چاروال کړ اړه ولري ) او یا کړی له خپلو اړوندو سره ( که په بېچاړ کړ اړه ولري ) په اېښووني کړ او

کړې دواړه له خپلو اړوندو سره راځي، په دې آړ ( شرط ) چې کړ چاروال لېږندوي، که نه یوازې کړ له خپلو اړوندو سره راځي.

د کړند او کړي اړوندونه ستاینوم، شمېرنوم، تولنوم ( مضاف الیه ) تولوییکي، پېژندوییکي او داسې نور اړین وییکي کېدای شي او د کړ هغه کړولونه (قیدونه). په دې توګه تړل لوی او واړه یا خپلواک او ناخپلواک، یا ناوړیدوني ګړونه او توکونه په یوه غونډله کې راغونډېدای شي او د همدغو توکونو په کموالي او زیاتوالي سره وړې یا لویې غونډلې منځته راځي.

د یوې غونډلې د شتوالي لړه کې آړ یا بنیادي تړوک ګردان شوی کړ دی. که هرڅومره ژبني توکونه سره لړې شي او کړ ونه لري. غونډله جوړولای نه شي او په سرچپه ډول، یو یوازې ګردان شوی کړ د یوې غونډلې لړه کې کچه ده، لکه: خورم، څښم، څم او داسې نور. ځینې نادوده او یا غېرعادي غونډلې چې کړ یې غورځي او بیا هم غونډلې بلل کېږي، هغه بلن غونډلې یا ندائیه او ځوابیه غونډلې دي، لکه:
یه پښتیانا !، یه ځلمیه !، دغه راز، هو، نه، ښه، څنګه، ولې او داسې نور وییکي او پوښتنومځري هم نیمګړي یا لنډ کړ شوي غونډلې دي، هغه هم د خبرو اترو او دیالوګ په بهیر کې. لکه چې یو ووایي: ته ناروغ یې – بل یې داسې ځواب وایي: هو، نه، ولې، څنګه ؟ او داسې نور.
اوس د یوې پوره ساده غونډلې څو بېلګې وړاندې کوو:

۱ - ځلمی راغی

...... ........

اېښی اېښوونی

۲ - د ځلمي ورور راغی

.........................

اېښی اېښوونی

۳ - د ځلمي مشر ورور راغی

........ .........................

اېښی اېښوونی

۴ - د ځلمي یو ورور نن له کندهار څخه کابل ته راغی

................................... ...................

اېښی اېښوونی

۵ - ځلمی لیک کاږي

.................... ..........

اېښنى اېښنونى

۶ - يو هلك يو ليك کاږي

.................... ..........

اېښنى اېښنونى

۷ - يو ليك کښنل کېږي

.................... ..........

اېښنى اېښنونى

په لومړۍ غونډله کې هم اېښنى ( مسنداليه ) له يو ساده کړند څخه جوړ دى او هم اېښنونى له يو ساده کړ څخه. په دويمه غونډله کې اېښنى له داسې کړند ( ورور ) څخه جوړ دى چې ( خلمى ) ورسره د تولنوم ( مضاف اليه ) او " د " ورسره د تولوييکي په توگه اړوند ( متعلق ) بلل کېږي. خو اېښنونى لا هماغسې يووستوى کړ " راغى " دى. د درېيمې غونډلې د اېښني کړند ( ورور ) يو ستاينوم ( مشر )، يو تولنوم ( خلمى ) او يو تولوييکى " د " د خپلو اړوندونو په توگه له ځان سره ملگري کړي او په اېښنوني کې کړ ( راغى ) له ځان سره يو مهالي کړول " نن " او يو توني کړول. يا په بله ژبه مفعول له ( کابل ته ) د خپلو اړوندونو په توگه ملگري کړي دي.

د څلورمې غونډلې په اېښني کې کړند (ورور) له ځان سره يو ناپېژند يا نکره (يو)، خلمى د تولنوم او ( د ) د تولوييکي په توگه ملگري کړي او په اېښنوني کې يې کړ ( راغى ). يو مهالي کړول " نن " او دوه توني کړولونه ( له کندهار څخه ) او (کابل ته) په خپله اړوندى کې لري. د لومړي توني کړول په درو توکونو کې ( کندهار ) د سربل او اوستربل ( له - څخه ) په ملتيا وتونېبر ( مفعول منه حالت ) موندلى دى او په دويم توني کړول کې ( کابل ) د اوستربل ( ته ) په ملتيا ورتلونېبر ( مفعول له حالت ).

سر له پنځمې څخه د پورتنيو څلورو غونډلو پرخلاف د نالېږند ( لازمي ) کړ ځاى لېږند ( متعدي ) کړ نيسي او په دې توگه يې کړي ( مفعول ) ته اړتيا پيدا شوې ده. د پنځمې په اېښني کې کړند (خلمى ) يوستووى راغلى دى او په اېښنوني کې کړ (کاږي) له کړي ( مفعول ) سره ملگرى شوى او په شپږمه کې اېښني د تولنوم (عام اسم) په توگه له ( هلك ) سره ناپېژند ( يو ) هم ملگرى کړى دى او همدا راز د اېښنوني له کړي ( ليك ) سره هم يو ناپېژند د لومړي هغه پرځاى بل ډول ناپېژند (څوك يا کوم) او د دويم پېژند پرځاى بل پېژند ( کوم ) هم راتلاى شي. په بله وينا ( يو هلك يو ليك کاږي )، ( څوك يا کوم هلك کوم ليك کاږي ) سره څومره بيز او څرنگيز ( کمى او کيفي ) توپير نه لري. اوومه غونډله بيا د پنځمې او شپږمې غونډلې غونډې چاروال لېږند کړ. نه. بلکې بېچار

لېږند کړ لري. په دې توګه يې کړی ( ليك ) له خپل ناپېژند ( يو ) سره اېښې جوړوي او ( کنبل کېږي ) د يو ترېښتي کړ په توګه اېښوني. دغه راز کړی ( ليك ) چې د کړند ځای نيسي او کړ وريوري اړه ( اسناد ) پيدا کوي، په دوديزه نومونه " نايب فاعل " بلل کېږي.

دا دی د پوره څرګندتيا لپاره د څو بېلګو غونډلو انځورليك ( ګراف ) وړاندې کوو :

## ۱ - نالېږنده غونډله :




## ۲ - چاروالې لېږنده غونډله :




## ۳ - ببېچاره لېږنده غونډله :



## د غونډلې رغنده توکونه :

پاس مو پر دوو برخو ( ابنې او ابنونې ) د غونډلې وېشنه وکړه، دلته غواړو، په ټولیز ډول یې ټول رغنده توکونه تر کتنې لاندې ونیسو او د هغوی د څومره والي له مخې د غونډلې جولیز (شکلي ) ډولونه ونوموو. دغه توکونه ټول ازاد یا خپلواک ګړونه او له ناخپلواکو یا تړلیو ګړونو څخه یوازې وییکي رااخلي. البته (تاړي) د ازادو ګړونو د نه جلا کېدونکو توکونو ( اجزاوو ) په توګه د غونډلې سیده توکونه ( عناصر ) نه بلل کېږي، په دې توګه یې که ازاد توکونه اوړون موندلي، بېلبنتي ( اشتقاقي ) او ترېنتي ( ترکیبي ) هم وي، د غونډ له پوهې (نحوي) له پلوه بیا هم د شننې وړ نه دي، بلکې هر یو د غونډلې یو یوازینی توک ( جُزء ) یا توک ( عنصر ) او یا یوون (واحد) ګڼل کېږي، لکه : خورم، خورو، خوړلی، خوړونکی، خوړل، ورکوم، ورکوو، ورکړی، ورکوونکی، ورکول ... زمری کېدل - کول لاس ته راوړل او داسې نور. د ساري په توګه :

زه خپلو شاګردانو ته په درنه سترګه ګورم.

دغه غونډله په نحوي ډول اته توکیزه بلل کېږي چې څلور یې ( زه، ته، په، سترګه )، ساده یا نااوړېدلي توکونه ( ګړونه یا وییونه ) دي او څلور یې ( خپلو، شاګردانو، درنه، ګورم ) د اوړونې (تصریفي ) تاړو په درلودلو سره اوړېدلي (ګردان شوي) توکونه ( ګړونه یا وییونه ) دي. یا ( ځلمي، یو، کتاب، تر، لاسه کړی دی )، په غونډله پوهیز ډول یو پنځه توکیزه غونډله ده چې یې ( ځلمي، یو، کتاب، دی ) ساده توکونه (ګړونه یا وییونه) دي او ( ترلاسه کړی ) یو غونډیز (فقره یي) توک دی، ځکه له شننې سره یې اوسنی یوازینی مانا له منځه ځي او غونډیز جاج له لاسه ورکوي. د غونډلې توکونه په لاندې ډول ډلبندي کېږي:

**۱ - آر یا خپلواک توکونه :** چې ټول خپلواک ګړونه رااخلي. نومونه (ځیزنومونه، ستاینومونه، شمېرنومونه، نومځري)، کړونه ( آر یا مرستیال او یا ساده، بېلبنتي، خوا پرخوا، ترېنتي ) او ناآر کړولونه دي.

په دې لړ کې مرستیالکړونه، پر دې سربېره چې د یوې غونډلې دننه له آرو کړونو سره د اړوند کړن په بشپړونه کې مرسته کوي، له یوې آرې غونډلې سره د مرستیالې غونډلې په رغونې سره غبرګه غونډله هم جوړوي او په دې توګه د آرې غونډلې د اړوند آر کړ چار ورټاکي. له دې لامله دغه راز کړو ته چار ټاکي کړونه (Modal verbs) وایي او هماغه منځته راوړې غبرګغونډله یې چارټاکې غبرګغونډله (      ) بلل کېږي، لکه: ښایي، بویه، باید، کول - کېدل (+ شول) ....

**۲ - مرستیال توکونه :** چې په دوی کې ناوړېدونې ګړونه ( وییکي ◄— ) راځي، لکه: آر کړولونه، آړوییکي، تړوییکي، سرېلونه، اوستربلونه او داسې نور.

**۳ - په درېيمه ډله کې انګيوييکی، پارنوييکي يا هيجاني غږونه او چغې، بلن وييکي او داسې نور راځي.**

**لومړی ډله** ( آر توکونه يا خپلواك توکونه ) د موضوع څرنګوالی، څومره والی، چاروالی ( فعاليت ) او داسې نور جاجونه ( مفهومونه ) نوموي او يا ورته نغوته کوي، يا په بله وينا ، هم وييزه ( لغوي ) مانا ښندي، هم پښنوييزه. دغه ډله له آرو کړولو ( ژر، اوس، ورو، هرومرو ... ) پرته ټول اوړېدلي ګړونه رااخلي.

**دويمه ډله** مرستيال توکونه د نومونې او نغوتنې پاژه، نه بلکې يوازې پښنوييزه مانا او چار لري. مرستيال ورته په دې وايي چې د غونډلې د آر توکونو، غونډونو او غونډلو ترمنځ اړيکي ټينګوي.

**درېيمه ډله** ( پارنوييکي، بلن وييکي ... ) د نومونې پاژه نه لري او د بېلا بېلو څانګړو ننګېرنو څرګندونه کوي. پارنوييکي، لکه: د خوښۍ ( واخ، وخ، اوخ ... ) يا د خپګان، خواشينۍ يا اندېښنې او درد ( وای، وی، وي، وې، وئ، آه، اوه، وش، هئ شو، الا، هله ... ) او داسې نوري هيېجاي چغې، سورې او اوازونه. بلن وييکي د څارويو، ژويو او مرغانو د بلنې او هڅونې يا رټنې او شړنې لپاره راځي، لکه: اوشه ! اڅه ! کشې ! ټغه ! ډرې ! کچ کچ ! کورې ! ورکيش ! پيش پيش ! خخخه ... خې ! څکڅك ! کورکور ( خرو ته )، ډيو ډيو (غوييو ته)، نتڅه نتڅه ... مګر انګيوييکي يا انګينومونه لږو ډېر بيا د نومونې پاژه ترسره کوي، لکه : بغ، بم، بو، غر، ګر او داسې نور بې مانا اوازونه چې د طبيعي پېښو په بڼه له خولې راوځي، په دوي کې ځېنو د آرو ژبنيو توکونو (څيزمونو) ارزښت هم پيدا کړی وي، لکه : درز، غرز ... ( د غورځېدو اوازنه )، درب، دروب، ډب، ډوب .... ( د وهنې اوازونه ) او داسې نور ( د څيزنوم ډولونه دې هم وکتل شي). [ لودين، زېری ۱۳۵۱ ل ].

## اوډون ( ترتيب ) :

اوډون دا مانا چې په يوه غونډله کې بېلا بېل ياد شوي رغنده توکونه سره څنګه اوډون مومي. مخکې مو وويل چې د " يوې کړند - کړي - کړ " اوړوني ژبې په توګه د پښتو غونډله په لومړي دوه برخيز وېش کې د يوې غونډلې نوموال غونډ (اېښی يا پيل او مبتدا) له مخه او کړوال غونډ (اېښونی يا پای يا خبر ) وروسته راځي، مګر په دغه هر يوه غونډ کې د بېلا بېلو توکونو ټاکنه او اوډنه د هرې ژبې يوه بېلندويه څانګړتيا بلل کېږي.

لکه څنګه چې مو په تېرو بېلګه غونډلو کې څه ناڅه وليدل چې که په لومړۍ برخه ( اېښي ) کې يوه نالېږند يا چاروال لېږند کړ والا غونډله وي، کړند ( فاعل ) څانته يا له خپلو اړوندو توکونو

سره راځي او که بې چار کړ والا غونډله وي، کړی ( مفعول ) ځانته یا له اړوندو توکونو سره راځي او په اېښوونې کې کړ. که نالېږند او بېچار لېږند وي، کړی او نور اړوندونه، لکه : کړولونه، پېژندونه، تولنومونه، شمېر نومونه، او راز راز وییکي. په اېښې کې ټیکاو ومومي. یا د بېچار لېږند کړی کړند ترخپلو ټولو اړوندونو وروسته راځي، لومړی یې نژدې ټاکونکي، لکه : پېژند، ستاینوم، شمېرنوم، یا تولنوم او بیا د هغه ترمخه تولوییکي راځي، لکه په دې بېلګو کې :

یو سړی - راغی یا : یوه سړي - ډوډۍ وخوړه.

یو غټ سړی - راغی یا : یوه غټ سړي - ډوډۍ وخوړه.

د ځلمي مشر ورور - ولاړ یا : د ځلمي مشر ورور - وینا وکړه.

د ځلمي دوه ورونه - ولاړل یا : د ځلمي دوو ورونو - ویناوې وکړې.

د ځلمي دوه مشران ورونه - ولاړل یا : د ځلمي دوو مشرانو ورونو - وینا وې وکړې.

زما یو کشر ورور - کور ته ولاړ یا : زما یو کشر ورور - واده وکړ.

په اېښوونې کې کړ ( آر یا مرستیال ) تر نورو توکونو وروسته راځي. که دغه کړ، له دوو غبرګو ( آرو او یا ناآرو ) کړو څخه جوړ وي، نو آر ترمخه او ناآر (مرستیال) وروسې ښځي او to be (استل، ول، اوسل یا اوسېدل) پای ته راځي.

تر کړ ( آر یا مرستیال ) له مخه کړی ( که کړ چاروال لېږند وي ) او کړی بیا له خپلو اړوندونو وروسته ځای نیسي. کړول ( که چېري وي ) زیاتره تر کړي له مخه راځي، خو که دوه کړولونه په یوه اېښوونې کې راغلي وي او یو مهالي او بل تونی یا بل ډول وي، نو زیاتره مهالي له تونې یا بل کړول او کړي څخه مخکې کېږي. تونې یا بل کړول بیا کېدای شي، تر کړي وروسته ځای ونیسي، لکه په دې لاندې غونډلو کې :

زمري نن ازموینه ورکړه.

زمري ( نن ) ( په بریالیتوب سره ) ازموینه ورکړه.

زمري ( نن ) ( له خپل ورور سره ) ( له کندهاره ) ( کابل ته ) راغی.

په پاسنیو غونډلو کې ( نن ) مهالي کړول دی، ( په بریالیتوب سره ) او ( له خپل ورور سره ) څرګندني او ( له کندهاره ) او ( کابل ته ) تونې کړولونه دي. همدا راز ( ازموینه ) او ( خپله ازموینه ) کړي ( مفعولونه ) بلل کېږي.

پا نادوده یا ناروړدني ( غیرعادي ) ویناییز بهیر کې کړی تر کړند له مخه راځي، لکه : لمر یا سپوږمۍ تندر نیولې ده، سړی پېریانو نیولی دی ....

## د غونډلې بشپړ اند توکونه ( نازنځيري يوونونه ۱-۲۰ ) :

يوه غونډله پر پورتنيو نومول شويو توکونو سربېره ځېنې بشپړ اند ( متمم ) توکونه هم لري، لکه : خج، اهنګ، بېلتون او پېوستون او د غونډلو د پای غاړه ( لحن ).

د غږ پوهې له مخې دغه ځانګړتياوې ( توکونه ) دويمې اواوزنه ( فونيمونه ) بلل کېږي چې د لومړيو يا آرو اوازونو، لکه: ( ا، ب، پ، ت، ټ ... ی ) غوندې د ګړهار په بهير کې د پړله پسېوالي يا تسلسل ( لينيال ) لوښه نه لري او د غونډله پوهې له مخې هماغسې مانيز او چاريز (تعاملي يا فنکشنال ) نقش او اغېز لري، لکه : آر توکونه ( ګړونه )، ځکه د غونډلو مانيز او پښوييز ډولونه سره توپيروي.
نو له دې کبله خج، اهنګ، بېلتون او پيوستون او د غونډلو د پای غاړه ( لحن ) د غونډلې بشپړ اند توکونه بلل کېږي .

## ۱: اهنګ

د غونډلو اهنګ څلور ډوله دی : خبري اهنګ، پوښتني اهنګ، هېښني، بلني اهنګ ( تعجبي او ندايي اهنګ ) او امري اهنګ. په بله وينا خبري، پوښتني، هېښني، بلني او امري. غونډلې سره د خپلو ځانګړو اهنګونو په مرسته توپيرېږي [ الهام : ۱۳۴۹ ] :
۱ ) د خبري غونډلې اهنګ هوار پيلېږي او بيا غورځيدلې پروت پای ته رسېږي، لکه : زمری راغی.
۲ ) د پوښتني غونډلې اهنګ ټيټ پيل مومي او بيا نېغ شوی پروت پای ته رسي، لکه : زمری راغی ؟
که په سرکې پوښتنومځری يا پوښتوييکی راشي، بيا نو اهنګ په سرکې لوړېږي.
۳ ) د هېښني، بلني، ګوماني او داسې نورو غونډلو اهنګ کابو يو راز راځي، او هغه دا چې ټيټ پيلېږي بيا پورته ځي او په پای کې ريب پای ته رسېږي، لکه :
زمری راغی !

## ۲: خج

لکه څنګه چې په غږپوهه کې ورته نغوته وشوه، غونډله ييز خج هماغه پياوړی خج دی چې د نورو ټوکونو په ترخ کې يې پر يوه راشي او هماغه خجن ټوك تر نورو ټوکوتو زيات موخن ( مطلوب ) وښيي. نور ټوکونه يې يا هېڅ خجن نه وي او يا د هماغه يوه پياوړي خج تر اغېز لاندې کمزوري ويل کېږي. په دې ډول درې رازه غونډله ييز خجونه سره توپيروو. پياوړی، لږ پياوړی او کمزوری، لکه د اولمير په دې سندره کې : ( ستا د سترګو بلا واخلم. بيا دې سترګې ولې سرې دي ) پر (ولې) پياوړی، پر(واخلم) لږ پياوړی او پر(سترګو) کمزوری خج اوربدل کېږي.

## ۳: ښېلتون او پيوستون

ښېلتون او پيوستون دا مانا چې د غونډو يا غونډلو د پای وپيونه سره پيوست او بې لارغې ( بې مکثه ) ووېل شي او يا سره ناپيوست په لارغه. په دې توګه که کله د هماغو يو راز غونډو يا غونډلو ترمنځ ښېلتون پر پېوستون بدل شي او يا سرچپه، نو هغه جاج او مانا يې سره نه توپيرېږي چې د ويونکي موخه وي. دا چې دغه ښېلتون او پيوستون يوازې د نحوي يوونونو ( واحدونو ) ترمنځ نه، بلکې د غږ پوهيزو هغو ترمنځ هم نقش او اغېز لري، نو د خج، اهنګ او غاړې ( لحن ) غوندې ښېلتون او پيوستون هم له آره دويمي اوازونه ( فونيمونه ) دي. ښېلتون او پيوستون د ليکونکي په دې کرېو ( بيتو ) کې ښه ترا جوتېږي:

کړې که بخشش د وصل را زياره – زړه سوزول پرما ملنګ ښه دي.

بولي دي بې علمه شيخ کافر، زياره – پته د ښه بد خو پر محشر لګي

په لومړۍ کرۍ کې که ( ز ) له مخني ويي، يا په بله وينا، له مخني اواز (الف) سره پيوست وويل شي، مانا يې داسې راځي چې ( په ياره ) که ماته (د وصل راز) رابخشش کړې او که نه ( ز ) له (ياره ) سره پتليزه وويل شي، يا په بله ژبه، د (الف) او (ز) ترمنځ ښېلتون او لارغه راوړل شي، بيا دا مانا ښندي چې (په زياره !) که ماته د وصل بخشش راکړې. په دې توګه که مخنۍ مانا موخه وي، په کار ده، د ( راز ) او ( ياره ) وييونو، يا په بله وينا، د ( ز ) او ( ی ) ترمنځ په وينګ (تلفظ) کې لارغه او ښېلتون، او له بله پلوه د ( الف ) او ( ز ) ترمنځ پېوستون راشي، او که وروستۍ مانا موخه وي، نو په کار ده، د ( را ) و ( زياره )، يا په بله وينا، د (الف) او ( ز ) ترمنځ لارغه او ښېلتون، او له بله پلوه د ( ز ) او ( ی ) ترمنځ پيوستون راشي.

په دې ډول نومورې نيم بيتی يا غونډله دوه رازه کاږو : د لومړۍ مانا له مخې : کړې که بخشش د وصل راز – ياره !

د دويمې مانا له مخې : کړې که بخشش د وصل را – زياره !

په دې توګه په دويمه ښېلګه کې هم يو مانيز بدلون ښېښېدای شي.

ليکنښې د تورو غوندې د همدا راز دويمنيو توکونو( خج، اهنګ، لحن، ښېلتون او پيوستون ... ) سېمبولونه بلل کېږي.

## د اېښي او اېښوني سمون :

د اېښي او اېښوني ترمنځ هماغه سمون موخه دی چې د ګڼې، نوږې او وګړي له مخې د کړند ( يا کړې ) او کړ ترمنځ راځي. د ګڼې له پلوه سمون دا چې که کړند يو ګړی وي، نو کړ ورسره يوګړی راځي او که کړند ډېرګړی، يا د ډېرګړي اندول ( لکه جنس ) وي، کړ ورسره ډېرګړی راځي.

د نوږې له پلوه دا چې که کړند ښځينه وي، کړ ورسره ښځينه کارول کېږي او که کړند نرينه وي، کړ ورسره نرينه کارول کېږي، او د وګړي له مخې سمون دا چې کړ بايد له هر يوه وګړي ( لومړی،

دویم، دریم ) سره سم وکارول شي. نه داسې چې د لومړي وګړي کړ د دویم وګړي لپاره پر کار واچول شي او داسې نور. لکه په ګړپوهه کې مو چې ولیدل، دغه دود ( قاعده ) دېره بېدودي (استثنا ) لري، لکه د ارګاتیف ( ← ) له مخې په چاروال لېږند تېرمهال کې چې کړ د کړند نه، بلکې د کړي ( مفعول ) اړوند ( تابع ) دی، په بله ژبه، د ګڼې نوړي او وګړي له مخې کړ له کړي سره سمون خوري، نه له کړند سره. همدا راز دغه سمون په وسمهال کې یوازې د ګڼې او وګړي له پلوه څه ناڅه رښتینوالی مومي، مګر د نوړېّ له پلوه هېڅ نه.

همدغو ټکو ته پام سره له ټولو استثناګانو د اېښي او اېښوني ترمنځ سمون په دې وروستو غونډلو کې لیدای شو :

## ۱ - نالېږند تېرمهال :

زه - راغلم.
ته - راغلې.
دی - راغی.
دا - راغله.
تاسې - راغلاست.
دوي - راغلل.
دوې - راغلې.

## ۲ - لېږند تېرمهال ( چاروال ) :

ما - خټکی وخوړ.
ما - خټکي وخوړل.
ما - هندوانه وخوړه.
ما - هندوانې وخوړې.
تا - خټکی وخوړ.
تا - خټکي وخوړل.
تا - هندوانه وخوړه.
تا - هندوانې وخوړې.
او همداسې د دریم وګړي لپاره.

## ۳ - لېږند تېرمهال ( بېچار ) :

زه - وخوړل شوم.
ته - وخوړل شوې.

همداسې تر پایه پورې.

**۴ - نالېږند وسمهال :**

زه - ځم.

ته - ځې.

دی - ځي.

همداسې ترپایه پورې.

**۵ - لېږند وسمهال ( چاروال ) :**

زه ډوډۍ خورم.

ته ډوډۍ خورې.

دی، دا - ډوډۍ خوري.

همداسې تر پایه.

**۶ - لېږند وسمهال ( بهچار ) :**

زه - خوړل کېږم.

ته - خوړل کېږې.

دی، دا - خوړل کېږي.

**د ګنې سمون او نه سمون :** که په اېښني ( مبتدا ) کې کړندونه ( یا کړي په بهچار کې ) دوه یا زیات وي، په اېښنوني کې ورسره د ډېرګړو چلند کېږي، لکه :

ځلمی او زمری – راغلل – ووهل شول.

ځلمی، زمری او بری – راغلل – ووهل شول.

مګر : نولسمه او شلمه پېړۍ – تېره شوه.

وشول. په اتلسمه یا : پر ۱۳۷۱، ۱۳۷۲ او ۱۳۷۵ کال (نه کلونو) په کابل کې سخت جنګونه، نولسمه او شلمه پېړۍ (نه پېړیو) کې نړۍ ډېر پرمختګ وکړ.

**د نوږي سمون او نه سمون :** لکه چې له مخه ورته نغوته وشوه، که په اېښني (مبتدا) کې لږ تر لږه یو نرینه او یا یوه یا څو ښځینه وي، په اېښنوني کې ورسره د نرینه ډېرګړي چلند کېږي، لکه :

ځلمی او زرمینه - راغلل - ناروغه شول.

زرمینه او ځلمی - راغلل - ناروغه شول.

زرمینه، زرینه او زمری - راغلل - ناروغه شول.
زمری، زرمینه او زرینه - راغلل - ناروغه شول.
یو زېړ ناك او یوه منه - پر سرك راورغښتل.
زما مشر او کشر زوی او مشره او کشره لور - لمبا ته ولاړل.
خو : پرون مازیگر او بېگا شپه – راباندې ( ارام تېر شول ) او هم ( ارامه تېره شوه ) دواړه ډوله دود لري.

په هر ډول، که وغواړو دوه یا زیاتې غونډلې، یا په بله وینا، غبرگغونډلې (◄—) یا گډې غونډلې (◄—) په یوه کړ پورې وتړو، نو د نورې او گنې له پلوه د هماغې غونډلې د اړښي اړوندېږي چې ورسره ملتیا کوي، لکه :
ځلمی – دولس کلن او زرمینه – لس کلنه ده.
ځلمی – دولس کلن دی او زرمینه لس کلنه.
زرمینه – لس کلنه ده او ځلمی – دولس کلن.
ځلمی او زمری – دولس کلن دي او زرمینه – لس کلنه.
ځلمی او زمری – دولس کلن دي او زرمینه او زرینه – لس کلنې ....
ځلمی، خوازك او زرینه لس کلن دي – زمری، غمی او زرمینه اته کلن (دي).
د شعر نړۍ پر خیال او د پوهنې بنسټ پر حقایقو ولاړ دی.
خو ( هاندو هڅه مې وکړه )، په دې لاسوند وایو چې ( هاندو هڅه ) یو پوخ ترنگ ( ترکیب ) دی او د خپلې ښځینه پایلې په درلودلو سره یو یوازینی ښځینه ویی. نوځکه د یوگړي ښځینه ویې چلند ورسره کوو : که هڅه او هاند ووایو، نو بیا یې د ډېرگړي نرینه نوم په توگه کاروو :
هڅه او هاند مې وکړل.

## نوموا‌له او کړواله غونډله

که د یوې غونډلې په اینښوني کې د آر، یا مرستیالکړ ( لکه خوړل، کېدل، شول) پرځای یوازې " استل + ول " یا " کړ، to be " لکه : یم، یو، یې، یاست، دی، ده، دي، یا وم، وو، وې، واست، وو، وه، ول، وې راشي، هغه غونډله (نوموا‌له) غونډله بلل کېږي، که نه کړواله غونډله، لکه : زرین، روغ دی یا وو؛ یا : هلکان – ناروغه دي یا ول ؛ زرینه – ناروغه ده یا وه ؛ یا : نجونې ناروغې دي یا وې ....

## د غونډلې مانیز ډولونه :

غونډلې د کړدود له مخې په خبري یا بیاني او ناخبري یا انشائي ( التزامي ) غونډلو وېشل کېږي.

## ۱ - خبري :

ببرك - ولاړ.

ببرك - تللی دی.

ببرك - تللی وو.

ببرك - ته.

ببرك - ځي.

ببرك - به ولاړ شي.

... او داسې نور.

## ۲ - ناخبري :

ببرك - ولاړ ؟ (پوښتني)

ببرك - ولاړ ! (هېښني)

ببرك - به تللی وي ! (ګوماني)

(کاشکې) ببرك - تللی وای ! (ارماني)

ببرك - دې تللی وای ! (ټينګاري)

(که) ببرك - تللی وي ! (اړوتی)

ببرکه - ځه ! (امري)

ببرك - به ولاړ شي (ګوماني او ټينګاري)

... او داسې نور.

## د غونډلې جوليز ډولونه :

د جولې او ځومره والي له مخې غونډله يووستوې وي، يا غبرګه، يا ګډه او يا ګډلې.

**يوستووې غونډله** : هغه راز غونډله ده چې له دوو غونډونو (اېښي او اېښوني) څخه جوړه وي، لکه :

ځلمی - يېوه کوي. يو غښتلی سړی - په ځغاسته راغی.

د کندهار انار - خواږه دي.

بوره - نشته.

او داسې نورې.

يوستووې غونډله د نورو ډولو بنسټ بلل کېږي.

**۱ - آره یوستوې غونډله :** چې اېښی له یوه ( کړند )، یا ( کړي ) او اېښونی له یوه ( کړ ) او د لېږند په ترڅ کې له یوه کړي او ( کړ ) څخه جوړوي، او د دود له مخې د دغو درو واړو توکونو (کړ - کړند - کړي ) اړوندونه له دوو دوو توکو څخه تېری ونه کړي، لکه :

زمرك - ځي.

زرك - اوبه څښي.

یوه نجلۍ - یو لیکی لولي.

یوه ښکلې نجلۍ - یو پنډ لیکی لولي.

زما یو ملګری - هېڅکله خپل کورنی کار نه هېروي.

**۲ - ارته یووستوې غونډله :** چې په اېښي یا اېښوني یا دواړو کې د کړ - کړند یا کړي یا درو واړو اړوندونه تر دوو دوو توکونو تېری وکړي او په دې توګه پکې زیات ارتوالی راشي، لکه :

د دوست هېواد هند مشر، اتل بېهاري واجپایي - به بله میاشت د افغانستان د جمهوري دولت له هېواد مشر، حامد کرزي سره د خبرو اترو لپاره پلازمېنې، کابل ته راشي.

## ۳ - غبرګغونډله :

غبرګغونډله هغه ده چې د یوه اېښي او یوه اېښوني پرځای دوه دوه اېښي او اېښوني ولري، یا په بله وینا، که د یوې موخې د بشپړتیا یا دوو اړوندو موخو د څرګندونې لپاره سره دوې غونډلې په کوم اړیکوییکي یا لازغه ( مکث ) غبرګې او ملګرې شي، یوه غبرګغونډله منځته راوړي. د اړیکوییکو د ډولونو له مخې سره ډول ډول غبرګغونډلې توپیرولای شو. د غبرګغونډلې په دواړو ښېلا ښېلو غونډلو کې یوه آره یا خپلواکه او بله څېرمه یا ښواکه غونډله بلل کېږي. آره یا خپلواکه په دې مانا چې آره موخه پکې څرګندېږي او ځانته پخپلو پښو درېدای شي. څېرمه یا ښواکه په دې مانا چې آره موخه پکې نه څرګندېږي او ځانته پخپلو پښو درېدای نه شي. په دې توګه په یوه غبرګغونډله کې ښواکه یا څېرمه له خپلواکې یا آرې سره د یوې موخې په څرګندونه کې مرستیاله او بشپړوونکې وي. د اړیکوییکو له مخې د غبرګغونډلې ډولونه په لاندې توګه ښوول کېږي :

### ۱ - تړ غبرګغونډله :

چې دواړه یووستوې غونډلې پکې په یوه تړوییکي " او " یا لازغې سره یوځای شوې وي، لکه :

زما زوی اووه کلن (دی) او لور مې شپږ کلنه ده.

یا زما زوی لس کلن دی او ستا لور دولس کلنه (ده).

## ۲ - اړوتي غبرگغونډله :

چې يې يوه ( زياتره لومړۍ ) يووستوې غونډله ښواکه او بله ( زياتره دويمه ) خپلواکه وي. په دې توگه دلته ښواکه غونډله آړ ( شرط ) بلل کېږي او خپلواکه اړوتې، لکه :

که ته راشي - زه به درشم.

که وريځ سپينه شي - باران کېږي.

که شمال نه وي - ونه نه ښوري.

د " که " په وړاندې د اړوتي غونډلې په سر کې د " نو " اړيکوييکي هم راتلای شي، لکه :

که شمال نه وي - نو ونه نه ښوري.

## ۳ - توسني ( علتي ) غبرگغونډله :

چې يې دواړه يووستوې غونډلې سره په يوه يا غبرگو توسنوييکو ( ځکه، ځکه چې، چې، دا چې، په دې چې، نو ... ) غبرگې شوې وي. په دې ډول خپلواکه توسني ( معلوله ) او ښواکه توسني (علتيه ) غونډله نومېداى شي، لکه :

زه راغلم، ځکه تا بللی وم يا : زه راغلم، ( په دې ) چې تا بللی وم.

تا بللی وم، (نو) ځکه راغلم يا : ځکه راغلم، ( په دې ) چې تا بللی وم.

ځکه راغلم، چې تا بللی وم، ځکه راغلم، ( په دې ) چې تا بللی وم.

دا چې تا ويلي وه، نو راغلم يا : څنگه چې تا ويلي وه، نو ( ځکه ) راغلم ....

## ۴ - څرگندني ( بياني *Final* ) غبرگغونډله :

چې دويمه مله غونډله د لومړۍ هغې د زياتې څرگندتيا لپاره وي او د يوې پوښتنې ځواب وايي. د دغسې څرگندتيا د څرنگوالي له مخې يې دا لاندې کوشني ډولونه د يادولو وړ دي :

**۱ - موخنه يا مرامي څرگندني غبرگغونډله** : چې په خپلواکه غونډله کې د راغلي مطلب يا پېښې موخه په بله څرمه غونډله کې څرگنده شي، لکه :

سنك ايران ته ولاړ، چې ځانته کار مزدوري پيدا کړي.

زه راغلی يم، چې تا ووينم ....

**۲ - مهالي څرگندني غبرگغونډله** : چې لومړۍ ( ښواکه ) غونډله د دويمې (خپلواکې) غونډلې د څرگند کړي چار او پېښې مهال او وخت ټاکي، لکه :

چې ته راغلې، زه به ولاړ شم يا : چې ته راغلې - نو زه به ولاړ شم.

کله چې ته راغلې، زه به ولاړ شم يا : کله چې ته راغلې - نو زه به ولاړ شم.

سم چې ما ور پرانيست، پر هغې مې سترگې ولگيدې.

زه به هله درشم – چې ته مې وغواړې.
ترڅو ته رانه شې، ترهغې زه نه راځم.
يا : زه به هله درشم، کله چې تا وغوښتم.
هومره به دې مړ نه کړم، څو دې رنګ د مړي نه کړم.
هله به خبر شې – چې تارو جبې له ورشې !
هله به دې په ياد شي، چې دې يو ديوال ته مخ بل ته دې شا شي !

**۳ - توني څرګندني غبرګغونډله** : چې څرمه غونډله يې د آرې لپاره تون (ځای) وټاکي، لکه :
چېرې دې ښه، هلته دې شپه !
چې نه کار، هلته څه کار يا : چې دې نه کار، هلته څه کار !
چې له کومې راغلی يې، پر هماغه ځه !
چېرې چې اوسې – په خوي به د هغو سې يا : چېرې چې اوسې – په خوي به د هغوی اوسې !
يا د پرديو ژبو په بې ځايه پېښنو (→اړيکنو مخري او پښتو)، لکه :
د هند جمهور رئيس اسلام آباد ته ولاړ (چېرې) چې له پاکستاني چارواکو سره خبرې کوي. دلته (چېرې) يو زياتي توك دی، البته له (چې) سره بيا (کوي) نه، بلکې (وکړي) راځي.
د (تون) د زياتې څرګندتيا لپاره له (چې) سره (هلته) هم ملګری کېدای شي، لکه :
د هند جمهور رئيس شوروي ته ولاړ چې هلته له شوروي مشرانو سره خبرې کوي.

## ۴ - وګړيزه څرګندني غبرګغونډله :

چې په دواړو ملو غونډلو کې راغلی کړند يا کړی يو (وګړی) وي، لکه : څوك چې خوب کړي، نر کټې به زېږوي.
يا د نورو ژبو په پېښنو په ناسم ډول :
ځۍ هغو خوارو ته جنت وګټو – (څوك) چې له موره دوزخيان پېدا دي.
دلته دا پايله (نتيجه) اخيستلای شو چې (څوك)، (چېرې)، (کوم)، (څه)، (کله) او داسې څرګندني اړيکوييکو غوندې يوازې د هماغې څرمه غونډلې په سر کې له (چې) سره راتلای شي، چې تر آرې له مخه وي. دغه توپير په دواړو ساريو (مثالو) کې ښه ترا لېدای شو.
۵ - خيزواله څرګندني غبرګغونډله :
چې په دواړو ملو غونډلو کې راغلي کړندنه يا کړي يو (څيز) وي، لکه :
څه چې کري، هغه به رېبي
څه چې وي، هغه به وي
۶ - کړولي (قيدي) څرګندني غبرګغونډله :

چې د دواړو غونډلو اړیکوییکي کړلونه وي، لکه :
لرې څه، ژر راځه.
یا د دې لنډۍ دویمه برخه :
پر لویو غرو د خدای نظر دی - پر سر یې واورې، پر لمن یې زېړ ګلونه
۷ - پرتلیزه څرګندني غبرګغونډله :
چې د دواړو ملو غونډلو اینبي سره د اړیکوییکو په وسیله انډول، پرتله یا همڅېر شوي وي، لکه :

څنګه دېګ، هسې تېپېر یا : هسې یې تېپېر ( کړ پرېښوول شوی )
څنګه غر، هسې کربوړی ( کړ پرېښوول شوی )
یو یې ګتي، سل یې څتي
سل دې ومره، یو دې مه مره.
یا : سل دې ومره، د سلو سر دې مه مره.
سل پتنګان سوځي، د یوې شمې ژړا سره.
۸ - اړپېچنه ( متضاده ) څرګندني غبرګغونډله :
چې د آرې او څرمې څرګندونې یا اینبي سره اړ پېچ یا بډوالی ( تضاد یا تقابل ) ولري، لکه :
که څه هم ما زیار ایستلی نه و، (خو) بیا هم بریالی شوم.
سره له دې چې ناروغ وم، پوهنځي ته راغلم.
یا : سره له دې چې ناروغ وم - خو بیا هم پوهنځي ته راغلم.
یا د یوې ارتې یوستوې غونډلې په بڼه :
له ناروغۍ سره سره پوهنځي ته راغلم.
له ولسه ووځه، له نرخه مه ووځه.
که غر لوی دی، پر سر یې لار ده.
خپل، خپل دی، پُردي په ډېرو نارو خپل دي.
دښمن به دې وخندوي، دوست به دې وژړوي.
شمه چې سوزېږي رڼا هم لري ( ګوره په خندا کې ژړا هم لري ).
۹ - سرغاړې ( منصرفه ) څرګندني غبرګغونډله :
چې دویمه ( څېرمه ) غونډله یې د لومړۍ ( آرې ) له څرګندونې څخه سر وغړوي او نور زیات څه څرګند کړي، لکه :
ځلمی ګرم نه دی، بلکې زمری ګرم دی
یا ځلمی ګرم نه دی، چې زمری ګرم دی
۱۰ - بشپړ انده څرګندني غبرګغونډله :

چې دویمه ( څرمه ) یې د دویمې ( آرې ) د جاج ( مفهوم ) په بشپړولو یا پراخولو کې مرستیاله اوسي، لکه:

خوشال خټک نه یوازې شاعر وو، چې تورزن هم وو.

یا : بلکې تورزن هم وو.

یا : خوشال خټک یوازې شاعر نه وو، چې تورزن هم وو.

یا : بلکې تورزن هم وو.

یا : خوشال خټک لوی شاعر و، چې لاتل هم وو.

دلته گورو چې ( نه یوازې ) د ( چې هم ) یا ( چې لا هم ) او یا ( بلکې هم ) په ملگرتیا د دواړو غونډلو اړیکي ټینگوي یا په بله وینا ( نه یوازې ) او ( چې هم ) یا ( نه یوازې ) او ( چې لاهم ) یا (نه یوازې ) او ( بلکې هم ) د دواړو ملو غونډلو ترمنځ د بشپړتیا اړیکي څرگندوي. همدومره خبره ده چې که د پور ویې ( بلکه یا بلکې ) له کاروني څخه ډډه وشي، نو د سکینډې ( جبران ) لپاره یې په هماغه څېرمه غونډله کې د اېښې پر آر توك باندې یو پیاوړی خج راوړل په کار دي چې له همدغه خج سره اهنگ هم پتلیز لوړولای شي.

۷- چارټاکي غبرگغونډله: چې تر آرې غونډلې تر مخه څېرمه له یوه چارټاکي کړ (←) څخه رغیدلې وي. پښتو چارټاکي کړونه (Model verbs) له ( ول، استل، اوسل یا اوسېدل)، یا په انگرېزي نومونه "to be" کړونو پرته نو ټول مرستیالکړونه رااخلي او په ترځ کې یو شمېر آر کړونه هم چې ورته مرستندویه دریځ راځپلوي، د دغو کړونو له بېلابېلو مانیزو او پښوییزو چارونو سره اړوندې غبرگغونډلې بېلابېل ډولونه غوره کوي:

۱- تواني، چې د کول – کېدل (+شول) په مرسته جوړېږي، لکه:

ما (و) کړای شول، په خپل کار کې سترې بریاوې تر لاسه کړم.

ما به وکړی شوای، خپلې چارې سرته ورسوم. زه به وکړای شم، څښتې چارې تر سره کړم....

۲- گوماني( احتمالي، شکي)، چې د کېدون او نه کېدون پته یې سمه نه لگي، لکه: کېدای شي، نن واوري. ښایي، نن واوري. د آرو کړو په مرسته ملگرتیا، لکه: داسې ښکاري ( برېښي یا اېسي) چې واوري.

۳- ټینگاري، چې زیاتره د ناوړیدوني" بویه " یا یې پارسي انډول " باید " په مرسته رغېږي، لکه:

بویه یا باید کار وکړي. باید نجونې ښوونځي ته ولاړې شي...

او یا هم د کړ غونډونو ( فقرو) په مرسته، لکه:( په کار ده)، ښځې له نارینه وو سره اوږه پر اوږه کار وکړي. ( دا اړینه ده) چې هر څوك لومړی زده کړه او بیا کار وکړي....

غوښتنل له آره یو آر کړ دی، د ښکارېدل، برېښېدل، اېسېدل غوندې د ورته چار تاکې مرستیالکړ په توګه په ګړنۍ او لیکنۍ پښتو کې لړو ډېر کارول کېږي او زیاتره ټینګاري ځانګړتیا لري، لکه:
زه غواړم، یو ګاډی واخلم. یا : زړه مې غواړي، واده وکړم ... خو دا چې کنبښنې ( پیښوري)
لیکوال یې له بل آر کړ سره مرستیالوي، انګرېزي- اردو پېښې برېښي، لکه : زه یو کتاب لیکل
غواړم او داسې نور.

۳-۱۱-۳: ګډه غونډله :
ګډه غونډله هغې ته وایي چې په هغه کې تر دوو نه زیاتې غونډلې پرله پسې راغلې وي او
څرګندونې یې سره یوه له بله کوم ډول اړیکي او اړوندي ولري. او دا چې هماغه یوه یواځېنۍ
موخه یا سره څو اړوندې موخې د بېلا بېلو غونډلو له خوا په بېلا بېل ډول څرګندېدنه موندلې
وي، نو زیاتره یې یوه غونډله خپلواکه یا آره وي او نورې ټولې ملې ورسره بېواکه یا څېرمه وي.
په ګړنۍ ( محاوروي ) پښتو کې ګډې غونډلې زیاتره له دوو غبرګغونډلو څخه جوړې وي. چې په
دې ډول په ډوارو یوځای شوو غبرګغونډلو کې د آرو او څرمو غونډلو شمېر یو پریو وي، لکه په
دې لنډیو کې :

بنه دی چې سترګې دې وړې دي – که چېرې غټې وای خوړلای به دې ومه
یار مې د کوټ زه د تیرا یم - خدایه کوټ وران کړې چې جوړه تیرا له څونه

په لومړۍ لنډۍ کې لومړۍ برخه ( مسره ) یوه غبرګغونډله ده چې آره غونډله پکې له مخه او
څېرمه وروسته ده. دویمه برخه ( مسره ) یوه بله غبرګغونډله ده چې څېرمه غونډله د آرې غونډلې
ترمخه راغلې ده. دا چې په لومړۍ مسره کې دویمه ( څېرمه ) غونډله په څرګندنې وییکي ( چې )
پیل شوې، نو ټوله دویمه مسره یوه اړوتې غبرګغونډله ده. دواړې مسرې ( غبرګغونډلې ) سره بیا
په یوه توسني اړیکي چې په لارغه څرګندېږي، یوه ګډه غونډله جوړوي. نو له دې پلوه زموږ پاسنۍ
لومړۍ لنډۍ یوه توسني غبرګغونډله ده چې یې د غړیو غونډلو شمیر څلورو ته رسېږي او لومړۍ
یې ( بنه دی ) آر غونډله بلل کېږي او که دغه لنډۍ ته د دوو غبرګغونډلو په سترګه وګورو، نو
لومړۍ غبرګغونډله ( لومړۍ مسره ) آره او دویمه غبرګغونډله ( دویمه مسره ) څېرمه ده. د دویمې
غبرګغونډلې بیا دویمه مله غونډله ( خوړلای به دې ومه ) آره یا اړوتې او لومړۍ هغه یې (که
چېرې غټې وای ) څېرمه ( آر ) بلل کېږي.
او دا هم د لومړۍ ( ګډې غونډلې ) لښتیلیک ( جدول ) :

... <u>اېښوني</u> اړیکوییکی <u>اېښی/اېښوني</u> لارغه ... <u>اېښوني</u> اړیکوییکی <u>اېښی/اېښوني</u>

| له پټ اېښي سره | څېرمه | له پټ اېښي سره څېرمه | آره |
|---|---|---|---|

........................ لارغه ........................

| لومړۍ څرګندنې غبرګغونډله | دویمه اړوتې غبرګغونډله |
|---|---|

۳-۱۱-۴: گډلې (مختلطه) غونډله:

ګډلې غونډله هغه ده چې د یوې یوستوې غونډلې په منځ کې یوه یا زیاتې څرمه غونډلې ورننوتې وي. دغه راز څرمه غونډلو ته منځېښې (معترضه) غونډلې ویل کېږي.

جوړښت یې دا چې د آرې غونډلې تر اېښې (مسندالیه) یا د هغه تر کومې بلې برخې وروسته د هماغې اېښې یا برخې په اړه یوه یا زیاتې غونډلې په څرمه ډول راشي او بیا د آرې غونډلې پاتې برخه تر ټولو پای ته راووځي.

په ګړنۍ پښتو کې ګډلې غونډلې ډېرې لږې کارول کېږي او هغه هم په دومره ښېچلې بڼه نه. دا مانا چې نه آره غونډله پکې دومره ارته وي، او نه پکې منځېښې تر یوې زیاتې وي. او هغه هم دومره ارته نه وي، که نه پر غبرګو او ګډو غونډلو اړول کېږي. دلته لومړی له ګړنۍ او بیا له لیکنۍ پښتو څخه د ګډلو غونډلو بېلګې رااخلو:

(۱) زه – چې کور ته ځم – رخصت اخلم.

(۲) ځلمی – چې پرون راغلی وو – ما ونه لید.

(۳) ما پروفیسور مورګنستیرنې – چې دا وروستی ځل کابل ته راغلی وو – ونه لید. یا د غبرګې غونډلې په ډول:

- ما دا وروستی ځل پروفیسور مورګنستېرنې ونه لید – چې کابل ته راغلی وو.

(۴) خوشال ختك – ترهغې پخوا چې په ګوالیار کې بندي شي – له اورنګزیب سره په داسې مېړانه – چې ساری یې نه درلود – جنګ وکړ.

دا یوه دوه اړخیزه ګډلې غونډله ده. په دې توګه د لومړی آرې غونډلې (خوشال ختك له اورنګزېب سره په مېړانه جنګ وکړ) دوه منځېښې غونډلې راغلې دي چې لومړی برخه یې (په ګوالیار کې بندي شي) د اېښې (خوشال ختك) په ګوالیار کې بندي کېدل څرګندوي او دویمه یې (ساری یې نه درلود) د اېښونې (جنګ وکړ) یو کړول (په مېړانه) څرګندوي او پیاوړی کوي. (تر هغې پخوا – چې) او (داسې – چې) د درو واړو ملو غونډلو ترمنځ د اړیکوییکو دنده پرځای کوي، لومړی د زماني اړیکي او دویم د څرنګیز اړیکي.

دلته وینو چې د آرې غونډلې اېښې (خوشال ختك) له خپل اېښوني (جنګ وکړ) څخه یو نادوده لرېوالی لري، نو په دې لاندې ډول دغه لرېوالی له منځه وړلای شو:

خوشال ختك – تر هغې پخوا چې په ګوالیار کې بندي شي – له اورنګزېب سره په داسې مېړانه جنګ وکړ – چې ساری یې نه درلود.

د ننۍ پرمختللې علمي - تخنیکي نړۍ له غوښتنو او اغېزو سره دغه راز غونډلې په " لیکنۍ " پښتو کې مخ پر زیاتېدو او پېچلې کېدو دي، لکه:

**۵** – د یونان نومیالي فیلسوف اپلاتون - چې په اسلامي نړۍ کې د لوی نامه خاوند شو – د لوېدیزې نړۍ لومړی پوهاند دی – چې د ژبې د بنسټ او څرنګوالي په باب یې فلسفي څېړنه کړې

ه – او له دې لامله د لوېديزې نړۍ د ژبپوهنې بنسټوال او د پرله غښتي ګرامر برسيرونی ګڼل کېږي.

۶ – د يونان سترې جنګي بوللې يا حماسې ( الياد او اوډيسې ) - چې سپېڅلې ګڼل کېدې - په خورا لرغونو زمانو کې په داسې يوه ژبه او سبك ليکل شوې وې - چې کابو نابومه ( نامانوسه ) شوې وې. په پنځمه ګډلې غونډله کې يوازې ( د يونان نوميالی فيلسوف اپلاتون چې په اسلامي نړۍ کې د لوی نامه خاوند شو – د لوېديزې نړۍ لومړی پوهاند دی ) ربښتينی ګډلې غونډله جوړه کړې، ځکه د يوې آرې ترمنځ يوې منځپېښې غونډلې ځای نيولی دی، او ورپسې نورې دوې ورسره په ځرګندنې او توسنې بڼه د زياتې ځرګندونې لپاره ملګرې شوې دي.

# ګړنې او څرګندنې - محاورې او اصطلاحات
## *Idioms and Expressions*

په غونډله پوهه کې مو تراوسه د وينا بشپړ يوونونه ( واحدونه )، يا په بله ژبه غونډلې وڅېړلې او په ترڅ کې مو واړه واړه غونډونه يا لغوي ګروپونه ( فقرې ) چې د ګړنو ( ايديمونو ) او څرګندنو (اکسپرېشنونو ) په نامه بلل کېږي.

هغه ځانګړې ځانګه چې دغه غونډله پوهېزې تولۍ(کتېګورۍ)څېړي،غونډ پوهه(Phraseology) بلل کېږي. ځېنې ژبپوهان نن سبا دغه پوهه د ژبپوهنې د څېړنې کومه څېرمه ځانګه نه ګڼي، بلکې د ژبپوهنيز الواك په يوه مرکزي ډګر (ساحه) کې ورته ځای ورکوي او وايي : د فرازيولوجۍ سکالو هغه ځانګړي ژبني يوونونه رااخلي چې موږ يې د فرازيزلوګيزمونو ترنامه لاندې راولو.

دغه ټول يوونونه د خپل جوړښت له مخې تر يوه زيات وييونه رااخلي او په يو لړ اکرو کې د ويي غونډ ، تر پولو هم تېرى کوي او کولای شي، غونډله ييزه ځانګړتيا ترلاسه کړي. په دې توګه موږ په فرازيولوجۍ کې له ځانګړو ويي غونډونو او غونډلو سره کار لرو.

د دغو يوونونو ځانګړتيا د دوي په هغه مانا کې پرته ده چې دوی په څرنګيز (کيفي) توګه د " ازادو " ويي غونډونو او ازادو غونډلو له مانا څخه توپيروي او خپله څرګندونه په پرله غبنتيا او يا ګړنيزتيا کې ترلاسه کوي ( کونيګ + وېرنر ۴ مخ ).

## پېژند (تعریف) له مخې :

یوه ګړنه یو داسې ویی غونډ دی چې له راز راز مانا لرونکو وییو او وییکو څخه منځته راغلی وي او په ژبه کې یو نااټکل کېدونکی لرغونتوب لري.

یوه ګړنه تل په جولیز ډول یو ناشنونی غونډ ګڼل کېږي. په بله وینا، یوه ګړنه د داسې دوو یا زیاتو وییو غونډ دی چې په یوه غونډله ییز، یا په بله وینا، غونډله پوهیز (نحوي) چاپېریال کې ځانته بېلا بېله جولیزه خپلواکي او یووالی ساتلای شي. ذ ساري په ډول له هر راز اوښتني راوښتنې سره مخامخېدای نه شي او په ګډه چې کومه یوه یوازینۍ مانا منځته راوړي، نه شنل کېدونکې مانا بلل کېږي. دغسې یوه منځته راغلې ګډه مانا کله داسې وي چې د ټوکونو (اجزاوو) له بېلا بېلو مانااوو سره څه ناڅه ورته والی او اړیکي لري او د شنلو (تجزیه کېدلو) پروخت یې ګډه مانا کورته له منځه نه ځي، د چا خبره یو څرك هومره یې لالګېږي، لکه برخه اخېستل، سر پرځنې کېدل، مقصد ته رسېدل، وروسته پاتېدل، خوله پرخوله کېدل، پرمخ تلل، لاسته راوړل، یا راوستل، له منځه وړل ... او نور. دغه راز جوړښتو ته بیا څرګندنې (اصطلاحات) هم ویل کېږي.
په دویم ډول ګړنو کې ګډه مانا داسې وي چې د بېلا بېلو ټوکونو ماناوې یې ښکارندوي نه شي کولای او له ټوټه کېدو سره هر ټوك خپلې ګوښې آرې مانا ته ورګرځي، کټ مټ، لکه د یو کیمیایي ترنګ ټوکونه. (د ساري په ډول هایدروجن او اکسیجن چې یو یې هم ځانته د خپل ترنګ "اوبو" ښکارندویي نه شي کولای). بیلګې یې، لکه : غوږ رپول، زړه مړېدل، زړه خوړل، زړه ماتېدل، زړه یخېدل، سپینې ښویېدل، تبنتیدل (سپېنې غوټه کېدل بیا زیات د څرګندنې په توګه کارول کېږي)، پزې ته رسېدل، سترګې رپېدل، لاس تر زنې لاندې کیناستل، لاس پرسر کېدل، لاس اخېستل او داسې نور کنایي او مجازي مانا ښندونکې کړ غونډونه.

درېیم هغه ګړنې دي چې د متلونو او بولنو (مقولو)، یا وراشو (وجیزو) په ډول وي، یا په بله وینا، یو راز غورې خبرې یا وراشې او یا وجیزه ډولې او مقوله ډولې ویناوې او یا متلونه وي. دا مانا چې کومې کیسې ته ګوته نیسي او هر یو د ګړهار بهیر کې د یوه نا شنونکي ویي غونډ (لغوي ګروپ) په توګه لکه یوه ګړ نه کارول کېږي. کټ مټ د شاعرانه ارسال المثل غونډې، د بېلګې په ډول: د کبر جام - نسکور دی. پلانی او بیستانی سره نوك او اووری دي. پلانی او بیستانی د یوې سورې ماران دي، یا د یوې باغچې ګلان دي. په یوه ګل نه پسرلی کېږي. دا هم په انارو. خوند یې باران وړی دی. د کوهي ختېه پر کوهي لګي. وروري - خوري به کړو حساب ترمنځه. یوه بلا بلې ته وایي چې بو ! ښه ښه دي - بد بد دي. خپل عمل د لارې مل. د جولامنډه تر مړوې پورې ده. لرې څه - ژر راځه. مه کوه پرچا چې وبه شي پرتا ! لاس چې مات شي د غاړې بار شي یا غاړې ته ورځي. د چا پرتوګاښ تښتېدل (خجالت کېدل). پر پچه سپرېدل او کشمیر لیدل. لور پر لوټه تېره کول. اوبه له ورخه تېرېدل. اوبه په ډانګ بېلول.

لـه هسـې عـادي وراشـو، بولـنو او مـتلونو سره د دغه راز ګړنو توپير همدومره دی چې دلته وراشې، بولنې او متلونه په جلا او خپلواك ډول د وينا له بهيره بهر د يوې کړې يا شوې وينا د ټينګار، پخلي او جوتـيا لـپاره پـه څيرمه او سرباري (اضافي) ډول نه، بلکې پخپله د آرې وينا يا يوه ويناييز يـوون (غونډلې) د يـو نـه جلا کېدونکي ټوك او برخې پـه توګـه کـارول کېږي، لـه دې کبله د داسې تضمين شوي يـا ګومارل شوي مـتل يـا بولـنې آره بڼه تـل خوندي نـه پاتېږي. خو پـه هر ډول د يوې ګړنې غونډې د وينا يا غونډلې دننه د مانا او جولې له مخې يو نه شنل کېدونکی ويی غونډ او برخه جوړوي، لکـه : غـرزي - لاس تـر زنـې کـښېناست. پـه دې غونډلـه کـې ( لاس تر زنې کښېناست ) ګړنيز غونډ دی چې د يوې غونډلې اېښونی يې جوړ کړی دی. نور ساري ( مثالونه ) يې، لکه :

درخو – ګوته پر غاښ ونيوله.

ځلمی - اوبه په ډانګ ببلوي.

ځلمی - له زانو کټوري غواړي.

يا د يوه غونډ (اېښي - اېښوني) يوه برخه جوړوي، لکه : تور - (اوبه په ډانګ ببلول) غواړي.

او يـا دواړه غونـډه، يـا پـه بلـه وينا، يـو مـتل سمته غونډلـه جـوړوي، لکـه : نـوك او ورۍ - سره نـه بېلېږي.

د ښوييز چـار لـه مخـې دوه رازه ګړنـې سره توپيرېږي : نوموالـه ګړنـه، لکـه : د بـوډۍ ټـال (سره زرغونـه) يـا د ګيدړ واده (آفتـاب بـارانك) ؛ دويمه کړوالـه غونډلـه، لکـه : غـوږ ريـول، پـه ډنـډ کـې خولې کېدل بيا هم يـوه نوموالـه ګړنه کېدای شي، د کړ پـه ملګرتيا کړوالـه شي، لکـه : لاس تر زنې کښېناستل يا کېدل او داسې نور.

## غونډلـه پوهيزه ( نحوي ) شننه :

د دې لـپاره چـې د غونډلـه پوهيزو يوونونو (غونډلو او غونډونو) پرمانيزو او جوليزو جوړښتونو، اوډون او خپلمنځي اړيکـو موښـه ترا رڼا اچولې وي، دلته غواړو څېنې بيلګې يې تر شننې، څيرنې (تجزيې) او سپړنې (تشريح) لاندې ونيسو. پـه دې ترڅ کې به راته دا هم ښه ترا څرګنده شي چې دغه راز شننه له غړ پوهيزې او ګړ پوهيزې شننې سره څه توپير لري.

۱ – زما ورور – نن له کندهار څخه کابل ته راغی.

دا غونډلـه وينـو چـې لـه (۹) کوشنيو ټوکونـو (زمـا، ورور، نن، لـه، کندهار، څخه، کابل، ته، راغی) څخه جوړه ده او د غونډلـه پوهې لـه پلوه تر دغې زياتـه نـه شنل کېږي. کـه څه هم څېنې توکونه، لکه (زمـا)، ساده ويـی نـه بلـل کېږي او پر دوو توکونو يا ټوکونو توټې کېږي، مګر دغـه راز ټوټـه کېدنـه يا شننه پـه ګړپوهـې پـورې اړه لـري، نـه پـه غونډلـه پوهـې پـورې، همداسـې "راغی" هم دروا‌خله. دلته يوازې پر نهو توکونو شننه، د هغوی د اوډون او خپلمنځي اړيکي ښوول د غونډلـه پوهې ويينه ده.

په دې توکونو یا ټوکونو کې ځینې بیا داسې دي چې د غونډله پېژو اړیکو له مخې سره غونډ غونډ یا جوړه جوړه کېدای شي، لکه :
زما ورور ـ نن ـ له کندهار څخه کابل ته، راغی.

دلته بیا گورو چې په دغو پنځو غونډونو (کړند، کړول، کړول، کړول، کړ) کې ځینې سره د بل ډول اړیکو له مخې پر دوو سترو غونډونو یا برخو ډله ډله کېږي چې یوې برخې ته یې نوموال غونډ یا اېښی (مسندالیه) او بلې ته کړوال غونډ، یا اېښونی (مسند) وایي، لکه : زما ورور – نن له کندهار څخه کابل ته راغی.

د اوډون له پلوه گورو چې لومړی نوموال غونډ راغلی او بیا کړوال غونډ. په کړوال کې د پښتو غونډله پوهې له دود او دوی (قاعدې او قانون) سره سم لومړی تولنومځری (زما) او بیا یې اړوند ځېز نوم (ورور) او په کړوال غونډ کې لومړی د کړ اړوند توکونه او بیا پخپله کړ راغلی دی.

دا چې غونډله خبري ده، نو اهنگ یې هوار پیل کېږي او ورو ورو کښته لوېدلی پای ته رسېږي. ټوله غونډله یو پیاوړی خج لري چې ویونکی یې له خپلې موخې سره سم پر یوه ویي باندې راوړي، یا په بله مانا : پر هر ویي اوڅپه چې ویونکی ورته زیات ارزښت ورکوي، که نه په عادي او منطقي ډول یې یو لوستونکی پر کابل او بیا د (بل) پرڅپه راوړي. له دې کبله موږ یو غونډله پېژ خج دوه ډوله پېژنو : یو عادي یا منطقي خج، لکه پر (کابل) او بل ځانگړی یا فوق العاده خج چې ویونکی یې د یوې ځاني خوښې یا فوق العاده موخې له مخې پر یوه بل گوم ویي یا څپه راوړي. د ساري په ډول که د ویونکي موخه د (زما) ارزښت او اوچتوالی وي، نو پر (زما) باندې زور اچوي. بیا نو د ویونکي موخه داسې پوهېدل کېږي چې د بل چا ورور یې نه، بلکې خپل یې موخه دی او که پر (ورور) خج راوړي، دا مانا ترې اخلو چې ویونکی له نورو اړوندو کسانو (خپلوانو یا ملگرو) څخه خپل ورور جلا کول او نومېړل (مشخصول) غواړي او همداسې یې پر نورو پاتې وییونو باندې خج اچونه دروا خله.

کوم اړیکي چې په دغه غونډله کې د اېښي او اېښنوني ترمنځ لېدل کېږي، هغه یې سره د وګړي، نوږي او ګڼې له مخې برابرښت او سمښت دی. په بله وینا، (زما ورور) چې یو اېښی دی، د اېښنوني له آر توك (راغی) سره د پورتنیو اړخونو له مخې سمون لري، داسې نه، لکه د وګړي له پلوه (راغلم یا راغلی) وویل شي، یا د نوږي له پلوه (راغله) او یا د ګڼې له پلوه (راغلل) ناسم وویل شي او دا ځکه چې د تېرمهال نالېږند کړ په دریم وګړي کې دغه درې اړخیزه سمون دود دی.

دا چې نن سبا د پرمختللې فرهنگي نړۍ په پېښنو، د نمانځنې له کبله د یو ګړي لپاره ډېرګړی کړ او نومځري کارول، لکه زرك، زمرك ته وایي : (تاسي له کندهاره کله راغلاست) یو پېښنوییز دود نه، بلکې ټولنیز دود بلل کېږي. المانیان دغه راز نمانځنه په یو بل ډول څرگندوي او هغه دا چې د

مخامخ یوګړي وګړي لپاره د درېیم ډېرګړي وګړي نومځری کاروي. ختیځوال زیاتره د درو واړو یوګړو د نمانځنې له کبله ډېرګړي کاروي، لکه ستاسې پلار چېرې (ولاړل). په کندهاري ګړدود کې د درېیم وګړي ښځینه یوګړی د تېرمهال نالېږند کړ د کړند او یا د بېچار لېږند کړ د کړي په توګه ډېرګړی کارول کېږي: (ورېمه راغلل) یا (ورېمه مې ووهل) چې ټولنیزه یا درناویزه پېښنه ورته ویلای نه شو، بلکې یو سیمه ییزه ګړدودي ځانګړتیا ده او له ټولیزې (معیاري) پښتو څخه یو سرغړاوی بلل کېږي.

زمونږ ترڅېړنې لاندې غونډلې په اېښوني (نن له کندهار* څخه، کابل ته راغی) کې (نن) د (راغی) مهال ټاکي، په بله وینا، یو مهالي کړول دی. (له کندهار څخه) یو توني کړول دی او (کابل ته) یو بل توني کړول بلل کېږي. له بله پلوه (نن) یو ساده کړول دی او دا نور دواړه ترېښتي کړولونه، یا په بله ژبه، کړولي غونډونه. په لومړي کړولي غونډ (له کندهار) کې (له) سربل او (څخه) اوستربل (کندهار) په وتون پېر Ablative کې اچوي. د همدغه وتون پېر له کبله (کندهار) پر (کندهاره) اوړي چې اړونده پایله (a) یې، هم د اوستربل "څخه" استازي کوي او هم د اوښتي پېر. خو که "څخه" ورسره وکارول شي، بیا یې نو پایله کره نه بلل کېږي. په دې توګه (کندهار) د سربل او اوستربل تر واکمنۍ لاندې دی او دا ټول کړولي غونډ (له کندهاره څخه) بیا پرکړ باندې واکمني لري، درې واړه کړولونه (نن، له کندهار څخه، کابل ته) د کړ اړوندونه دي او په یو مهال کې پر کړ (راغی) واکمنان.

د اوډون له پلوه د غونډلې ګرد توکونه پرخپل خپل ځای راغلي دي. یوازې (نن) کولای شي، تر (له کندهار څخه) وروسته ځای ونیسي، بې له دې چې پکې پښوییز او مانیز ونجون پېښ شي.

۲ – خدایه ته په زړه کې اچوې دا میني – چې په ښکار دې مبتلا کړم ته مې ویني (د خوشال خټك د بازنامې د سر بیت).

دغه بیت یو ګډ غونډله ده چې که (خدایه !) جلا بلنې (ندائیه) غونډله ونه ګڼو، نو لومړی نیم بیتی یې یوه یووستوې غونډله ده او دویم نیم بیتی یې دوه یووستوې، یا په بله وینا، یوه غبرګغونډله ده، خو د موخې له مخې لومړی نیم بیتي غونډله د دویم نیم بیتي له لومړۍ غونډلې سره یو پرله غښتی (منسجم) یووالی یا غبرګه غونډله جوړوي او درېیمه (ته مې ویني) ورپورې هسې یوه سرباري غوندې غونډله ملګرې شوې او د مخنیو دوو غونډلو د څرګندونې یوه بشپړوونکې او پخوونکې غوندې پایڅوړ بلل کېږي. دا دی، لومړۍ یووستوې غونډله پرخپلو رغنده توکونو وېشو :

خدایه – ته – په – زړه – کې – اچوې – دا – میني

دغه اته توکونه سره د ځینو ګرامري اړیکو له مخې د وروستیو څلورو غونډونو په بڼه ډله ډله کوو:

خدایه ته – په زړه کې – اچوې – دا میني

لومړی کړند غونډ ( فاعلي گروپ ) دی، دویم کړولی، درېیم کړ دی او څلورم کړی غونډ (مفعولی گروپ ). د دغو غونډونو شمېر بیا دوو سترو غونډونو (اېښي او اېښوني) ته راټیټېږو :

خدایه ته – په زړه کې اچوې دا مینې

د اوډون له پلوه د اېښوني کړي غونډ (دا مینې) د شعري اړتیا له کبله خپل ځای پرې اېښی دی، که نه رښتینی ځای یې هم د اېښوني په سر کې له کړ ول غونډ (په زړه کې) له مخه او هم ترې وروسته ټاکل کېږي. دا غونډله که څه هم یوه خبري غونډله ده او په کار وه چې اهنگ یې ډېر ټیټ پای ته رسېدلی وای، خو دا چې شعري اړتیا اوډون ویجاړ کړی او کړی غونډ (دا مینې) تر کړ (اچوې) وروسته راغلی، نو اهنگ تر ځوړېدلو وروسته یوځل بیا لوړ شوی پای ته رسي.

خج پر (ته)، (اچوې) او (مینې) درو واړو وییو باندې راځي، مگر وروستی د زیات پیاوړتوب له کبله د غونډلې یوازینی پیاوړی خج بلل کېږي. دا گرده غونډله (یا مسره) د مانا او موخې له مخې یو بیخي بشپړ یووالی نه برېښي، بلکې "دا" د یوه اړیکوییکي په توگه د یوې بلې څرگندني څېرمې غونډلې غوښتنه کوي. له همدې کبله دا بله څرگندني غونډله ورسره په بل همغاړي اړیکوییکي یا څرگندني اړیکوییکي (چې) پیل کېږي. د آرې غونډلې د اړیکوییکي "دا" دا ځواب وایي چې څه ډول او کومه مینه. په دې توگه د دواړو غونډلو له ملگرتیا منځته راغلې یوه غونډله یوه غبرگغونډله بولو او هغه بیا یوه څرگندني غبرگغونډله.

دا هم د لومړۍ څېرمه غونډلې شننه :

چې – په – ښکار – دې – مبتلا – کړم

ټوله څېرمه غونډله شپږ ټوکه لري. لومړی ټوك (چې) یو څرگندني اړیکوییکی دی. دویم ( په ) یو سربل دی چې بې اوستربله ( سره ) لوښنه ( الی ) پازه ترسره کوي او (ښکار) ترخپل واك لاندې راولي او په لوښن پېر (الی حالت) کې، یي اچوي. (دی) د دویم یو گړي وگړي (مفرد مخاطب شخص) کمزوری نومځری (دې) او بیا یو کړند چې د گردې غونډلې اېښی جوړوي. (مبتلا) له (کړم) سره یو کړوال غونډ، یا په بله وینا، یو ترښتي کړ رامنځته کوي.

د پورتنیو پېښوییزو اړیکو له پلوه گرد ټوکونه داسې اوډو :

چې – په ښکار – دې مبتلا کړم.

(چې) خو، لکه چې وویل شول، له تېرې غونډلې سره د یوه څرگندني اړیکي چار پر غاړه لري. (په ښکار) یو توسني غونډ دی، په بله وینا، توسني سربل (په) د (ښکار) څیزنوم ته توسنپېر ورکړی او په دې توگه پرې واکمني لري او بیا دا ټول غونډ (په ښکار) پر (مبتلا کړم) باندې خپله واکمني چلوي، کټ مټ لکه د یو کړول غونډې (دې) د یوگړي وگړي کمزوري وگړنومځري (د مفرد مخاطب شخصی متصل ضمیر) په بڼه د غونډلې کړند یا په بله ژبه (اېښی) جوړوي.

(مبتلا کړم) يو کړ غونډ يا ترښتي کړ دی چې له (په ښکار) سره د غونډلې اېښونی جوړوي. په دې ډول گرده غونډله پر دوو بنيادي برخو (اېښي او اېښوني) وېشلای شو :
دې - په ښکار مبتلا کړم

د اوډون له مخې کومه نيمگړتيا نه لري. اېښی (دې) له پښوييز دود سره سم د اېښوني په منځ کې ورننوتی، ځکه د يو کمزوري نومځري په توگه يې په سر کې راتلل دود نه دي. که اېښوني منځنی برخه (په ښکار) نه درلودای، نو هرومرو بيا د کړ غونډ په منځ کې ورننوته (لکه مبتلا دې کړم). او که د دغه ترښتي کړ (مبتلا کړم) پرځای کوم يوستووی کړ (لکه، وخورم، وای، نو بيا، دې) ښځي پای ته واته (لکه، وخورم دې). بل ځېز چې په دې غونډله کې د يادولو دی، هغه د کړي (زه) نه راوړل دي او پرځای يې يوازې پر وگړيزې پايلې (- م) بسنه ده چې له همدې کبله يې دوديز پښوييوهان (متصل ضمير) يا (کمزری متصل ضمير) او يا (فعلي ضمير) بولي.

دويمه ځېرمه غونډله (ته مې وينې) د منځنۍ غبرگغونډلې په بشپړتيا کې سيده برخه نه اخلي او يوازې يوه تکراري ښه لري، نو که بيا يې هم مله وبولو. زموږ غبرگغونډله پر گډې غونډلې اوړي چې د غونډلو شمېر يې درو ته رسېږي. ړومبی آره، دويمه ځرگندني ځېرمه او وروستنی تړ (عطف) او بيا آره غونډله بلل کېږي. دغه وروستنی تړ آره غونډله لومړی په لاندې درو توکونو شنل کېږي :
ته - مې - وينې

(ته) يو کړند او بيا د تولې غونډلې (اېښی) دی. (مې) يو کړی دی او (وينې) د دويم يوگړي وگړي يوستووی او وسمهال کړ دی. دا چې کړی (مې) د کړ (وينې) له اړوند ځخه گڼل کېږي، نو د ايښي (ته) په وړاندې په گډه يو اېښونی جوړوي، يا په بله ژبه ټوله غونډله پر دوو بنيادي برخو وېشو :
ته - مې وينې

۳ - د پښتو د فعلي اصطلاحگانو واحدونه چې د جوړښت له مخې به په دغې مقالې کې په صنف بنديو ووېشل شي، مهمې او د يادولو وړ نښې يې دا دي (د لودين له ليکنې ځخه).
دا غونډله د دوو ملو غونډلو جوړه شوې گډلې غونډله ده. په دې ډول چې د آرې غونډلې د اېښي او اېښوني ترمنځ يو ځرگندني ځېرمه غونډله اچول شوې ده. ځه چې دلته نابومه (نامانوسه) او نادوده برېښي، هغه د آرې غونډلې بيا پېښې (تکرار) دی او دا بيا پېښي او نادودي هله راځرگندېدای شي چې منځپېښي غونډله ترې واېستل شي. لکه: "د فعلي اصطلاحگانو واحدونه مهمې او د يادولو وړ نښې يې دا دي : ". ښاغلي لودين کولای شول چې دا ټوله گډلې غونډله داسې وکاږي :

( د پښتو د فعلي اصطلاحگانو د واحدونو مهمې او د يادولو وړ نښې چې د جوړښت له مخې به په مقاله کې ډلبندي (صنف بندي) شي، دا دي ). خو دا ډول، ده ځکه نه غوښتل چې منځنۍ څرگندني خېرمه د آرې غونډلې په موخن توك يا مطلوب عنصر (واحدونو) پورې نه، بلکې په ناغوښتلي توك (نښې) اړه پېدا کوله. که ټوله گډلې غونډله يې په غبرگغونډلې اړولی وای، لکه:
( د پښتو د فعلي اصطلاحگانو د واحدونو مهمې نښې او د يادولو وړ نښې دا دي چې د جوړښت له مخې به په دغه مقاله کې ډلبندي يا صنف بندي شي ). په دې ډول کې بيا هم د مخني ډول کانه کېده او د آرې غونډلې اېښونی (دا دی)، هم بېځايه ښکارېده. خو يوازېنۍ کره سمونه يې داسې کېده چې د آرې غونډلې د اېښونئ برخه يې له (نومولې)، يا په بله وينا ، له تولوالي يا ملکيت څخه ژغورلی وای، لکه په دې ډول : (د پښتو د فعلي اصطلاحگانو واحدونه چې د جوړښت له مخې به په دې مقاله کې ډلبندي ( صنف بندي) شي، دا مهمې او د يادولو وړ نښې لري : ). په نړه پښتو، لکه : ( د پښتو کړوالو گړنو يوونونه، چې د جوړښت له مخې به په دغه ليکنه کې ډلبندي شي، دا غورې نښې لري : ). (په صنف بنديو ووېشل شي) يوه خندا وړ تېر وتنه ده. ( صنف بندي ) پخپله د وېشنې مانا لري، وېشنه بيا څنگه ووېشل شي !

که څه هم ځېنې ليکوال چې په پښتو کې له گډلو غونډلو سره کورټ نابلدي (مخالف) دي. پاسنۍ گډلې غونډلې پر دوو، درو بېلا بېلو پرله پسې يوستوو غونډلو ټوټې کوي، خو دا کار د ژبې له سپمايي آر (اقتصادي اصل) څخه تېری دی. په دې مانا چې په هره ژبه کې دا هڅه کېږي چې تر وسې وسې پورې په لږو او پرله غښتو (منسجمو) جوليزو توکونو سره ډېره مانا او جاج (مفهوم) څرگند کړ شي، نه دا چې په سرچپه ډول، په ډېرو نا پرله غښتو جوليزو توکونو سره لږه مانا او جاج. نو که يو بشپړ او ناشنونی يوون (واحد) په څو جوليزو يوونو ( لفظي واحدونو ) کې څرگند شي، له ژبنۍ دوی اوسول (قانون او منطق) څخه يو ښکاره سرغړاوی دی.

اوس بېرته خپلې گډلې غونډلې ته راځو چې بېلا بېل رغنده ټوکونه يې څه راز خپلمنځي اړيکي او اوډون لري.
د آرې غونډلې اېښی له پښتو دود سره سم اوډل شوی، د کړند ( واحدونه ) اړوند توکونه له مخه او پخپله کړند وروسته راغلی دی. دويم تولوييکی ( د ) کېدای شو چې وسپمېږي، ځکه پښتو د ستاينوم په توگه هم کارول کېږي. د دې آرې غونډلې بله برخه ( اېښونی ) د اوډون له مخې هم کومه نيمگړتيا نه لري. يوازې د ( يې ) زياتوالی پکې د گوتنيوي ( انتقاد ) ټکی دی، چې له مخه مو پرې رڼا واچوله. دغه ټوله آره غونډله دواړو خواوو ته د څو اړوندو توکونو په درلودلو سره يوه آر ته. يوستووې، د اېښوني د آر توك په ډول د ( دي ) په درلودلو سره يوه نومواله او له دود پلوه خبري غونډله بللای شو. دا بله منځېږښې خېرمه غونډله د اوډون له پلوه سمه ده، خو تونپېر غونډ ( په دغې مقالې کې ) ( دغه ) او ( مقاله ) هسې بېځايه په اوښتې بڼه کښل شوي دي، ځکه په (ليکنۍ معياري ) پښتو کې د ويونکو د ډېرښت په لاسوند ( په – کې ) د خپل اړوند ځېزنوم د

پایلې ونجون دود نه دی، لکه ( په اسره کې )، ( په کوټه کې ) او یا د حمید مومند په یوه درست غزل کې :

ــــ پر مخ د صنم راغی، که سپوږمۍ شوه په هاله کې
دا يې غاښ په خوله کې زېب کا، که ژاله شوه په لاله کې

ترپایه.

# کړاوړنه

**الف** : دا وروسته پوښتنې راځواب کړئ :

۱ – غونډله پوهه څه ته وايي او له څه نه غرېږي ؟
۲ – د غونډلې پېژند ( تعریف ) څنګه کېږي ؟
۳ – یوه غونډله پر کومو دوو سترو برخو وېشل کېږي ؟
۴ – د غونډلې ډېر بنستېز توك كوم دی ؟
۵ – نیمګړې غونډله څه ته وايي ؟
۶ – غونډ څه ته وايي ؟
۷ – د غونډلې رغنده توکونه ( متشکله اجزاء ) کوم دي ؟
۸ – د پښتو غونډلې اوډون څه ډول دی او له دغه پلوه په کوم څېل (ټیپ) ژبو کې راځي ؟
۹ – د ګرامري جار او مانا له مخې د غونډلې ډولونه وښیاست !
۱۰ – غونډله د جوړښت له مخې په څو ډوله ده ؟
۱۱ – یووستوې غونډله په څو ډوله ده، بېلګې يې وښیاست !
۱۲ – یوه ارته یووستوې غونډله په انځورلیك کې وښیاست !

ب : لړ تر لړه د جولې له مخې د هرې لنډۍ غونډله پيز ډول راوپېژنئ :

۱۳ - که په ميوند کې شهيد نه شوې - گرانه لاليه بې ننگۍ ته دې ساتينه

۱۴ - په تور ټوپك ويشتلى راشې - د بې ننگۍ آواز دې مه راځه مينه

۱۵ - اشنا مې سر پر وطن کېښود - په تار د زلفو به کفن ورته گنډمه

۱۶ - مخ دې ځراغ خوله دې غنچه ده - درته حيران يم چې پتنگ که بورا شمه

۱۷ - ولې به زه ورپسې نه مرم - چې مور ته شا کړي، ماته شنه له خندا شينه

۱۸ - تورې کوه برى به مومې - که برى نه وي ځوانان تل پر وطن مرينه

۱۹ - اخر به وران شي پېښوره - د ننگرهار پېغلې ښېرا درته کوينه

۲۰ - له خمارو سترگو دې جار شم - چې په ژړا شي مرغلري تويوينه

ج : په دې لنډيو کې آرې (خپلواکې) او څېرمه (ښواکې) غونډلې سره توپير کړئ:

۲۱ - که زه خبر واى چې ښېلتون دى - ما به مې يار ترلاس نيولى گرځونه

۲۲ - که راته گورې، درته گورم - که راته نه گورې، پروا دې نه لرمه

۲۳ - ښېلتون پر تنگه کوڅه راغى - ما ويل سلام دى، ده ويل کور دې ورانومه

۲۴ - ما ته وعده د خولگۍ راکړه - څه که د تورو پر سر لار وي دربه شمه

۲۵ - مينه يم، منکره نه يم - که شينکى خال مې د چړو په څوکو ځينه

۲۶ - له لرې مرم، له نژدې سوزم - زه ليونى طاقت د دواړو نه لرمه

۲۷ - د خوشالۍ ياران مې ډېر وه - چې ښادي ولاړه، ټولو پورته کړل لاسونه

۲۸ - يارې خو تا کړه، ما خو نه کړه - چې تومت راغى، اوس پرما کړې منتونه

۲۹ - سپوږمۍ پرما دې څه احسان دى - زما اشنا د دېواله سيورى ته ځينه

۳۰ - سپوږميه سروهه، راخېژه - زما اشنا د تورو شپو مزل کوينه

د : دا وروسته شعرونه له سم اوډون سره په نثر وليکئ :

۳۱ - د مسلمان زړگي ازار چې اخلې - څه شول په دې چې کليسا ته درومې

۳۲ - مرې د زيار خو دا يو سوال کړه ځواب - چې له ما درومې وايه چاته درومې؟

۳۳ - د سپېڅلو گروهو کچه مې له پاکو گناهونو - او د هيلو پيمانه مې نهيلو نه ويوښته !

۳۴ - پر ژوند پېښبو که د زيار په رښتيا خبرېدل غواړې - پرهرژلى نارام ژوند يې له شعرو نه ويوښته !

۳۵ که په مينه کې د يار ستي شوې زياره - د ياد ځلى به دې جوړ شي له ايرو نه

۳۶ - ګړنه څه ته وايي او په دري او لاتيني يې څه بولي ؟
۳۷ - ګړنې د مانا او رغاونې له مخې څو ډوله دي ؟
۳۸ - څرګندنه او ګړنه سره څه توپير لري ؟
۳۹ - فرازيولوجي څه ته وايي ؟
۴۰ - د ګرامري چار له مخې د ګړنې ډولونه وښياست !
۴۱ - ( له سره تېريدل ) د پورته ډولونو له مخې څه راز ګړنه ده ؟
۴۲ - يو کنايي او مجازي مانا لرونکی ويی او ګړنه سره څه توپير لري ؟

# د پښتو يې بشپړېزه

۱- د ناليږند کړسته (۸۹ -۹۱ مخ ) د دوه گونو( تېر مهالو او وسمهالو) او بيا يووسنوو او غځيدلو ډولونو په لړ کې دا وروسته زياتون پامور دي:

۱ ) د وسمهالي ستې توك (- ېږ- ) په يو نيم کړکې غورځي او له ولي سره برابرېږي. يا په بله وينا . دغه کړونه غبرگې ستې لري. لکه: پاځېږم- پاځم، رسېږم- رسم، خوځېږم- خوځم، ښورېږم- ښورم، ارمانېږم-ارمانم، رپېږم-رپم، رېږديږم- رېږدم، لړږديږم- لړږدم، رغېږم-رغم....

۲ ) "تل -" يايې موندې ښه" ت -" تېر مهالي ساده سته له مورفو - فونيميکي بدلون سره سمه په وسمهال کې له ځ - سره همغاړې کېږي، لکه: تلم - ځم ، پر تلم يا (و -) پر تم - پر ځم ( د اندړو په گړدود کې د پر ځېدم يا وپرځېدم پر ځای )، (و-) پرتلم يا (و-) وتم وځم، پرېوتم - پرېوځم، ننوتم ننوځم. کښېوتم-کښېوځم، جاروتم - جاروځم ......

په ختل. کوتل (حلالول)، متل ( متياز کول ) او ښايي يو نيم بل ورته کړ کې بيا د تېر مهالي ستې وسمهال انډول " ژ " راځي، لکه په ( و - ) ختم - ( و - ) خېژم. (و -کوته - (و - ) کوژم، ( و - ) متل ( و - ) - ميژم کې. " کتل - کړ بيا په وسمهال کې " ليدل ". "وينل" "گورل " يا " کسل " له ځان سره انډولوي، که څه هم کېدای شي. همدا وروستی انډول يې همرېښنه اوسي، يو نيم گړدود . لکه وزيري هغه يې په وسمهال کې هم د کتم، کتي .... په ډول هم گردانوي.

"تتل " " يا" رتل"، " ترتل " ... خو په يو مخيز ډول په تېر او وسمهال کې بشپړ اوړون لري. کومه ليکدودي شخړه چې د "ز" او "ځ" په اړه رامنځته کېږي، څخه نا څه د پورتنيو بېلگو له مخې سپيناوی موندلا شي.

۲- کمزوري ځانگړي نومځري( ۶۷ مخ ) په يو لړ غونډلو کې همزمان په څېرمه توگه د کمزورو تولنو مځرو دنده هم پر غاړه اخلي، لکه: بستره "مې" جوړه کړه= "خپله" بستره "مې" جوړه کړه = ما خپله بستره جوړه کړه.

ډوډۍ دې وخوره ؟ = " خپله" ډوډۍ "دې" وخوره ؟ = تا خپله ډوډۍ وخوړه ؟ "يې" او يو نيم بل ځانګړې کمزورې کېدای شي، په يوه غونډله کې د کړند او کړي دواړو استازي وکړي، لکه: پلوشې مورته ورغله اويوه ډالۍ "يې" ورکړه.

مګر دا چې په ځېنو منځنيو ګړدودو کې دواړه ډوله کمزوري نومځري خوا پر خوا کارول کېږي. دومره معياري ارزښت درلودای نه شي، يوه دا چې غونډله پېچلې کوي او بله دا چې د ټولو وګړو او ګڼو لپاره بشپړ او روڼ نه لري او له دې سره يې د ګډون (التباس) کېدون هم شته، لکه په دې غبرګه غونډله کې: د نارنج مانۍ په اړه مې اورېدلي وو. خو تصوير او انځور "مې يې" لا تر دې دمه نه و ليدلی (ګوربت، يوويشتمه ګڼه ۴۹ مخ). د ننګرهار خواته دغلته د دويم کمزوري (تولنومځري) پر ځای "ورته" کاروي چې يو څه غوره ګڼل کېدای شي، لکه: ... انځور "مې" "ورته" لا تر دې دمه نه و ليدلی. همداسې (درته، راته) هم کارول کېږي، خو بيا هم کره نه ارزول کېږي، بلکې د دې اړتيا پېښېږي چې له اړوندو غبرګو کمزورو نومځرو څخه يو پر غښتلي بدل شي.

۳- پښتو د انګرېزي ناټيکنو مځري يا مبهم ضمير (۹۳ مخ) "one pl. ones " سيده انډول نه لري، لکه:

| | |
|---|---|
| دا ښه دی. | This is the nice one . |
| دا ښه دي | These are the nice ones. |

پارسي يې په وړاندې بيا د درېيم يو ګړي وګړي (مفرد غايب) ناټيکنو مځرى كاروي، لكه:
اين خوبش است. يا : اين از خوب هايش است.
له همدې کبله " د کابلی " پښتو والاهم د پارسي (- ش) تر اغيز لاندې داسې وايي:
ښه يې دی، يا : ښه يې دي. يا هم د " دا" له ملتيا سره سره:
دا ښه يې دی، دا ښه يې دي.

۴- کله کله پښتو د انګريزي ناټيکنو مځري (۷۶ مخ ) "it" او جرمني "es"... په وړاندې د "دا" پر ځای د درېيم وګړي کمزوري ناټيکنومځري "يې" پر کار اچوي، لکه په داسې غونډله کې:

| | |
|---|---|
| نن " يې" وروي. | It rains to day. |
| (= نن اوري) | Es regent heute. |

په ګړنيز يا څرګنديز غونډ (Idiomatical or expressional phrase) کې، لکه: ډېره يې توده مه خوره! Take it easy.

Wie geht es?

څنګه تېرېږي ؟ څنګه يې؟

دا څومره وخت نيسي؟ How long does it take?

Wie lange geht es?

۵- په پښتو کې د پارسي، انگرېزي، جرمني او نورو ډېرو ژبو په توپير هېڅکله يو لېږند (متعدي) کړ( ۹۴ مخ ) بې کړيه( مفعوله) راتلای نه شي،

لکه:

پارسي: او مينويسد.

انگرېزي: He writes.

جرمني: Er schreibt.

خو لکه څنگه چې يو نيم پښتون يې د کابلي پښتو په پېښو همداسې را پښتو کوي: دی يا هغه ليکي. کره پښتو: دی يا هغه يو څه ليکي يا ليکل کوي.

## ۶- بېلابېل وييکي (۱۳۳ مخ )

۱) " هن" د " دا دی " او پارسي" اينك" په مانا د " گوندې، گنې، کاشکې... غوندې د چارټاکو کړونو ورته چار پر ځای کوي، لکه:

"هن" ما خو درته وويل چې ما ستا لاره کتله

اوس ته وايه رښتيا چې تا د چا لارې کتې

۲) چك ( په زورکي) يو بل وييکی (Interjection) يا هيجاني غږ ( مخ).دی چې په ځينو گړدودو کې د "نه" ځواب په توگه کار ېدنگ لري، لکه:

يو پوښتي: ډوډی دې وخوړه؟

بل يې ورغبرگوي: چك!

۳) "کنه" د ويناو ابنتي او تينگار وييکي په توگه کارول کېږي، خو د نورو وييکو په توپير د غونډلی په سرکې نه، بلکې په پای کې راځي.

د رديف په توگه:

توره چې تېرېږي، خو گوزار لره ((کنه))

زلفې چې ولول شي،خو خپل يار لره ((کنه))

که جلا وليکل شي، کړولي جاج "وگرنه" ښندي چې د "گنې" يوه مانا همداسې ده او بله يې له "گوندې" سره برابره ده.

۴) "هډو" کوزه خوا زياتره د "هېڅ" کړول پر ځای کارول کېږي، لکه:

گنډير "هډو" سړی نه دی.

له "هېڅ" سره يوترېښتي تينگاري کړول رامنځته کوي، لکه:

دلته "هډو هېڅ" اوبه نشته.

د ناټيکنو مځري "څه" په ملتيا هم ټينګاري کړول رامنځته کوي، لکه:

دلته "هډو څه" اوبه نشته

## ۸- چارټاکي کړونه يا Modal verbs (۱۵۷مخ):

۱) "توا" د (ته وايې) يا (ته به وايې) او پارسي "ګويا" د "ښايي" "بويه، بايد"... غوندې له کړ رغنده ټوکونو، يا په بله وينا چارټاکو کړونو څخه شمېرل کېږي او له "ارکاييك" والي سره سره په کندهاري ګړدود کې په همدې ښه ژوندی پاتې دی چې د غبرګغونډلې د لومړنی (څېرمه) غونډلې په توګه د دويمې (آرې) هغې پرتليز او ورتني چار او جاج ورټاکي، لکه دښکارندوی په بوللـه (پټه خزانه ۵۲ مخ) کې:

... ته وا، راغله له ختنه کاروانونه.

۲) "ګڼه" هم زياتره د "توا" په څېر جاج ښندي او کله هم د "ومنه، باور وکړه، که نه، ګڼې" په مانا کارول کېږي، لکه د خوشال په دې شعر کې:

... ګڼه، ما به د مغول ګرېبان پاره کړ

۳) "ګورې!gwáre" د پارسي "زنهار، هشدار!" دانډول په توګه يوبلنوييکی (interjection) دی چې هم د ګواښنې (اخطار، جاج ښندي او هم د "پام!" يا "پام کوه!"، لکه:

ګورې، ما درته څو خله وويل!

ګورې، ناروغه نه شې!

۴) "پام!" د "پام کوه!" د لنډيز په توګه د "ګورې" غوندې دګواښنې او سپاربښتنې جاج او چار پر ځای کوي.

۵) "پرې" يا "پرېږده!" د "اجازه راکړه" او "هيلې" جاج او چار را اخلي، لکه د استاد حمزه شينواري په دې شعر کې

پرېږده، چې لفظونه د دروغو دې رښتيا کړم

ته را ته سبا سبا کوه زه به يې ګا کړم

(پای)

# نیولیك

(پایځوړ : د ژبپوهنې بنسټونه او غږ پوهه)

سرلیك | مخگڼه
--- | ---

مخگڼه

# ۱- څپرکی

# د ژبپوهنې بنسټونه

**۱-۱ : ژبه ( *Language* ) :**

د غږېزو او اوريزو پيلامو (سېمبولو) يو داسې کسبي او اتفاقي غونډال (سېسټم) دی چې د يوې ټولنې وګړي يې يو له بله د پوهولو او راپوهولو لپاره پر ژبه راوړي او يو بل ته يې اوروي .

يا په بله وينا :

ژبه د يو لړ اختياري وييزو او اوريزو سېمبولونو ( پيلامو ) يوه ټولګه ده چې هر يو سېمبول يې زموږ د يوه ذهني انځور ښکارندويي کوي .

دا انځورونه د انساني چاپېريال او مهال ځيزونه، ځانګړتياوې، پېښې او کړه وړه رااخلي . په دې توګه ژبه د انسانانو ترمنځ د پوهولو راپوهولو يوه آله او وسيله ګرځي .

## ۱-۲ : ژبه څنګه لومړی ځل منځته راغلې ده ؟

ژبه له ټولنيز ژوند سره سمه منځته راغلې ده . داسې چې د ټولنيز کار په بهير کې لومړی د نغوتو او اشارو او ورپسې د جړو پړو ولوليزو او هيجاني غږونو په بڼه غږېدا پيدا شوې او بيا له هغو څه د پرله پسې ټولنيزې اړتيا په توګه ژبه منځته راغلې ده . په دې توګه د نړۍ د بيلا بېلو لومړنيو (ابتدايي) ټولنو ترمنځ بيلا بېلې ژبې رارغبدلې دي . په دې مانا چې د نړۍ ژبې هم د بيلا بېلو انساني ټولنو يا توکمونو غوندې يوه ګډه آره ( منشا ) نه لري .

ژبه د انسان د فکري بشپړتيا تر هرڅه زياته ځلانده او نژدې پيلامه ده . يا په بله وينا، ژبه د پوهاوي راپوهاوي هغه سېمبوليکه غږېزه - اوريزه وسيله يا اوزار دی چې ودې يې بشر د انسانيت

بشپړتیایي پړاو ته رارسولی او د لیك ایجاد یې بیا د مدنیت او څخابه پرمختیایي پړاو ته، تر دې چې تر دغه ایجاد ترمخه بشري تاریخ تر تاریخي پړه بهر ( ماقبل تاریخ ) بلل کېږي.

**۱-۳: اندو ژبه** : د انسان فکر چې هر ډول وي، د غږېدلو یا لیکلو او یا انځورولو پر وخت همېشه او هرومرو له وییو ( کلمو ) سره ملګري وي . ویي (کلمې) د اندونو ( فکرونو ) مادي استر ګڼل کیږي. شعور یوازې د دغه مادي استر په مرسته راتلونکو توکمونو ته د لېږد وړ دی .

انسان یوازې د وییونو په مرسته وکړای شول او کولای شي، خپل اندونه او د څیزونو او مادي پدیدو، موخو او لیدتوګو آګاهانه غبرګونونه ( انعکاسات ) ثبت کړي، له خپلو همځېلو سره ازمېښت او الواك ( نظر ) وونجوي، د یوې موخې لپاره پر ټولنیز او ګډ کار لاس پورې کړي او د یوه پښت یېبرې ( بریاوې ) راتلونکي پښت ته ورولېږدوي . ژبه د ځانخبرۍ یا شعور په وده او د مجرد او تیوریك اند په راپیدا ښت کې ستره اغېزه لري .
د ژبې پیدا ښت او بشپړتیا چې د انسان ټولنیز کار دی، د انساني شعور له بشپړتیایي بهیر سره نه شلېدونکي اړیکي لري .

د زېږند کار په بهیر کې بشر څیزونه او پدیدې او ګډ لاملونه ( عوامل )، خوځښتونه او اوښتونونه نومولي دي او جوت او مجرد جاجونه ( مفاهیم ) یې منځته راوړي او په دې توګه یې خپل شعور بډای کړی او بشپړ کړی دی له همدې کبله وایو :
ژبه له آره له وییونو نه رغېدلې ده چې هر یو د یوې بهرنۍ غږیزې بڼې او یوې مانیزې منځپانګې لرونکی دی . یوازې تش غږونه له مانا پرته ویي او ژبه کېدای نه شي . د عیني واقعیت انګازه د وییونو په مانا کې موندای شو او دا مانا د ویي په غږونو کې ځای نیسي او خوندي کېږي او د ټولو همژبو وګړو لپاره اړوندویي ټولنیزه او ټولپوهیزه ( عام فهمه ) مانا پیدا کوي چې د هغې په وسیله خپلې ګروهې او موخې څرګندوي او نورو ته لیږدوي .

په لنډ ډول درې څیزه او کړنه – کار، اند او ژبه د ټولنیز زېږندویه کار پر بنسټ هممهال منځته راغلل او بشپړتیایې وموندله . دغه درې واړه یو له بله یو نه شلېدونکې یووالی لري په دې ترڅ کې کار د دغه دیالکتیکي یووالي بنسټ جوړوي .

## ۱-۴: ژبه یوه ټولنیزه او دنده یې پدیده ده

ژبه د نښو، پیلامو ( سېمبولو ) د یوه غونډال ( سېستم ) په بڼه یوازې انسان پخپله ټولنه کې زده کوي چې د هغې په مرسته خپل اندونه (فکرونه)، غوښتنې، انګېرنې او ننګېرنې ( خیالات او إحساسات ) نورو همځېلیو ( همنوعانو ) ته څرګند کړي او په دې توګه سره د پوهولو او راپوهولو اړیکي وساتي . د همدې له مخې وایو چې :

ژبه یوه دنده یي ( کسبي )، ترونی ( اتفاقي ) ټولنیزه او مدني پدیده ده، نه فطري او طبیعي او عضوي چې مخکې له مخکې د انسان په خټه کې اخښلی چار اوسي، لکه سهیز، ساییز او وژیز (هضمي، تنفسي او عصبي ) جوړښتتونه او د هغو چارو نه . دا چې موږ د خپلو غړو، لکه د (ژبې، اووریو، غاښونو، شونډو، تالو، ستوني، مرۍ، سږو او داسې نورو ) په وسیله غږېږو او په دې توگه یې غږیز، یا ژبني غړي بولو، دا مانا نه لري چې گوندې دغه غړي له آره د همدې دندې لپاره جوړ شوي دي، بلکې هر یو ځانته جلا - جلا بیولوجیکي او طبیعي دندې لري، لکه خوراك، څښاك، سااېستنه او داسې نور. او ژبنۍ دنده یې څېرمه او ضمني دنده بلل کېږي، هغه هم په کسبي ډول په کړاو (تمرین) سره.

## ۱-۵: ژبنۍ چار ( عملیه ) څنگه ترسره کېږي ؟

کله چې یو څوك (غ ) وغواړي. یو څه ( څ ) پر ژبه راوړي، لومړی یې په مغزو کې یو غږ انځور ( ځ ) جوړېږي، چې یو روحي چار دی، ماغزه غږیز غړي پر کار اچوي چې دغه ( ځ ) د سا هوا او بیا بهرنۍ هوا په مرسته د غږ پر څپو بدل کړي . په دې توگه د هماغه غوښتنې یا موخې ( څ ) ذهني غږ انځور ( ځ ) د ویلو او اورېدلو وړ گرځي او گړنی یا ژبنی چار ترسره کېږي . نو که غږېدونکی (غ ) غواړي، هماغه ( څ ) بل یو چا ( ا ) ته څرگند کړي، په بله وینا ( ا ) د ( غ ) خبرې واوري، همدا چار په سرچپه ډول پیل وپای مومي :

له غوږ نه یې مغزو ته د ( ځ ) فزیولوژیکي لېږد او بیا یې په مغزو کې له ( څ ) سره د ( ځ ) روحي سازښت . مانا دا چې که اوریدونکی ( ا ) پر خپل وار هم وغواړي له غږیدونکی ( غ ) سره وغږېږي، نو د ده ( ا ) له غوږه د غږیدونکی ( غ ) تر غوږ پورې به هماغه لار وهي، لکه پاس چې څرگنده شوه، نو په دې توگه دا سکالو یا خبرې اترې په لاندې ډول انځوروو :

ځ



## ۱-۶: آر او رښتیني ژبني توکونه

د ژبې آر او رښتیني توکونه هماغه غږونه او غږ غونډونه دي چې څرگندني، لېږدني ( مخابروي )، شعوري او سېمبولیکه ځانگړتیا ولري. پارنغږونه یا هیجاني چغې که څه هم څرگندني کېداې

شي. مګر سېمبوليك ورته ويلای نه شو. د درد يا خوند، خواشينی يا خوښی ... غږونه او دغه راز د انګيوييو (طبيعي اصواتو) پېښې سوچه شعوري نه شي ګڼل کېدای، بلکې يوازې د ټولنې له خوا په "اتفاقي" ډول د يوه څه څرګندولو لپاره ټاکل شوي دي. که چېرې يو، يووستوی غږ د ژبنی توك ځانګړتيا ولري، هغه به هرومرو د دوو يا څو غږونو لنډيز وي. لکه: پښتو (آ)، يا انګليسی (a) چې د (يو) مانا ورکوي او هغه هم له آره د an (= one) لنډيز ګڼل کېږي.

## ۱-۷: ژبنی څېړنه د غږونو په څېړنه پيل کېږي.

### غږ او ژبه، غږ پوهنه او ژبپوهنه:

ژبپوهان په ټوليز ډول ژبه د داسې مجردو او ذهني نظامونو د يوه پېچلي غونډ (مجموعې) په ډول راپېژني چې د انساني مغزو له زېرندو څخه ګڼل کېږي او د وګړو ترمنځ د اړيکي ټينګولو لپاره په کارېږي.
د دغې پيژند (تعريف) له مخې ژبه يوه مانيزه او ناتوکيزه (غېرمادي) پديده ده. له بلې خوا دا چې غږ هوايي څپې دي، نو مادي ګڼل کېږي. له دې کبله وايو: غږ يوه توکيزه ښکارنده (پديده) ده چې د غوږ له لياري ننګېرل کېږي او نه شي کېدای چې د ژبې د ذهني نظام يو توك وشمېرل شي. له دې ټولو څرګندونو سره غږ د يوه داسې توك په توګه له ژبې سره اړيکی پيدا کوي چې ژبني نظامونه پکې راڅرګندېږي. په دې ډول ويلای شو چې: د غږ او ژبې ترمنځ هماغه ډول اړيکی دی، لکه د يوې موسيقي آلې د يادښتونو (نوټونو) د غونډ (ټولګې) او د هغې د ترسره شوې بڼې ترمنځه، په بله وينا، غږ د ژبې د مانيزو (مجردو) ذهني نظامونو لپاره يوه ننګېرلې (محسوسه) توکيزه او ګړنی ننبه ده.

څنګه چې د ژبپوهنې په څېړنو کې د ژبې د مجردو او ذهني نظامونو پوهېدنه په عملي توګه په ژبنی ماده کې، د دغو نظامونو له ښکارندويی پرته کيدونې نه ده، نو هرومرو ژبنی څېړنې د ژبې د غږونو له څېړنې سره پيل کول په کار دي. له دې کبله غږ پوهنه بايد د ژبپوهنې د هغو سريزو په لړ کې وشمېرل شي چې لوستنه يې د ژبنيو پلټنو لومړی آړ (شرط) بلل کېږي.

پر دې سربېره څنګه چې په غږ پوهنه کې د غږيزو پلټنو ډګر پر هغه ډلې غږونو پورې راچاپېرېږي يا محدوديږي چې يوازې په ژبه کې پر کار لوېږي او ناژبني غږونه له آره په غږ پوهنه کې تر څېړنې لاندې نه راځي. بايد وويل شي چې غږ پوهنه په ژبپوهنې پورې تړلې پوهه ده. په دې ډول ژبه يوه يوازينی ذهني پديده ده، له دوو بيلا بېلو مادي څرګندونو سره چې يوه وييزه بلل کېږي او بله اوريزه.

## -۸: د غږ او ليك، يا ژبې او ليك ترمنځ اړيکی

ليك هم لکه غږ د يوه داسې توك (مادې) په توګه چې غږيز نظامونه راانځوروي، له ژبې سره اړيکی پيدا کوي . د همدې ټکي له مخې له ليك سره د ژبې اړيکی هماغسې يو اړيکی دی، لکه د غالۍ دنقش او د هغې داوبدلې بنې ترمنځه اړيکی . مګر دا اړيکی له هغه اړيکي سره توپير لري چې د غږ او ژبې ترمنځ شتوالی لري . ځکه د غږ او ژبې ترمنځ اړيکی سيده او بې واسطه دی، هغه هم په دې وروسته لاسوندونو ( دليلونو ) :

۱ - د هر ډول ليك تر نوښتنې ( اختراع ) له مخه، ژبې په سلونو او ښايي په زرونو کلونو له غږيزو نښو څخه د خپل يوازيني مادي څرګند ځای په توګه کار اخيست، په داسې حال کې چې د ليکنيو نښو ( سېمبولو ) کارونه څه ناڅه يوه نوې پديده ده چې تاريخچه يې تر پنځو زرو کلونو څخه تېرې نه کوي .

۲ - ليك د ژبې د غږيزو نښو د ليکنۍ لپاره رااېستل شوی او له همدې کبله، لکه چې، له مخه وويل شول، ليکنۍ نښې د غږيزو نښو له لارې په ناسيده ډول له ژبې سره اړوند يږي.

کوم لاسوندونه چې د دغې خبرې د پخلي لپاره وړاندې کېدای شي، دا دي چې هرکله په يوه ژبه کې ستر غږيز بدلونونه رامنځته شوي دي، د هغې ژبې د ليکنيو نښو بدلون ته هم اړتيا پيدا شوې ده . که څه هم دغه کار په ډېرو ژبنيو ټولنو کې له خنډونو سره مخامخ شوی دی . چې غوره بيلګې يې انګليسي او پرانسي ليکنې سېستمونه دي او هغه دا چې يې ليکونوله ژبنيو بدلونو سره هيڅ کوم بدلون نه دی موندلی او ستونزې يې رامنځته کړې دي، په نورو خپلوانو ژبو لکه الماني، اسپانيي، ايتاليي، روسي، بلغاريي ... کې بيا څه ناڅه له ژبنيو بدلونونو سره ليکنې سمونونه هم راغلي دي او تر دا منځ واټن کم شوی دی . خو په سرچپه ډول داسې هېڅکله نه دي شوي چې ليکنی بدلون پر ژبني غږيز نظام کوم اغېز ښندلی وي. له دې کبله ويلای شو چې ليکنۍ نښه د ژبنۍ غږيزې نښې لپاره ليکنۍ نښه ده . يا په بله وينا ، که غږ د ژبې ښکارندوی دی، نو ليك د غږ ښکارندوی دی .

۳ - د ليکنيو نښو ( تورو ) پر کار اچولو لپاره کېدای شي، د انسان له بدني غړو پرته له نورو وسيلو څخه هم ګټه واخېستل شي . په داسې حال کې چې د غږيزو نښو کارونه له غږيزو غړو پرته کېدون نه لري . له دې کبله بې ځايه نه ده چې ومنو، د ژبنيو غړونو کارونه ډېره اسانه او بې سرخوږه ده او لکه تورې په کاغذ ، قلم او نورو وسيلو پورې تړلې نه ده . نو بايد غړونه ترليك له مخه او پخواني وي . بله دا چې لومړني انسانان د لوښو ( ابرازو ) له پلوه تل په تنګسه کې ول او تر ليکه ورته غږېدا اسانه وه، که څه هم پخپله ژبه هم يو لوښی ګڼل کېږي او د نورو لوښو له جوړېدنې او پرمختګ سره يې سمه رغېدنه او پرمختګ موندلی دی .

۴ - غږيزې نښې د ژبنيو نظامونو په ځرګندونه کې زياتې دقيقې دي او په دې برخه کې داسې وړتياوې يا امکانونه لري چې د لنډو تنګو ليکنيو نښو له هغو سره په هيڅ ډول د پرتلې وړ نه دي . همدا خبره ده چې د ساري په توګه يوه ليکلې غونډله ( جمله ) په هره ژبه کې کېداى شي، په بېلا بېلو جولوله بيلا بېلو ماناوو سره ولوستل شي . په داسې ډول هره غونډله چې ويل کېږي، يوازې په يوه بڼه ليکل کيداى شي . نو په دې توګه وينا په هره ژبه کې تر ليکنې زياته ژوره او دقيقه ده .

له همدې لامله ژبپوهان په خپلو څېړنو کې وينا ته زيات ارزښت ورکوي چې له غږيزو نښو څخه جوړه شوې ده . او له ليکنې څخه تروسې - وسې ډډه کوي چې له ليکنيو نښو څخه رغېدلې ده . بيا هم دا لاسوند ( دليل ) دى چې په ژبپوهنه کې د ژبې ګړنى اړخ تر ليکنې هغه غوره دى او د ژبې ژوندى بڼه ګڼل کيږي . او په دې لړ کې د يوې - کره غږ پوهنې، پښنويې او ليکلارې تر ټولو باوري او اړينه سرچينه ده .

۵ - همدا اوس په نړۍ او بيا په ځانګړې ډول زموږ پخپل هيواد کې لاډېرې ژبې شته چې ليک نه لري او د ژونديو ژبو په توګه د خلکو ترمنځ ويل کېږي او شتمن ګړنى ادب لري، لکه نورستاني، دردي او يا پاميري ژبې .

**۱-۹: توری ( حرف )** : هغه ليد وړ انځور دى چې د يوه اواز ( ← ) يا څو اوازونو ښکارندويي کوي .

**۱-۱۰: ابېڅې يا الفبې ( الفبا )** : د هغو ټولو توريو ډلې ته وايي چې د يوې ژبې د ټولو اوازونو انځورنه کوي . بشپړه ابېڅې هماغه ده چې د هر يوه اواز لپاره يوه نښه ( توری ) ولري . دغه راز ابېڅې ته غږيزه يا فونيميکه ابېڅې وايي .

**۱-۱۱: ليکدود** : املا يا آرتوګرافي د يوه ټاکلي الفبايي سېستم په چوکاټ کې دننه د يوې ژبې د وييونو ( کلمو ) کښنګ، ليکدود او ډول ته وايي . د ساري په توګه په اوسني پښتو الفبايي سېستم کې ځينې توري د يوه ويي په هره برخه کې له بل توري يا توريو سره يوځاى ليکل کيږي او ځېنې پکې په نيمګړې توګه يو له بل سره نښلول کېږي . سم ليکدود هماغه دى چې تر کېدنه پورې د يوې ژبې وييونه داسې انځور کړاى شي چې په لوستلوکې يې تېروتنې ونه شي . په بله وينا ، د توپير او نه ګډون ( عدم التباس ) آر ( اصل ) پکې پرځاى شي. ليکدود که څه هم تر ژبې زياته تړوني ( قراردادي ) بڼه لري او څنګه يې چې اړوند ژبپوهان او ليکوال وټاکي، هماغه د اړوندې ژبې ليکدود بلل کېږي، مګر لکه څنګه چې ژبنۍ نښې ( سېمبولونه ) د توپير او نه ګډون پربنسټ منځته راغلي دي، نو په ليکدود کې هم دغه آر ( اصل ) پرځاى کول اړين دي .

## ۱-۱۲: ژبه او ګړهار - ( Language ( Langue ) and Speech ( Parole )

لکه څنګه چې په ( ۱-۱ ) ( ۱-۲ ) او ( ۱-۳ ) کې وویل شول، ژبه د انسانانو ترمنځ د پوهاوي یا مخابروي وسیلې په توګه د تړوني (قراردادي) غږیزو او اوریزو نښو یا سېمبولونو سېستم دی . مګر د نوې ژبپوهنې استادان چې سوسیور یې په سر کې دی، تردغه نامه لاندې دوې نومونې سره توپیروي. یوه پخپله ژبه د یوې ګوښې (مجردې) پدیدې او بله د ژبنې چار (ګړهار) په توګه، په دې ډول :

ژبه یا لنګویج ( لانګ ) هغه انساني اړتیا ده چې د هغې په مرسته غږېږي .

او وینا ، ګړهار - سپیچ ( پرول ) ګړنی چار ( عملیه ) او جوته ( مشخصه ) څرګندونه ده ( اولرینس ۱۰۷ ) .

ماریوپای ( ۱۶۰ ) وینا یا پرول داسې راپېژني : په یوه ټاکلي اکر کې د یوې ټاکلې یو ګړې ( فردی ) ژبې کارونې ( استعمال ) ته وینا یا پرول وایي .

## ۱-۱۳: د وینا توکونه - اجزای کلام - Parts of speech

هغه ټولی ( کټیګوری ) دي چې په هغو کې د یوې ژبې ویېونه ( ← ) ډلبندي کېدای شي . څه که دغه ډلبندي په غونډله ییزه رغاونه ( ← کې د هغې د چار (فنکش) له مخې وي او یا د هغې د بڼې، اوړون ډول ( طرز ګردان ) او داسې نورو له مخې ( ماریو - پای - ۱۶۱ ) . په وینا توکیو کې د غونډ له توکو په توپیر ناسېمبولیك توکونه، لکه ولولیز یا هیجانی او طبیعي غږونه یا انګینومونه ( ۱-۵ ) هم رااخېستل کېږي .

## ۱-۱۴: ګړدود - ګویش یا لهجه - Dialect : د یوې ژبې هغه ځانګړې بڼه ده چې په یوې ټاکلې جغرافیایي سیمې، تاریخي پېر ( دورې )، ټبر یا ټولنیز پوړ (قشر) او یا پاړکي (طبقې) پورې اړه لري . د نړۍ هره ژبنۍ کورنۍ له آره له یوې لرغونې مورنۍ ژبې څخه منځته راغلې ده . داسې چې د هماغې مورینې ژبې بېلا بېل ګړدودونه د مهال او چاپېریال له بدلون سره پر بېلا بېلو خپلواکو ژبو اوښتي او په دې ډول یې یوه ژبنۍ کورنۍ رامنځته کړې . د هرې کورنۍ دننه بیا نورې ګړدودي ډلې ټېلې یا ځانګې او ښرانګې وده وش مومي او په پای کې ژبني دریځونه راخپلوي .

## ۱-۱۵: کره یا معیاري ګړدود: که د یوې ژبې د ټولو ګړدودو له منځه یو ګړدود د ټولنیز، وټیز، فرهنګي، سیاسي، کولتوري او سیاسي دریځ د لوړوالي له پلوه د دغې ژبې په ښکارندویۍ د ورځني لیکني کارونګ لپاره وامرل (انتخاب) شي، لیکنی، ادبي، رسمي، ټولیز یا په لنډ ډول یو یوازینی کره ګړدود ګڼل کېږي او د دې په وړاندې نورې بڼې ناکره ګړدودونه . که څه هم دا

ګړدودونه د کره ګړدود په پراخوالي او بشپړوالي کې بې برخې نه دي . د زمانې په تېرېدو سره کره ګړدود د اړوندې ژبې تر هر یوه ګړدوده زیات بشپړ او بډای کېږي . نور ګړدودونه ورو - ورو تر اغېزې لاندې راوړي او په پای کې یې نشتوي، یا په بله وینا ، هغه ټول په خپل ځان کې ځایوي او بیرته یو تقریبي ګړدودي - ژبني یووالی منځته راوړي، ځکه هغه مهال بیا ګړدودي بریدونه (وییز، ګړني، ګرامري او لېکزیکي توپیرونه ) پخپله ړنګېږي او بیرته یوه ټولیز ګډ سېستم ( ژبې ) ته اوړي.

د پرانسې نومیالي ژبپوهاند خبره، نن سبا ګړدودي توپیرونه د یووالي خوا ته روان دي او تر وېش یا انشعابه یې د یووالي کېدون ډېر دی . ( اندرې مارتین ۵-۱۴ ) .

رښتیا هم اوسنی علمي او تخنیکي پرمختګ د دې لامل شوی دی چې نه یوازې د یوې یوازینۍ ژبنۍ ټولنې د غړو ترمنځ، بلکې د ټولې بشري نړۍ د اوسېدونکو ترمنځ اړیکې ټینګ شي او د دې پر ځای چې دا راز توپیرونه زیات شي، په سرچپه ډول ورو ورو لرېږي .

## ۱-۱۶ : زنځیري یوونونه ( واحدونه )

هغه دي چې د ګړهار په بهیر کې پرله پسې او پیوست راځي، په بله وینا : که ګړهار د خپلې لوښې له مخې یو زنځیر وګڼو، نو دغه راز یوونونه پکې د بېلا بېلو کړیو په څېر پرله پسې او پرله پېیلې راڅرګندېږي او هر یو یې د جلا غړ په نامه بلل کېږي . له همدې کبله دغو غړونو ته زنځیري یوونونه ( واحدونه ) هم ویل کېږي ( حق شناس ۶۹ ) .

## ۱-۱۷ : نازنځیري یوونونه

هماغو ( رنګارنګیو ) ته وایي چې بې له ژبني آر ( پرله پسیوالي ) منلود غړونو، وییونو او نورو ژبنیو ټوکونو ( اجزاوو ) ترمنځ پېښېږي او په دې توګه د مانا بېلا بېل تیاره اړخونه څرګندوي. یا په بله وینا ، داسې ژبني یوونونه ( واحدونه ) دي چې د ګړهار په بهیر یا زنځیر کې جوت ځای نه لري، بلکې کولای شي، خپل ځای وونجوي ( عوض کړي ) او د ځانته جلا ( مستقلو ) زنځیري یوونونو په شمار کې را نه شي، لکه : فشار یا خج، اهنګ، بیلتون او پیوستون ( فصل ووصل )، زیروبمي، وزن یا ریتم او داسې نور .

## ۱-۱۸ : اواز، واج = واک - *Phoneme*

د ژبې تر ټولو کوچني غږیز توک ( عنصر ) ته وایي چې پخپله کومه مانا نه لري، مګر په مانیزو توکونو (وییونو) کې مانیز توپیر پېښوي، د ساري په توګه : ( ت ) په پښتو کې یو اواز دی چې یو

ویی یې لکه ( تور ) له یوه بل ویي، لکه ( پور ) څخه توپیر کړی دی . پښتو له ۳۶ اوازو څخه جوړه ده . اواز د زېږ له مخې لاندې ډولونه لري .

### ۱-۱۹: خپلواك - ویل - *Vowel*

هغه اواز ته وايي چې راپیدا کېدل یې بې له کوم ستر هوايي بندیزه ترسره کېږي، لکه : ا، و، ی ... پښتو ۷ خپلواکه لري .

### ۱-۲۰: بېواك - همخوان - کنسوننت - *Consonant*

هغه اواز ته ویل کېږي چې له راپیدا کېدو، یا په بله وینا، له خولې څخه د راوتو پروخت د سا هوا له بندیز سره مخامخېږي، لکه: ب، پ، ت، ټ، گ، ك .... د پښتو بېواکو شمېر ۲۹ دی .

### ۱-۲۱: نیمواك - نیم واکه - Semi Vowel

هغه اواز دی چې د خپلواك او بېواك دواړو دنده پرځای کوي او د دواړو ځانگړتیاوې لري . یا په بله وینا ، که په یوه څپه ( ۱-۲۹ ) کې د زړې یا هستې (حرکت) کار ورکړي، د خپلواك بڼه غوره کوي، که نه د بېواك . لکه منځنی اواز په بېل ( bel ) او بیا ( byā ) کې، یا لکه ( و ) په گل gol او gwəl کې . پښتو نیمواك اوازونه ( و-w ) او ( ی -y ) دي .

### ۱-۲۲: غبرگغږ - واکه مرکب - *Diphthong*

هغه ته وايي چې د خپلواك او نیمواك په ملگرتیا منځته راځي او لکه یوستووی اواز یووار پتلیز له خولې راوځي د یو غبرگغږ لومړی ټوك یو خپلواك او دویم ټوك یې یو نیمواك اواز وي، لکه زوروالہ ی ( ay ) او زورکي والہ ی (əy) اوداسې نور.

### ۱-۲۳: بلغږ - واجگونه - *Allophone*

د یوه یوازیني اواز ( ۱-۱۸ ) بېلا بېل ډول یا بڼې ته وايي چې د راز - راز څپو په بېلا بېلو برخو (پیل - منځ - پای ) یا د ځېنو اوازونو په گاونډ کې رامنځته کېږي، لکه : ( ب ) چې په ( بر ) کې یو راز ( سایيز ) ویل کېږي، په ( غبرگ ) کې بل راز (لږ سایيز )، په ( خوب ) کې بل راز ( ناسایيز ) او په یوه تړلي یا بېواکه غونډ ( کلستر ) لکه ( برم ) کې یو ډول ( لږ سایيز ) او په وازه څپه کې، لکه ( به ) کې بل ډول ( سایيز ) . په دې توگه یو یوازینی اواز ( فونیم ) څو څو ډولونه (بلغږونه) درلودای شي .

**۱-۲۴:** ځېنې خپلواك يا واويل واز او يا ترلي بلل کېږي . واز دا مانا چې په وينگ کې يې شونډې ناگردې وازې پاتې کېږي او داسې نښنه کېږي : a (à)، è، o (ò)، u (ù) ... ترلي دا مانا چې په وينگ کې يې شونډې په روږدې توگه وازې وي او داسې نښنه کېږي : á، é، ó، ú . په پښتو کې يوازې واز è، هغه هم شمال ختيځ خواته ويل کېږي چې تش يو گړدودي ارزښت لري، لکه په ( لرگې larg è ) کې .

## ۱-۲۵: خج يا فشار - تکيه - *Accent = Stress*

هغه چار ( عمليې ) ته وايې چې د ژبنيو توکونو په لړ کې يو توك په زيات زور او شدت وويل شي . په بله وينا، خج ( فشار ) د زېږ له پلوه د هوا په فشار د بدلون د ځانگړتياوو له ترڼگ يا ترکيب، د زيروبمې له کچې يا درجې او په خپلواکيز (واولي) راکښون کې له توپير څخه منځته راځي او د اورېدنگ له پلوه زيات رساوالي ته وايي . دا مانا چې په زياته ځرگنده او رسا توگه يو ژبنی توك واورېدل شي . په هر غږيز بهير کې هغه څپه خجنه بلل کېږي چې د زېږ پروخت تر نورو گاونډيو څپو څخه په زياته کچه پورتنۍ ځانگړتياوې ولري . د ژبنيو توکونو يا غږيز زنځير د زياتوالي او کموالي له پلوه درې ډوله خجونه يا فشارونه سره توپيرولای شو :

غونډله ييز (جملوی) خج - وييز (لغوي) خج او څپيز (هيجايي) خج. لکه په ( زه پوهنتون ته ځم Zə pohəntún ta jəm- ) کې پر لنډو ( u ) خج راغلی دی چې که ټوله غونډله ( جمله ) په پام کې ونيسو، غونډله ييز خج ( فشار ) بلل کېږي . که اړوندويې ( پوهنتون ) په پام کې ونيسو، نو څپيز ( هيجايي ) خج ( فشار ) نومول کېږي، په بله وينا ، په لومړۍ برخه کې وايو، دغه غونډله (زه پوهنتون ته ځم ) د نورو غونډلو په ترڅ کې يوه خجنه غونډله ده چې په دويم ډول کې د ( پوهنتون ) ويی د نورو وييو (زه - ته - ځم) ترځنگه يو خجن ويی دی او په همدې توگه (- تون) د ويی د نورو څپو ( پو - هن ) په لړ کې يوه خجنه څپه ده .

## ۱-۲۶: زيروبمي - *Pitch*

زيروبمي له پرله پسيوالي، ډېر پېښښې ( تواتر ) او د رپږدا له پلوه له پراخوالي څخه منځته راځي . هرځومره چې د تواتر شمېر زيات وي، غږ هغومره زير- او هرځومره چې لږ وي، غږ هغومره بم اورېدل کېږي . له بله پلوه چې د رپږدا لمن هرځومره پراخه شي، غږ هغومره رسا او هرځومره چې لنډه تنگه شي، غږ هغومره نارسا اورېدل کېږي . په دې توگه غږ يا زير وي يا بم، منځنی، يو ډوله ولېدونکی يا جگېدونکی او داسې نور .

## ۱-۲۷: اهنگ - *Intonation*

اهنگ د زیروبمۍ یو ډول دی . دا مانا کله چې د ګړهار په بهیر یا اوږدو کې د زیروبمي پراختیا لمن د غونډلې ( جملې ) په کچه وي، هغه زیروبمي اهنگ بلل کېږي . اهنګ په پښتو کې ژبنی ارزښت لري . د ساري په توګه خبري او ناخبري غونډلې سره توپیر وي ؛ د خبري هغې اهنګ ولېدونکی او د پوښتني هغې جګېدونکی ... دی . ( حقشناس ۱۲۷ ) .

## ۱-۲۸: بېلتون او پیوستون - فصل ووصل یا درنګ

بېلتون او پیوستون دا مانا چې د ژبنیو توکونو په لړ یا د ګړهار په بهیرکې دوه غږه ( اوازه )، دوې څپې، دوه ګړونه، دوه وییونه، دوه غونډونه ( فقرې ) یا دوې غونډلې سره پټلیزې ( پیوستې )وویل شي او یا ناپټلیزې. یا په بله وینا ، د دغو ژبنیو توکونو په لړ کې د دوو توکونو پای او پیل سره نښتي او بې ځنډه وویل شي، یوه ټاکلې مانا ښندي او که په ځنډ او لارغې سره یوله بله جلا وویل شي، یوه بله مانا منځته راوړي. د ساري په توګه که په( باري چتك راغی)غونډله کې( باري چتك ) پټلیز ولولو یا ووایو، نو ( چتك ) له ( باري ) سره یو نوم جوړوي، که نه ( چتك ) کړول ګرځي .

## ۱-۲۹: څپه - هجا- *Syllable*

څپه هغه ژبنی یوون (واحد) دی چې یا یو خپلواك ( ۱-۱۹ ) وی او یا له یوه یا څو بېواکو( ۱-۲۰ ) څخه جوړوي او په یو ځایي ډول له خولې راوځي، لکه په (ابا) کې چې دوه زږي ( خپلواکه ) لري، لومړۍ څپه ( الف ) او دویمه ( با ) ده . یا شخوند ( šxwand ) چې یو زږی ( a ) لري او پنځه بېواکه او په دې توګه په پښتو کې اوږدترینه څپه ګڼل کېږي. هرڅومره بېواك اوازونه چې سره یوځای شي او خپلواك اواز ورسره د زږي په توګه ملګری نه شي، څپه جوړولای نه شي، ځکه بې له دغه زږي څخه هډو ویل ( تلفظ ) کېدای نه شي. په پښتو کې د څپو اوږدوالی او لنډوالی کوم ژبنی ارزښت نه لري: نه مانیزونجون پیښوي او نه پر شعري وزن کوم اغېز ښندلای شي. هسې خو بې له هغې هره څپه هرومرو ماناواله نه وي . د ساري په توګه ( اغی - ز -- ه ) په ( اغیزه ) کې دریواړه څپې هر یوه ځانته جلا جلا مانا نه لري، بلکې په ګډه یو مانیز توك ( ویی ) جوړوي. مګر (کور) یوه ماناواله څپه ده، یا په بله وینا ، یو ویی ( ۱-۳۹ ) دی او له دې سره یو ګړ ( ۱-۳۲ ) هم دی.

حقشناس ( ۱۳۷ ) څپه یا هجا داسې راپېژني:

څپه یو مرکب غږیز یوون ( واحد ) دی چې له یوه یا څو زنځیري ( ۱-۱۶) او یو یا څو نازنځیري (۱-۱۷ ) یوونونو څخه رغېدلې وي. څپه یا وازه وي یا تړلې.

**۱-۳۰**: وازه څپه : هغې څپې ته وایې چې له یوه خپلواکه جوړه وي او یا پر یوه خپلواك پای ته رسیدلې ـي، لکه : ا - به - ته - شنه - بیا - غوا - پرې - هو.

**۱-۳۱**: تړلې څپه : هغې ته وايې چې پر يوه بيواك پاى شوې وي، لكه : كور، خوند، شخوند، ورځ، خوړ، خوړين، خپل، برگ، غبرگ.

**۱-۳۲: گړ - واژك *Morpheme*** : گړ يا مورفيم د ژبې تر ټولو كوشنى مانيز توك (عنصر) دى چې د څو اوازو (۱-۱۸) له يوځاى كېدو څخه لاس ته راځي او له شنل كيدو څخه يې ساده اوازونه، يا په بله وينا بې مانا توكونه. كه يووستوي ساده اواز مانا ولري، هم گړ بلل كېداى شي، خو هغه به هرومرو د يو پخواني (اواز غونډ) لنډيز وي ( ۱-۶ ). په بله وينا، گړ (مورفيم) د ژبې هغه كوشنى ترين مانيز توك يا مانيز يوون (واحد) دى چې كه وشنل شي، بې مانا اوازونه (فونيمونه ۱-۱۸) ترې لاسته راځي او په دې توگه خپله مانا له لاسه وركوي.

ژبنى شننه هم له آره په گړونو كېږي، نه په بې مانا غږيزو توكونو ( اوازونو ). ځكه د ژبې له مانيز جوړښت سره چې رښتينى ژبنى جاج ( مفهوم ) او رغښت (ماهيت) جوړوي، اړيكى نه لري. يو گړ پر زنځيري يوونونو ( ۱-۱۶ ) سربېره نازنځيرى ( ۱-۱۷ ) هم په خپل جوړښت كې لري، لكه فشار او داسې نور.

گړونه پر ازادو او تړليو گړونو ويشل كېږي:

**۱-۳۳: ازاد گړ** : چې په ژبني بهير كې په ازاده او خپلواكه توگه يوه مانا ښندي، لكه : كور، اور، اوبه، مالگه ... ؛ نومونه، كړونه او كړولونه ( قيدونه ) د ازادو گړونو ډولونه جوړوي.

**۱-۳۴: تړلى گړ** :چې د گړهار په بهير كې يا د يو مانيز يوون( ويي ) يو ټوك وي، لكه (- وال ) په كليوال، ( - ين ) په خاورين، ( - يز ) په اړخيز كې او داسې نور تاړي، او يا د ويي ټوك نه وي، بلكې چار او مانا يې د خپلو گاونډو خپلواكو يوونونو ( وييونو ) په ملگرتيا سره څرگندېږي، لكه : ته، نه، و، او، سره او داسې نور وييكي .

## ۱-۳۵: بلگړ - واژگونه *Allomorph*

بلگړ ( الومورف ) د يوه يوازيني گړ ( ۱-۳۲ ) بيلا بېل ډول يا بڼې ته وايي، لكه : ( - يي ) په "بيدايي" كې چې د " دښتي " غوندې په يوه ويي كې د ( ي ) يو بلگړ بلل كېږي. يا لكه ( - يم ) په " اتيايم " كې چې د " څلورم " غوندې په يو ويي كې د ( - م ) بلگړ گڼل كېږي. دلته بنستيز يا آر (اصلى) گړ هم ( əm - ) دى. همداسې " - يز " او " - ييز " هم درواخله، لكه په " دوديز " او " سيمه‌ييز " كې .

بلگړونه د یوه گړ غړي دي چې د یوې گرامري قاعدې ( کتیگورۍ ) څرگندوی وي او دغه توپیر د غړیز چاپیریال له کبله منځته راځي. یا په بله وینا، کله چې په یوه څپیز یا سیلابیك جوړښت کې دوه گړونه سره یوځای کېږي، د ژبې هڅه دې ته وي چې د بېواکو یا خپلواکو د گڼې گونې یا پرله پسیوالي د مخنیوي لپاره په منځ کې خپلواك یا بېواك اواز ورولېږي. لکه په ( بېلول ) کې ( - ول ) د ( جلا کول ) د ( - کول ) په وړاندې او یا د ( ځوانان ) او ( خانان ) د ( ان ) ترڅنگه د (ملایان) او (میرزایان ) ( - یان ) او د (بوډاگان) او ( بیړاگان ) (گان) او داسې نور دي، په دې مانا چې دلته ډیرگړی (جمع) - وروستاړی له آره ( ان ) دی او ( - یان ) او ( - گان ) یې بلگړونه دي.

## ۱-۳۶: گړاواز - مرکزتك واژه – *Morpho - phoneme*

هغه اوازونه چې د یوه گړ د بیلا بېلو غړیو ( بلگړونو ) په توگه یو پر بل اوړي. او یا یو د بل ځای نیسي. دا راز اوښتونونو ته مورفوفونیمیکي بدلونونه وایي.

## ۱-۳۷: گړاوازپوهه - مرکزتك واژه ها - *Morpho-phonemics*

د ژبپوهنې هغه څانگه ده چې په هغه کې د یوې ژبې ټول گړاوازونه او مورفوفونیمیکي اوښتونونه ( همرنگي ــ ناهمرنگي ... ) ترڅېړنې لاندې نیول کېږي. په هغو ژبو کې چې نوموړي اوښتونونه دومره زیات نه وي، نو دغه وینه ( بحث ) د گړپوهې ( ← ) په ترخ کې راځي، لکه واخلې په پښتو او دري کې

## ۱-۳۸: گړپوهه - صرف - *Morphology*

گړپوهه د پښنوېې هغه برخه ده چې د گړونو ( مورفیمونو ۱-۳۲ ) ډولونو او ځېلونو، رغاونې او اوړون سره کار لري.

## ۱-۳۹: ویی - واژه ( لغت یا کلمه ) - *Word* : ویی د غړ پوهنې ( ← ) له مخې د یوه

مرکب غړیز یوون ( واحد ) په توگه پېژندلای شو چې یو خوا له یوې یا څو څپو او بل خوا له یوه یا څو گړونو څخه رغیدلی وي. یو ازاد گړ (۱-۳۳) چې له یوې یا څو څپو څخه جوړ وي، یو یوستووی او ساده ویی هم دی.

ځېنې ژبپوهان ویی هغه خپلواکه مانیزه توټه یا یوون بولي چې پر زیاتو وړو مانیزو توټو یا یوونونو، نه شنل کېږي،یا یې د دود له مخې څوك شنل نه غواړي. لکه: کور، مور، ښوونځی، کورنۍ، پوهنتون، پاك زړی، پیمخی، شېرشاه مېنه، سید نورمحمد شاه مېنه او داسې نور.

## ۱-۴۰: ویی پوهنه - علم اللغت - واژه شناسي - *Lexicology*

د یوې ژبې د ټولې ژبنۍ زېرمې ( ویی پانګې ) مانا پوهیزې ( سېمانتیکي ) یا ګړپوهیزې (مورفولوجیکي) څېړنې ته وایي، په بله وینا، ویي پوهنه د ژبپوهنې هغه څانګه ده چې د یوې ژبې یا ژبو د ویي پانګې (vocabulary) بېلا بېل (جولیز - مانیز - منشایي، اړخونه څېړي. سیند (قاموس) کښنه ( lexicography )، کښندود او ډولونه یې هم د ویپوهنې یوه څانګوړې شمېرل کېږي.

## ۱-۴۱: پورویی (مستعار لغت): هغه دی چې له نورو ژبو څخه یوې ژبې ته ورننوتی وي.

پور وییونه هرومرو په آره جوله او مانا په پوروړې ژبه کې نه پاتېږي، لکه : سوله (صلح)، بزګر (بذرګر)، ماشوم (معصوم) د کوشني په مانا.

## ۱-۴۲: غونډله یا جمله *Sentence* :

غونډله یا جمله یو داسې مرکب غږیز یوون (واحد) دی چې له یوه یا څو وییو(کلمو) څخه رغېدلی او د یوه یا څو نازنځیري (۱-۱۷) یوونو په مرسته پکې یو ډول یووالی څرګند شوی وي ( حقشناس ۱۴۲).

یا په بله وینا، غونډله د یووستوو یونونو (ګړونو) یو داسې اوډلی (منظم) ټول (کُل) دی، چې یو بشپړ جاج (مفهوم) او موخه (مطلب) پرې لېږدول کېږي او پوهول کېږي. له بلې خوا، دا چې خبرې اترې یا وینا (ګړهار) په غونډلو ترسره کېږي، په بله ژبه، وینا لومړی ځل په غونډلو شنل کېږي، نو غونډلې ته د وینا (←) یوون هم وایي.

## ۱-۴۳: غونډ - فقره، ګروه یا عبارت - *Phrase*

غونډ دیوې غونډلې ( ۱-۴۲ )بېلا بېلې ټوټې ته وایي چې له یو یا څو ازادو (۱-۳۳ )او تړلو ګړونو ( ۱-۳۴ ) څخه رغېدلې وي، او راز راز ډولونه لري، لکه نوموال غونډ، کړوال غونډ، کړول غونډ او داسې نور.

۱

## ۴۴-۱: غونډله پوهه - نحو - *Syntax*

لکه څنګه چې د غږ پوهې د ويينې يوون ( د بحث واحد ) غږ دی او د ګړ پوهې هغه ګړ دی. نو د غونډله پوهې د ويينې يوون غونډله ( جمله ۱-۴۲ ) ده. په بله وينا ، غونډله پوهه د غونډلو. دغه راز د غونډونو ( فقرو ) او ګړنو ( ايديمونو ) جوړښت اوډون، او ډولونه ترکتنې او ويېنې لاندې نيسي

**۴۵-۱: د غونډلې توکونه ( اجزای جمله )** : د غونډلې توکونه ( اجزا ) پر آرو او مرستيالو توکونو ويشل کېږي.

۱ - **آرتوکونه** : لکه: نومونه (څيز نومونه، ستاينومونه، شمېرنومونه او نومځري)، کړونه يا فعلونه ( آر او مرستيال، اشتقاقي او ترکيبي) او نااوړېدني، يا آر او اوړيدوني، يا ستاينوميز کړولونه (قيدونه).

۲ - **مرستيال توکونه**: په دې ډله کې ټول ناوړېدوني (نه ګردانېدونکي ) ګړونه، يا په بله وينا ، وييکي (ادوات)، لکه اړيکوييکي (حروف ربط)، تړوييکي (حروف عطف)، سربلونه او ستربلونه، بلنوييکي (حروف ندائيه) او داسې نور راځي .

## ۴۶-۱: نومونه - اسما - *Nouns*

هغه ازاد اوړېدوني ګړونه يا وييونه (۱-۳۹ ) دي چې بې له زماني اړيکي څخه يي مانا څرګندېدای شي، لکه : کور، اور، اوبه، تور، سپين، يو، دوه، زه، ته أو داسې نور. نومونه يا نومواله ډله پر لاندې ټوليو (کټېګوريو) وېشنه مومي:

## ۴۷-۱: څيزنوم - اسم - *Substantive*

څيزنوم يو داسې نوم دی چې نېغ پر نېغه د يوه څيز يا ښکارندې ( پديدې ) نومونه ( نامګذاري ) او څرګندونه کوي او دا وروسته ډولونه لري :

## ۴۸-۱: پژنوم - اسم ذات - *Concrete Noun*

هغه نوم ته وايي چې په ننګېرېدونکي ( محسوس ) څيز اړه لري، په بله وينا ، يو داسې څيز نوموي چې زموږ په پنځګونو حواسو حس يا ننګېرل کېدای شي، لکه: ډبره، لرګی، اوبه، غوا ، غږ، بوي او داسې نور.

## ۱-۴۹: مانا نوم - اسم معنی - Abstract Noun

هغه نوم دی چې په یوه نه ننګېرېدونکي ( غیرمحسوس ) څیز، یا په لنډه وینا، په یوې ښکارندې ( پدیدې ) اړه لري او هغه نوموي، لکه: د روغ، رښتیا، پت، هیله، مېرانه، رخه، سخه (عناد)، خوښي، ویر، اندېښنه، درناوی، بدي، نیکي او داسې نور.

## ۱-۵۰: ټولنوم اسم عام - *Common Noun* -

داسې څیز یا ښکارنده نوموي چې ځانګړي او خاص نه وي، بلکې ډولونه او ځیلونه ولري، لکه: ونه، هلك، نجلۍ، هېواد، څاروی، وګړی، اولس، ترون، ژمنه او نور.

## ۱-۵۱: ځانګړ نوم - اسم خاص - *Proper noun or name*

چې یو ځانګړی څیز، پدیده، وګړی یا ځای نوموي، لکه: پښتو ژبه، پښتنواله، خوازك، زرمینه، ننګرهار، کندهار، پکتیا، هند، ایران او نور.

## ۱-۵۲: نوږ نوم - اسم جنس - *Mass Noun*

چې په یو نه شمېریدونکي څیز اړه لري، لکه: زر، اوبه، وسپنه او نور.

## ۱-۵۳: غونډ نوم - اسم جمع - *Collective Noun*

چې یوه ډله او غونډ نوموي، لکه: ټولی، ټولګی، ګوند، ټبر، ګورم ( پاده )، رمه او داسې نور

## ۱-۵۴: انګینوم - اسم صوت - *Onomatopoeia*

چې د طبیعي یا مصنوعي اوازونو انګې یا انګازه ( پژواك ) نوموي، لکه: درز دروز، درزی، درزا، درزهار، ګړب، ګړوب، ګړبی، ګړبهار، ترپ تروپ ...

پارنوم یا پارنویی ( هیجاني غږ ) چې د راپارېدنې یا هیجان پروخت د انسان له خولې نابېره راوځي، له درده، لکه اوه، اخ، اوخ، له ویري، لکه وییي، ویي، له خوښۍ، لکه: وخ، واخ، هاها ...

## ۱-۵۵: ستاینوم - اسم صفت - یا *Adjective*

چې په خپلواك ډول څه نه نوموي، بلکې د یو څه څرنګوالی نوموي، یا په بله وینا، یو ستاینوم په یوه څیز نوم اړه لري او د هغه څرنګوالی ښیي، لکه: تود، سوړ، غټ، ووړ، تور، سور، ښکلی، ښایسته، غښتلی، کمزوری، روغ، ناروغ او نور.

د ستاینوم ډولونه دوه دي : ۱- لر او ۲- لنډ .

**۱-۵۶: لنډ ستاینوم** : هغه دی چې تر ځیز نوم له مخه او ورسره پتلیز راځي او لنډ پر لنډ یې ستایي، لکه : توره دړه، روغ سړی، ښکلې نجلۍ او ... دلته توره، روغ، ښکلی ... لنډ ستاینومونه دي.

**۱-۵۷: لر ستاینوم** : هغه دی چې تر ځیز نوم وروسته راځي او له کړوالي برخې (مسند) سره پیوستون لري، که څه هم هماغه ځیز نوم ستایي، لکه : دړه توره ده، سړی روغ دی، نجلۍ ښکلې ده .... دلته هماغه ستاینومونه ( توره، روغ، ښکلې ... ) لر ستاینومونه دي. که کړواله، یا په بله وینا، اړونده غونډله نومواله نه، بلکې کړواله وي، نو بیا هغه ستاینوم د کړول ( قید ) چار پرځای کوي، لکه زلمی " پلی " راغی.

**۱-۵۸: شمېر نوم - اسم عدد - *Numeral or number***

شمېرنوم هم د ستاینوم غونډې په خپلواك ډول کومه نومونه، نه کوي، بلکې په یوه ځیز نوم آړه لري، خو د ستاینوم غونډي یې ځرنگوالی نه، چې څومره والی او پوړوالی (تدرج) ښیي، لکه: یو، دوه، درې ... یا لومړی، دویم، دریم، څلورم ....

**۱-۵۹: آر شمېر - اصلي عدد - *Cardinal Number***

لکه : یو، دوه، درې، څلور ...

**۱-۶۰: پوړ شمېر - وصفي یا رتبي عدد - *Ordinal Number***

چې د خپل شمېرلي پوړ یا پوړی ښیي، لکه لومړی یا یوم، دویم، دریېم، څلورم ... یوسل ویوم، دوه سوه یوم ...

**۱-۶۱: ووړ شمېر ( کسري عدد )**

چې د اړوند ځیز نوم ( شمېرلي ) ماتوالی او برخه والی ښیي، لکه دویمه، دریېمه، څلورمه ...

**۱-۶۲: وېش شمېر ( انقسامي عدد )**

چې د اړوندو ځیز نومونو، وېشنه او جوړه، جوړه کېدنه څرگندوي او په دې توگه د ووړ شمېر غونډې له ډېر گړیو ( جمع ) ځیز نومونو سره اړه لري، نه له یوه سره، لکه : یو یو، دوه دوه، درې درې، څلور څلور ....

**۱-۶۳: اټکل شمېر ( تخمیني عدد )**

چې د یوه څیز نوم پرځای غبرګ، غبرګ څیز نومونه ښیي او یو هم نه ټاکي، لکه : یو دوه، دوه درې، یو درې، درې څلور، لس یوولس، شل دیرش، څلوېښت پنځوس، پنځوس شپېته ... سل دوه سوه، زر یونیم زر، دوه درې زره ....

## ۱-۶۴: نومځری - ضمیر - *Pronoun*

هغه ویی دی چې د یوه نوم ښکارندویي کوي، د هغه پرځای راځي او یا یې ملګرتیا کوي او د همدغې دندې له مخې د نومونو په ډله کې ځای نیسي له نورو نومونو (څیزنوم - ستاینوم - شمېرنوم) سره د نومځري توپیر دا دی چې دا پر درې ګونو اړخو (نوږي، ګنې او بېر) سربېره د (لومړي، دویم او درېیم) وګړي له مخې هم اوړون مومي (وینفرید اولریښ ۹۴۲)

## ۱-۶۵: وګړیز یا وګړ نومځری - ضمیر شخصي - *Personal Pronoun*

هغه نومځري ته وایي چې یا د غړېدونکي یا غړېدونکیو (لومړی وګړي) څرګندویي کوي یا د هغه چا (دویم وګړي) چې ورسره خبرې کېږي او یا د هغه چا (درېیم وګړي) چې ترې خبرې کېږي دغه راز نومځري په غښتلیو (زه، ته، دی ...) او کمزوریو (مې، دې، یې ...) وېشنه مومي

## ۱-۶۶: تولنومځری) - ضمیر ملکي یا اضافي - *Possessive Pronoun*

چې تول (ملکیت) او اړوندي (تعلق) ښیي، دا هم په غښتلیو (زما، ستا، د ده) او کمزوریو (مې، دې، یې) وېشل کېږي

## ۱-۶۷: نغوتنومځری - ضمیر اشاره - *Demonstrative Pronoun*

چې وګړي، څیز او یا پدیدې ته نغوته (اشاره) کوي، یا د هغو د نومونو ځای نیسي او یا ورسره لکه ستاینوم ملتیا کوي. پښتو دا یوازې د درېیم وګړي او واټن (لنډ لر، لالر، ډېر لر) له مخې اوړون مومي. لکه : دغه، هغه، هاغه، هوغه ...

## ۱-۶۸: پوښتنومځری - ضمیر استفهامي - *Interrogative Pronoun*

چې د یوې مخامخ پوښتنې لپاره پر کار ولېږي او د وګړي، مهال، تون، څرنګوالي او څومره والي له مخې ډول ډول دي.

## ۱-۶۹: پلوي یا کړولي نومځری یا (ضمیر سمتي یا قیدي)

چې له آره د یوه کړ (فعل) او څار لوری یا پلو څرګندوي، خو په ترڅ کې د یوه وګړي ښکارندویي یا استازي هم کوي، لکه : را، در، ور

### ۱-۷۰: وييکنومځری (ضمير اداتي)

چې له وييکو (ادواتو) څخه منځته راځي او د اړوندو اداتو له چار او دندې سره سم د نومځرو او ورسره ورسره د ملگرو وييکو (اوستربلو) ځاى نيسي، لکه: پکې، باندې، لاندې، ترې، پرې، راسره، درسره، ورسره ....

### ۱-۷۱: غبرگون نومځری - ضمير انعکاسي - *Reflexive Pronoun*

هغه نومځری دی چې د يوه چار هم کړند اوسي او هم کړی، لکه: "ځان" په "ځان مې ژوبل کړ" کې.

### ۱-۷۲: ناټيکنومځری - ضمير غيرمعين يا مبهم - *Indefinite Pronoun*

چې د يوه ناجوت (نامعين) وگړي يا څيز لپاره راځي، لکه: هر، بل، نور، ټول، واړه، دواړه، څه، څو، ځينې، هيڅ، څوك ....

### ۱-۷۳: اړيکنومځری - ضمير ارتباطي - *Reflexive Pronoun*

چې په يوه غونډله (جمله) کې د تېرې يا راتلونکې غونډلې له يوه څيزنوم يا نومځري سره راز اړيکي ټينگوي. پښتو په جوليز ډول يو اړيکوييکی "چې" د بېلا بېلو اړيکنومځرو پرځاى کاروي چې هم د څيز لپاره راځي هم د وگړي، مهال او تون لپاره.

### ۱-۷۴: کړ - فعل - *Verb*

کړ تر نومونو وروسته د غونډلې له آرو ټوکونو، يا په بله وينا، ازادو گړونو (۱-۳۳) څخه گڼل کېږي. کړ (فعل) هغه ويی دی چې د مهال (زمانې) په چوکاټ کې د يوه څه پېښېدنه څرگندوي، دا چې د کړ جاج (مفهوم) بې د زمانې له ملگرتيا، نه پوهېدل کېږي، نو ځکه ورته مهال ويی يا (زماني لغت) هم وايي، لکه: ومې خوړ، خورم ....

### ۱-۷۵: آرکړ - فعل اصلي - *Main Verb*

هغه کړ ته وايي چې په خپلواکه، يا په بله وينا، د غونډلې د بنسټيز ټوك يا زړې په توگه د غونډلې خبر جوړولاى شي.

### ۱-۷۶: مرستيالکړ - فعل معاون - *Auxiliary Verb*

هغه کړ ته وايي چې له آر کړ سره د غونډلې د خبر په څرگندونه کې مرسته کوي او د يوه کړ يا چار بېلا بېل اړخونه څرگندوي، لکه: کول، کېدل، اوسېدل، استل، ول، "غوښتل". په مرستيال کړ کې تواني کړ يا مرستيال تواني کړ هم راځي چې په پښتو کې د دري (توانستن) يا انگليسي

(can) غوښتي جلا جوړښت نه لري، بلکې له کړولي يا بنسټ سره د (- لای) يا په کره توګه (- آی) او مرستيالکړ "شول" له اوړون سره جوړيدای شي، لکه زه لمبلای شم. کول او کېدل او د "شول" له ګرداني بڼو څخه د (- آی) په وروستاړي سره چې يوه څېرمه غوښنله رامنځته کېږي او بيا د وړپسې آرې غوښنلې هر آر کړ " تواني " چار راڅپلوي، لکه : زه کولای شم، منډه ووهم، کېدای شي، نن باران ووري . لکه : کولای، کېدلای (شي). نن سبا پارسي آري " توانېدل " هم لړ و ډېر دود موندلی دی.

## ۱-۷۷: کړ نوم - مشتق فعلي يا حاصل مصدر- *Verbal Noun*

هغه نوم ته وايي چې د کړ له بنسټ يا له ولي (ريښې) څخه جوړېږي، لکه : خوړونکی، خوړلی، خورنده، خورندی ....

## ۱-۷۸: کړ نومی - مصدر - *Infinitive*

يو کړم نوم چې په پښتو کې زياتره له کړولي (۱-۷۹) او (ل) وروستاړي څخه جوړېږي او د دود له مخې پرې کړ نومول کېږي، بې له دې چې د (ګردان شوي) کړ غوښتې له کومې زمانې، وګړي يا نورو سره اړوندي ومومي، لکه خوړل، تلل، څښل ...

## ۱-۷۹: کړولی - ريشه فعلي - *Verbal Root*

د کړ هماغه زړي يا هستې ته وايي چې په ټولو بڼو او اوړونونو (ګردانونو) کې روغه رمټه پاتېږي، لکه : خور - يا خوړ - په " خورم " " خوړل کېږي " کې او داسې نور.

## ۱-۸۰: کړول (قيد - *Adverb*)

هغه ژبنی توك دی چې د يوه کړ د پېښېدنې پر څرنګوالي يو ډول اغېزه اچوي يا د مهال او ځای له پلوه او يا يې د څرګندتيا، ټينګار او داسې نورو ځانګړتياوو له مخې. آر، يا نا وړېدوني، لکه : ژر، اوس، بيا، تل، ورو. ناآر يا اوړېدوني، لکه : چټك، سست، توند، په بله وينا چې له آره نومونه، يا په بله وينا، ستاينومونه وي .

## ۱-۸۱: وييککړول (اداتي قيد)

چې د ويبو يا وييکو پر بنسټ پخوا رغېدلي وي، لکه : دلته، هلته، وروسته، چېرته، بېرته، کښته، پورته، مخکې، لاندې، باندې، وړاندې، پخوا، پرله پسې

## ۱-۸۲: مرستیالکړول

چې د نوې ښښې او کړن ځانګړتیا یا اړینوالي او نااړینوالي انځوروي، لکه: ښایي، بویه، هرومرو، باید، په خوښه، په زور ...

## ۱-۸۳: اړښی ( مبتدا یا مسندالیه - *Subject* )

غونډله ( جمله ) لومړی پر دوو برخو وېشل کېږي: لومړی برخې ته یې اړښی وایي، چې په هغه کې کړند او ور پورې اړوند توکونه راځي او کړ پرې ډډه لګوي یا استناد کوي

## ۱-۸۴: اړښوني - خبر یا مسند - *Object, Predicate*

د غونډلې دویمې برخې ته وایي چې کړ، کړول او نور ور پورې اړوند توکونه رااخلي. څنګه چې په دې برخه کې کړ راځي او کړ د غونډلې بنسټ جوړوي، نو په نشتوالي یې نه یوازې اړښوني، بلکې اړښی هم ارزښت نه شي پیدا کولای. که نه نیمګړې او لنډکی غونډله ورته ویل کېږي. لکه څنګه چې په متلو او شعرو کې ځینې کړونه په تېره "استل + ول" کړ لوېږي یا له ورتېرې ملې غونډلې سره عطفېږي.

## ۱-۸۵: وییکي - حروف یا ادوات - *Particles*

وییکي د کوشنیو، ناخپلواکو او ناوړېدونیو ګړونو ( ←) یوه غوره برخه ده، په دې وروسته ډول.

## ۱-۸۶: اړیکوییکي ( حروف یا ادوات ربط - *Conjunctions* )

هغه وییکي دي چې د څومره والي یا څرنګوالي یا ورته والي له مخې سره آرې او څېرمه غونډلې (جملې) نښلوي او په دې توګه زیاتره دوه - دوه سره غاړه کېږي، لکه: ( څومره ) دیګ - (هومره) تېپر، که څه هم - بیا هم، څنګه چې - نو (ځکه) ... یووستوي لکه: چې، که، هم، او، و ...

## ۱-۸۷: ورتني وییکي ( حروف یا ادوات تشبیهي )

هغه وییکي دي چې د دوو یا زیاتو څیزونو یا پدیدو ورتوالي او همرنګوالي (مشابهت) ښیي، لکه: غوندې، په څېر، په دود، لکه، په رنګ، په ډول ... په " توګه " بیا کورټ او بشپړ یو رنګوالی راڅرګندوي. دغه ورتني وییکي له "لکه" پرته د " د " سربل په وړاندې درغلي ( کاذب ) تړښتي او ستربلونه ګرځي.

## ۱-۸۸: تړوییکي ( حروف عطف )

چې دوه توکونه ( ویي - غونډلې ) سره ملګرې کوي، لکه: او، و ...

" که " او " یا " بیا امرني ( انتخابي ) یا د ترویبیکو سرچپه " ناترويیکي " disconjunctives بلل کېږي

## ۱-۸۹: تولوييکي ( حروف اضافت )

چې ځيزونه يا پديدې يو له بله سره اړوندَوي . پښتو په جوليز ډول يو تولوييکی (د) لري، لکه : د کندهار انار ...

## ۱-۹۰: سربَل - پېشينه - *Preposition*

هغه وييکی (۱-۸۵) دی چې تر يوه نوم له مخه راځي او په يوه غونډ يا غونډله (۱-۴۲) کې د هغه نوم، پېر او دريځ ښيي، لکه : (په) په (په کور کې)، (له) په (له کوره) يا (له کور سره)، (تر) په (تر گوره پورې) کې او داسې نور .

## ۱-۹۱: اوستربل - پسينه - *Postposition*

هغه وييکي دي چې ترنامه وروسته راځي او له سربَل سره د اړوند نوم پېر ټاکي، لکه (کې) په (کور کې)، (سره) په (له زلمي سره)، (پورې) په (په تا پورې) کې او داسې نور

## ۱-۹۲: تاړی - وند - *Affix*

هغه ترلی گړ دی چې شتوالی، چار او مانا يې له يوه يا ډېرو ازادو گړونو(۱-۳۳)يا وييونو(۱-۳۹) سره په يوځايوالي او پيوستون څرگنديدای شي . د يوه تاړي، په نښلونې سره يو ازاد گړ يا ويی يوه نوې جوله او مانا پيدا کوي او يو بيلنگ (مشتق) منځته راوړي . د ازاد گړ يا بلگړونو او يا وييونو، يو نه جلا کېدونکی ټوک گڼل کېږي او په ويي رغاونه کې ستره برخه لري . درې ډوله دي

## ۱-۹۳: روستاړی - پسوند - *Suffix*

هغه تاړی دی چې د اړوند گړ يا ويي په پای پورې نښلي او د نورو - تاړو غونډې يو نوی بيلنگ (مشتق) منځته راوړي، داسې چې جوله او مانا يې له هغه بنستيز گړ يا ويي سره توپير لري، لکه (- نی) چې له (کور) څخه (کورنی) جوړوي .

## ۱-۹۴: مختاړی - پيشوند - *Prefix*

هغه تاړی دی چې د اړوند گړ يا نوم په سر پورې نښلي او د نورو تاړو غونډې له نوې جولې او مانا سره يو نوی بيلنگ ( مشتق ) رامنځته کوي، لکه :(ور -) په (ورکول)، ( پرې -) په (پرېوتل ) (پر -) په ( پرسد )، ( بې - ) په ( بېسد ) کې او داسې نور .

## ۱-۹۵: منځتاړی - میاوند - *Infix*

هغه تاړی دی چې د یوه کړ یا ویي په منځ کې ځای نیسي او له نوې جولې او مانا سره یو نوی بېلنګ ( مشتق ) منځته راوړي او که دوه جلا ویيونه سره ونښلوي، یو نوی ترنګ ( ترکیب ) جوړوي . په پښتو کې یوازې دا وروسته ډول نوموال منځتاړي شته، لکه: ( الف ) په ( بیلا بېل )، (پر) په ( کور پرکور )، ( تر ) په ( لړ تر لړه )، ( نا ) په ( زړه نازړه ) او ( ما ) په ( شورماشور ) کې .

## ۱-۹۶: ژبپوهنه - زبانشناسي - *Linguistics*

هغه پوهنه ده چې ژبه او د هغې څرنګوالی، رغاونه او راز راز ژبنۍ سکالووې (مسالې) ترڅېړنې او کتنې لاندې نیسي . څه چې په ژبپوهنه کې څېړل کېږي، هغه به یوه ژبه وي او یا څو ژبې، خو له ژبې او ژبنیو سکالوو نور څه د ژبپوهنې وینه ( بحث ) نه شي کېدای .

د ژبپوهنې نړیواله نومونه ( اصطلاح ) لینګویستیکه بلل شوې ده چې انګلیسي بڼه یې لینګویستیکس ( Linguistics ) ده . بنسټ یې لینګوه ( Lingua ) لاتین دی چې مانا یې ژبه (لسان ) ده، او روستاړی یې استیکه ( Astica ) ورسره له یوناني څخه یوځای شوی دی چې دا د ( پوهنې ) مانا رااخلي . پخوا یې ژبپوهنې ته فېلالوجي ( Philology ) ویله .

## ۱-۹۷: ژبه او ژبپوهنه - زبان وزبانشناسي- *Language and Linguistics*

ژبه او ژبپوهنه سره دوه بیلا بیل واقعیتونه دي، داسې باید ونه پوهېدل شي چې ژبپوهنه ګوندې د ژبې د زده کړې مانا لري . ژبپوهنه د دې لپاره لوستل کېږي چې د ژبې په باب یوه ټولیزه پوهه ترلاسه شي او په الواکي ( تیوریکي ) ډول پرې د یوې بشري پوهنې په توګه علمي تنده ماته شي . د ژبې پیدایښت څرنګوالی، جوړښت، دنده، اوښتنه، پرمختیا، پراختیا، ډېربښت، د بیلا بېلو ژبو کورنۍ، ځانګې او ښرانګې ( ګړدودونه ) او نور اړیکي سره د ژبې د زده کړې او داسې نور نظري او علمي مسایل یې وڅېړل شي . هرګوره له یو لړ نورو وګړ پوهنو او ټولنپوهنو ، لکه سا پوهنې، فلسفې، توکمپوهنې ... سره نوې پوهنیزې ځانګې هم رامنځته کوي . په هر ډول د ژبې زده کړه او د ژبپوهنې زده کړه سره توپیر لري. په دې توګه باید د ژبې زده کړه او د ژبپوهنې زده کړه سره ګډه نه شي . دا چې وایو پلانی ژبپوهاند دی، دا مانا نه لري چې هرومرو به په ډېرو ژبو پوهېږي او پرې غږېږي . که څوك په ډېرو ژبو پوهېږي، بې له دې چې ژبپوهنه یې لوستې وي یا پرې په پوهنیز ډول پوه شي، ډېر ژبی ( پولي لینګوال ) یا دوه ژبی (بیلینګوال) یې بللای شو، نه ژبپوهاند . په پارسي ژبه کې لومړي ته (زباندان) او دویم ته (زبانشناس) وایي او په پښتو ورته (ژبپوهاند) او ژبپېژاند هم ویلای شو.

## ۱-۹۸: د ژبپوهنې څانگې

په ژبپوهنه کې يو گڼ شمېر څانگې او ښرانگې راځي چې غورې يې دا دي : غږ پوهنه Phonetics، پښويه ( صرف ونحو )، وييپوهنه، آرپوهه ( اېټېمولوجي )، مانا پوهه، گړدود پوهنه ( Dialectology ) .

## ۱-۹۹: د ژبپوهنې ډولونه

ژبپوهنه د ژبپوهاند او ژبڅېړونکي د موخې او کار اسانتيا لپاره پر بېلا بېلو څانگو وېشل کېږي، خو لومړی پر دوو سترو الواکي ( نظري ) او کاروني (تطبيقي) وېشنه مومي .

## ۱-۱۰۰: الواکي ژبپوهنه - زبانشناسي نظري

دا څانگه په ټوليز ډول ژبني آرونه ( پرنسيپونه ) او عموميات څېړي چې د نړۍ پر هره ژبه کارول کېدای شي .

## ۱-۱۰۱: کاروني ژبپوهنه - زبانشناسي تطبيقي - *Applied Linguistics*

هماغه توکونه او معلومات چې الواکي ژبپوهنې رامنځته کړي وي، په ژبښوونه، پښويه ( گرامر ) او نورو اړتيا وړو ژبنيو چارو کې پرکار اچول کېږي او ترې گټه اخېستل کېږي .

۱-۱۰۲ : د الواکي ژبپوهنې څانگې – شعبه های زبانشناسي نظري تيوريکي

الواکي ژبپوهنه دا وروستنۍ څانگې لري :

## ۱-۱۰۳: سرباندې ژبپوهنه - علم ماوراواللسان - *Meta - Linguistics*

د ژبپوهنې هغه ډول دی چې په هغه کې له ژبې سره د ناژبني واقعيت د ښکارندو ( مظاهرو ) اړيکي څېړل کېږي. لکه د غږېدونکي او اوريدونکي له اند او اکر (تفکر او وضع) سره، له فرهنگ سره، له ټولنې سره د عيني واقعيت په توگه څېړل کېږي. د بيلا بېلو ژبو غږېدونکي انسانان د واقعيت په بيلا بېلو نړيو کې ژوند کوي ( اولريښ ۷۲ ) .

په لنډ ډول، سرباندې ژبپوهنه د ژبې د دننۍ رغاونې او څرنگوالي او نورو ژبنيو مسالو پرځای، د هغې په شاوخوا کې څېړنې کوي .

## ۱-۱۰۴: همهالې ژبپوهنه- زبانشناسی همزمانی - *Synchronic Linguistics*

چې څېنې خلك يې سپړيزه يا تشريحي ( توصيفي ) ژبپوهنه هم بولي، د يوې ژبې رغاونه او څرنگوالی په يوه جوت ټاکلي مهال پېر ( زماني دور ) کې تر کتنې لاندې نيسي

**۱-۱۰۵ : ناهممهاله ژبپوهنه- زبانشناسی درزمانی- *Diachronic Linguistics***

یوه ژبه په بیلا بېلو اوښتونکو مهالپېرو ( دورو ) کې څېړي، څښنې یې تاریخي ژبپوهنه هم بولي .

**۱-۱۰۶ : پرتلیزه ژبپوهنه- زبانشناسی مقایسی- *Comparative Linguistics***

دلته د بیلا بېلو ژبو او خپلوانو ژبو ورتوالی او ناورتوالی څېړل کېږي .

**۱-۱۰۷ : نښپوهه - علم العلایم - نشانه شناسی - *Semiology***

د ژبپوهنې په دغه څانگه کې د نښو ټولیز غونډال له ترافیکي څراغو او پخوانیو مخابراتي سېستمو نیولې تر نومهالومولتي مخابراتي او انفارماتیکي تخنیکي نښو یا پیلامو او بیا ژبنۍ نښې ( سېمبولونه ) ترڅېړنې لاندې نیول کېږي .

**۱-۱۰۸ : ماناپوهه - معنا شناسي - *Semantics***

په دغه څانگه کې د ښووند او ښوولي یا نومند او نومولي ( دال او مدلول ) ترمنځ اړیکي، یا په بله وینا ، ژبني سېمبولونه ( وییونه، کړونه، څرگندنې او گړنې ... ) او د هغو مانیز ونجونه څېړل کېږي .

**۱-۱۰۹ : څېلپوهه - گونه شناسی - *Typology***

په ژبپوهنه کې دغه څانگه د نړۍ د بیلا بېلو ( خپلوانو یا ناخپلوانو ) ژبو څانگړې رغاونې ترکتنې لاندې نیسي او د همدغه رغاونې، څېلونو ( تیپونو ) له مخې ژبې سره ډلبندي کوي .

**۱-۱۱۰ : پښتپوهه - شجره النسب - *Genealogy***

په ژبپوهنه کې دغه څانگه، ژبې د خپلوۍ له مخې څېړي، په بله وینا ، له ژبنیو کورنیو او خپلوانو ژبو سره کار لري . په دې توگه د نړۍ ژبې سره د کورنۍ او خپلوۍ له پلوه ډلبندي کوي، لکه : هندو اروپایي ژبنۍ کورنۍ، حامي او سامي کورنۍ، د راویدي ژبنۍ کورنۍ، التایي ( تورکو مغولي ) ژبنۍ کورنۍ او داسې نورې .

**۱-۱۱۱ : ژبادپوهنه - *Philology***

دغه نومونه ( ترم ) له مخه د ژبپوهنې په مانا کارول کېده، خو اوس د ژبپوهنې هماغې تاریخي برخې ته وایي چې زاړه ادبي متنونه تر ژبنۍ څېړنې لاندې نیسي . په بله وینا ، په ژبادپوهنه کې هم ( زاړه ) ادبي اثار څېړل کېږي او هم ( زاړه ) ژبني اثار، لکه : ساکي، اوستایي، ویدي، پارسي، سوغدي، کوشاني او داسې نور هغه ( واریگ )

### ۱-۱۱۲ : ژبوګړپوهنه :
دلنه د ژبپوهنې او وګړپوهنې ترمنځ اړیکي او یو پر بل اغیز څېړل کېږي ( ماریو- پای ۶۸ ) .

### ۱-۱۱۳ : ژبټولنپوهنه - جامعه شناسی زبانی – *Socio Linguistics*
دا څانګه د ژبې ټولنیز اړونه (شرایط)، ژبزده کړه او ژبنی مخابره ( افهام او تفهیم ) رااخلي. دغه راز له ژبني چاپېریال سره د یو ګړي ( فرد ) اړوندي ( تعلق ) او همداسې نورې خبرې څېړي (اولریښ ۱۰۶ ) .

### ۱-۱۱۴ : ژبفلسفه یا ژبنی فلسفه - فلسفه زبانی
هغه پوهه ده چې د ژبې ماهیت آره ( منشا )، رواني، عقلي او هغه تاریخي خواکونه چې پرې اغېز ښندي، د ژبې او اند او ژبې او ژوند ( هستی ) ترمنځ اړیکي - څېړي ( اولریښ ۱۰۹ ) .

### ۱-۱۱۵ : ژبسا پوهنه - روانشناسی زبانی
دغه څانګه د ژبزده کړې او ژبکارونې او داسې نورې مسالې د رواني پېښنو له مخې څېړي .

### ۱-۱۱۶ : ځمکژبپوهنه - زبانشناسی جغرافیایی
دغه څانګه د ژبې پراختیا او د ژبنیو پدیدو بریدونه ترکتنې لاندې راوړي (ماریوپای ۱۲۴) .

### ۱-۱۱۷ : ګړدود پوهنه - ګویش شناسی ( لهجه شناسی )
د ژبپوهنې دغه برخه د یوې ژبې ( ۱-۱ ) راز - راز سیمه ییزې، ټبریزې، ټولنیزې او داسې نورې بڼې او ګړدودونه څېړي .

### ۱-۱۱۸ : پښویه - دستور زبان - ګرامر - *Grammar*
لاتین بڼه یې ګراماتیکه Grammatica چې ژبپوهنه مانا لري، په یوناني کې د ګراماتیکې Grammatike په بڼه د یوې ژبې د توکونو ( تورو - لیك - غونډلې ) د پوهې په مانا کارول شوی دی ( واریګ ) .

په ټولیزه توګه پښویه د تطبیقي او بیا سپړیزې ( تشریحي ) ژبپوهنې یوه غوره څانګه ده چې د یوې ټاکلې ژبې رغاونه او دویونه ( قواعد ) او یا په لنډ ډول، د یوې ژبې رغاوني سېستم ترکتنې لاندې نیسي . څنګه چې هره ژبه ځانته جلا رغاوني غونډال ( سېستم ) او ویې پانګه لري، نو د یوې ژبې د پښویې په لیکنه او برابرونه کې د هماغه ژبې خپله رغاونه، دویونه او ویې پانګه په پام

کې نیول کېږي . د یوې ژبې پښویه د بلې ژبې لپاره پرکار اچول یا د یوې ژبې پښویه هوبهو د بلې ژبې د پښویې په پېښو کښل ژبپوهنیز نه بلل کېږي .

یوه پښویه په دودیز ډول په ښوونځیو او زده کړځیو (کورسو) کې د اړوندې ژبې، یا د هغې د معیاري لیکنۍ بڼې د زده کړې د اسانتیا لپاره لوستل کېږي، او د هغې په مرسته پردۍ ژبې یا ټاکلې ژبې په اسانه زده کولای شي او پخپله د مورنۍ ژبې والا د هغې په مرسته د خپل ځانګړي اړوند ګړدود ( لهجې ) پرځای عمومي معیاري لیکنۍ ژبه زده کوي او کاروي . پښویه یا ګرامر لکه د یوه دېموکراتیك ټولنیز قانون غوندې د خلکو له ژبې رااېستل کېږي او بېرته پرهغو یو برابر او بې توپیره کارول کېږي ( تطبیقېږي ) او بیا څوك دا ویل حق نه لري : " زما ګړدود دغه دی او لکه څنګه چې غږېږم، همدغه زما ګرامر دی او د عمومي ګرامري قاعدو یا اړوندې کره لیکلارې غاړه ایښوونې ته اړ نه یم ! ".

## ۱-۱۱۹ : د پښویې ډولونه

پښویه لکه د عمومي ژبپوهنې غوندې د څېړونکو د موخې ( هدف ) له مخې پر ټولیزې (معیاري) ګړدودي، تشریحي، تاریخي، پرتلیزې، ښوونیزې (تعلیمي)، اخځي ( -Reference )، رغاونیزې یا ( Structural )، ( زېږندې یا زایښتي Generative )، جوله ونجي - زېږندې پښویې (Transformational - Generative Grammar ) او داسې نورو ډولو ویشنه مومي .

## ۱-۱۲۰ : د پښویې څانګې

د پښویې څانګې هم د هغو توکونو له مخې وېشنه مومي چې ژبه له څه او څنګه رغېدلې ده، یا په بله وینا، د ژبې رغنده توکونه ( متشکله عناصر ) کوم دي . ژبه د غونډو ( عباراتو ) او غونډلو (جملو) له ترتیب او ترکیب څخه رغېدلې او جملې د وییو ( کلمو ) او نورو ټاکنده توکونو، او ټاکنده توکونه د انساني غږونو له اوډون او تړون ( ترتیب او ترکیب ) څخه جوړېږي او دغه اوډونونه او تړونونه په هره ژبه کې ځانته بېلا بېل دودونه، دویونه ( قاعدې ) او غونډال ( نظام ) لري، په دې توګه که وغواړو، د یوې ژبې رغاونه ( ساختمان ) وڅېړو، پر دغو درو څانګو یې وېشو :

۱- اواز پوهه یا فونیمپوهه، ۲- ګړپوهه ( صرف )، ۳- غونډ له پوهه ( نحو ) .

## ۱-۱۲۱ : آرپوهه یا ریشه شناسي *Etymology*

د ژبپوهنې هغه څانګه ده چې په یوه ژبه کې د ژبنیو توکونو آره او تېر مهال څېړي او د هغو لومړنۍ لرغونۍ بنسټ جوتوي . ( ماریو- پای ) .

د اولړيښ له مخې له يوناني مانا ( رښتيا او لرغونتيا ) سره سمه هغه يوه پوهه ده چې د ژبنيو نښنو له آرې ( منشا ) او د ويي رغاونيز جوړښت له مخې د هغو اړوندي څېړي . په بله وينا ، له اتمولوجيکي خپلوۍ، وليو ( ريښو ) او بنسټيزې مانا څخه خبرې کېږي . همدارنګه له تاريخي پلوه د هغو له غږيزو بدلونونو، غږيزو دودونو او مانيزو بدلونونو څخه . لکه پښتو سر غږونه ( غ - ل - و ) په لرغونو سرتمغږونو ( ګ - د - ب ) پسې ځي .

په اتمولوجيکي ډول زړه - دل، لرى - دور - تېل ( تېلوښن ) يا پلار - پدر - فادر - فاتر - پاتر ... سره خپلوان بلل کېږي .

## ۱-۱۲۲ : بېچار پېر - حالت مجهول - *Ergative Case*

ارګاتيف يو نوموال پېر يا اسمي حالت دى چې د هغې له مخې د لېږند کړ (متعدي فعل) کړى ( مفعول ) يا د نالېږند کړ ( لازمي فعل ) کړند ( فاعل ) سره بدلېدونکي وي . په دې ډول اړوند کړ ته بېچار يا ارګاتيف کړ ويل کېږي او اړوند پېر ( حالت يا صيغې ) ته بېچار يا ارګاتيف پېر وايي او يا په لنډ او تولېز ډول ارګاتيف سېستم هم نومول کېږي . دغه سېستم يا پېر په باسك او اسکيمو ژبو کې ډېر ليدل کېږي او د انګرېزي په ګډون ( کولېنز ډيکشنري ) په نورو ژبو کې څه ناڅه رامنځته کېږي . په پښتو کې تېر مهال لېږند کړ يو مخيز ارګاتيف پېر لري، په دې مانا چې دغلته کړ د کړند ( فاعل ) پرځاى د کړي ( مفعول ) اړوند ( تابع ) دى، لکه " ما ډوډۍ وخوړه ؟ سره له دې چې " ما " ورسره کړند پېر لري، خو د کړ اېښني ( مسنداليه ) کړى ( ډوډۍ ) راځي .

په نا تېر لېږند کړ کې د ارګاتيف څرك همدومره لګي چې د " ما "، " تا " غوندې اوښتي نومځري، يا په بله وينا، د کړند له ښو سره سره د کړي ( مفعول ) دنده پر غاړه اخلي، نه د اېښني ( مسنداليه) او کړند هغه، لکه په ( زمرك " ما " وهي )، ( ببرك " تا " وهي ) کې .

## ۱-۱۲۳ : برسېرن او ژور جوړښت - *Surface and deep structure*

برسېرن جوړښت هغه ته وايي چې له يوې ( ګړپوهيزې يا وييپوهيزې ) ستې سره اړوند روستاړي، يا په بله وينا، له يووستوو وييونو سره نور ويي هسې بابز نښلول شوي وي او د ستې يا يووستوي ويي پاى يا تړ - خپلواك هماغسې روغ رمټ پاتې وي، لکه برخه وال barxa-wāl . ژور يا آر جوړښت هغه دى چې ستېه يا يووستوي ويي له اړوندو توکو سره بې له کوم خپلواکه نښلول شوي وي، لکه برخوال barx-wāl .

نورې جوړه جوړه بېلګې، لکه : پوهنه تون - پوهنتون، ژوى بڼ - ژوبڼ، پانګه وال - پانکوال، ځمکه وال - ځمکوال . سيمه وال، يا سيمه ييز او داسې نور ورته جوړښتونه څکه همداسې برسېرن پاتې کېږي چې د خپلواك په غورځېدا سره يې په مانا کې بدلون راځي .

## ۱-۱۲۴: کړاوونه ( تمرینونه ) :

۱ - ژبه څه ته وايي ؟

۲ - ژبه څنګه منځته راغلې ده ؟

۳ - ژبه ولې يوه ټولنيزه او دنده يي ( کسبي ) پديده ده ؟

۴ - ژبنی چار څنګه ترسره کېږي ؟

۵ - ژبه توکيزه پديده ده، که مانيزه ؟

۶ - ژبه او ليك سره څه اړيکې لري ؟

۷ - توری او غږ سره څه توپير لري ؟

۸ - ليکدود څه ته وايي ؟

۹ - ابېخې ( الفبا ) څه ته وايي ؟

۱۰ - د ژبې او وينا توپير سره څنګه کولای شئ ؟

۱۱ - د وينا ټوکونه کوم دي ؟

۱۲ - ګړدود څه ته وايي ؟

۱۳ - معياري ګړدود څنګه راپېژنئ ؟

۱۴ - زنځيري او نازنځيري واحدونه څه مانا ؟

۱۵ - اواز ( فونيم ) څه ته وايي او څه ارزښت لري ؟

۱۶ - اواز په څو ډوله دی ؟

۱۷ - فشار يا خج له ډولونو سره په يوه جمله کې وښياست ؟

۱۸ - څپه یا هجا څه مانا ؟
۱۹ - ګړ ( مورفیم ) څه ته وايي او کوم ډولونه لري ؟
۲۰ - ویی څه ته وايي ؟
۲۱ - غونډله ( جمله ) څه راز ژبنی یوون ( واحد ) دی ؟
۲۲ - په غونډله کې کوم توکونه راځي ؟
۲۳ - نومونه په څو ډوله دي ؟
۲۴ - نومځري په څو ډوله دي ؟
۲۵ - کړ ول څه ته وايي ؟
۲۶ - تاړي څو ډوله دي ؟
۲۷ - ژبني یا غږیز غړي څه ته وايي ؟
۲۸ - وییکي څه ته وايي او کوم ډولونه لري ؟
۲۹ - ژبپوهنه څه ډول پوهنه ده ؟
۳۰ - د ژبپوهنې څانګې راوپېژنئ ؟
۳۱ – پښتویه د ژبپوهنې په کومې برخې پورې اړه لري او د څه په اړه غږېږي ؟
۳۲ – ښېچار پېر یا ارګاتیف څه ته وايي، په پښتو کې یې بېلګه راوښیاست !
۳۳ - له لومړني څپرکي څخه مو څه زده کړل ؟

# ۲ - څپرکی

# غږپوهه ( *Phonetics* )

## ۲-۱: غږ پوهه ( سپڼپوهه ) - آوا شناسي ( څن شناسي ) - *Phonetics*

دلته هر راز ژبني غږونه په ټولیز ډول څېړل کېږي . که دغه غږونه زنځیري ( ۱-۱۶ ) وي، که نازنځیري ( ۱-۱۷ ) او یا ژبني ( فونیمېکي ) ارزښت ولري او که نه. دا مانا چې هرومرو یو داسې غږیز یوون ( واحد ) اواز نه شي کېدای چې د یو مانیز توك په جوړونه کې کومه اغېزمنه برخه ولرلای شي، بلکې د یوه یوازیني غږ ( اواز ) توکونه یا بلغږونه ( ۱-۲۳ ) ګڼل کېږي .

نن سبا غږ پوهه، آوا شناسي، فونولوجي او فونېټېکس په یوه مانا کارول کېږي او بیا د هغه په دننه کې د فونېټېکس او فونیمېکس توپیر کوي . دا دی، تر دې وروسته سرلیك لاندې به پرې پوره رڼا واچول شي .

## ۲-۲: د غږ پوهې او اوازپوهې اړیکي

د ژبې غږونه کولای شو، له دوو بېلا بېلو اړخونو څخه ترڅېړنې او سپړنې لاندې ونیسو . زموږ موخه دا ده چې وګورو، په یوه ژبه کې غږونه څه ډول رازېږي، د هغو په منځته راتګ کې کوم غږیز غړي پر کار اچول کېږي او فزیکي لوښه (خاصه) یې څه راز ده، کوم فزیکي لاملونه د یوې ژبې غږ د بلې ژبې له غږ سره توپیروي، غږونه څنګه اوړېدل کېږي، یا یې په یوځای کیدنو کې څه ډول بدلون راځي او بیا هغه څنګه راځي او داسې نور، دغه راز څېړنو ته غږ پوهه وایي . نو په غږ پوهه کې زموږ موخه د غږ زېږ او فزیکي لوښې پېژندنه ده، یا په بله وینا، د هغه موند نه ده .

له بله پلوه ښایي د غږونو له څېړنو څخه مو موخه دا وي چې وپوهېږو، په یوه ځانګړې ژبه کې هر یو غږ څه چار (نقش) پرغاړه لري . کوم یو غږ په یوه ځانګړي غږیز غونډ کې د بل یو غږ پرځای

وکارول شي او یا د یوه ژبني بدلون لامل شي (د ساري په توګه، مانا وونجوی) او کوم یو غږ چې د بل پرځای وکارول شي، کوم بدلون نه پېښوي، او یوازې په وینګ (تلفظ) کې ګډوډي راولي. غږونه د کومو ژبنیو دودونو (قواعدو) له مخې سره ترنګ مومي او لاړیات ستر جوړښتونه، لکه څپه، ویی یا عبارت منځته راوړي، څه راز غږیز ترنګونه په یوه ژبه کې کېدون لري او څه راز ترنګونه کېدون نه لري او دودونه دویونه یې څه دي . دغه راز پلټنو ته اواز پوهه ( فونیم پوهه ) وایي .

په دې توګه اوازپوهه د ژبې د غږیز نظام څېړنه ده او د غږونو د زېږ، فزیکي لوښې او منځته راوړنې له څرنګوالي سره کار نه لري .

له پورتنیو خبرو څخه دا پایله (نتیجه) اخېستلای شو چې د غږپوهې سکالو (غږ)، یا په بله وینا، یوه فزیکي او عادي پدیده ده، خو د اوازپوهې سکالو غږیز غونډال (نظام) او په هغه کې د غږونو چار (نقش)، یا په بله مانا، یوه ذهني او مجرده پدیده ده . د ژبې غږیز غونډال د همدغې ژبې د بېلا بېلو غونډالونو یوه برخه جوړوي، نو اوازپوهه د ژبپوهنې یوه برخه ده. د غږپوهې څېړنه د اوازپوهې په برخه کې د څېړنې یوه سریزه ده، په دې مانا، ترڅو چې لومړی په غږپوهه کې د ژبې د غږونو پېژندنه ترسره نه کړو، نه شو کولای، په اوازپوهه کې د یوه داسې نظام چې د غږونو ترمنځ شته دی او هغه دویونه (قاعدې) چې پرهغه نظام واکمني لري، ترڅېړنې لاندې ونیسو .

غږ پوهه ( Phonetics ) دا وروسته درې څانګې رااخلي :

## ۲-۳: زېږېزه یا تولیدي غږپوهه - *Articulatory Phonetics*

چې پکې د ژبې د سپېونو یا غږونو sounds څېړنه او سپړنه (تشریح) د غږېزو غړو او د هغو د تولیدي نقش له مخې ترسره کېږي .

## ۲-۴: اکوستیکه (آزمایښتي یا لابراتواري) غږ پوهه- *Acoustic Phonetics*

دلته د غږ پنځېوهې یا صوت فزیك په مرسته هغه غږونه چې د غږېزو غړو په وسیله جوړېږي او په ژبه کې کارول کېږي، د فزیکي څانګړتیا له پلوه سپړنه مومي او ډلبندي کېږي .

## ۲-۵: اوریزه غږ پوهه - *Auditory Phonetics*

د ژبې غږونه ( سپېونه ) چې څنګه د اورېدونکي له خوا اورېدل کېږي، څېړي . لکه څنګه چې لیدل کېږي، په دې لړ کې تولیدي غږ پوهې تر دوو نورو زیات پرمختګ کړی او ډېره کارول کېږي او اکوستیك ( آزمایښتي ) غږ پوهه لابراتواري لوښو او سامان ته اړتیا لري .

## ۲-۶: مورفو- فونولوجيکي اوښتني- *Morpho - Phonological Changes*

مورفو - فونولوجيکي اوښتنې دې ته وايې چې يو اواز په يوه څپه يا ويي کې له مخکې يا وروسته اواز سره همرنگې شي . که له دغه غږيز بدلون سره گړيز بدلون هم رامنځته شي، مانا دا چې مانيز بدلون هم راولي، نو دغه بدلون ته مورفو - فونيميکي (فونولوجيکي) بدلون وايي، لکه : پښتو خوړ - چې آره بڼه ( خور - ) يې د وسمهال د ولې په توگه پاتې ده او بدله بڼه ( خوړ - ) يې د تېر مهال کړولې گرځېدلې ده .

## ۲-۷: پرمختگې همرنگي - *Progressive Assimilation*

چې په يوه څپه، گړياويي کې يو اواز له مخني اواز سره همرنگې شي، لکه د بخښل خ + ښ چې په شمال ختيزو گړدودو کې سره يو په بل کې مدغم ( خ + ښ = خ ) شوي او بخښل پر بخل اوښتی دی .

## ۲-۸: پر شا تگې همرنگي - *Regressive Assimilation*

چې په يوه څپه، گړ يا ويي کې يو اواز د وروستي اواز تراغېز لاندې راشي او د هماغه په رنگ شي، لکه په پومبه او تمبه، يا پورويېو اگبر (اکبر) کې او داسې نور.

## ۲-۹: گاونډه همرنگي

چې اواز په خپل چاپېريال کې له خپل مخني يا وروستني اواز سره همرنگي ومومي، له (مخني) سره، لکه (بخل) چې پرمختگې گاونډه همرنگي جوړوي اوله وروستي سره، لکه په (پومبه) کې، پرشاتگې گاونډه همرنگي منځته راوړي.

## ۲-۱۰: ناگاونده همرنگي

چې په يوه گړ، ويي يا څپه کې يو اواز د يوه داسې ( مخني يا وروستني ) اواز تراغيز لاندې راشي او د هغو همرنگې شي چې په گاونډ کې يې نه وي، لکه : (ن) له ( ل ) سره په نونس ( نولس ) کې. په دغه بېلگه کې چې وروستی اواز له مخني اواز څخه اغېزمن شوی پرمختگې ناگاونډه همرنگي بلل کېږي . د پرشا تگې ناگاونډې همرنگۍ، لکه په يو نيم گړدود کې چې زنځير پر ځنځير اوښتی دی.

## ۲-۱۱: ناهمرنگي - ناهمگونی - *Disassimilation*

د مورفو - فونولوجيکي اوښتني هغه ډول دی چې په يوه ژبني چاپېريال (گړ - ويي – څپه) کې همرنگ اوازونه سره ناهمرنگې شي، لکه: په لمونځ کې ( ل ) او ( ن ) . البته ناهمرنگي هم پرمختگې او پرشا تگې او له دې سره گاونډې او ناگاونډې کېدای شي .

## ۲-۱۲: اوړن - قلب - *Metathesis*

هغه غږ بدلون ته وايي چې د یوه گړ، ویي یا څپې د اوازونو په اوډون (ترتیب) کې پېښېږي، لکه په څمکه - مځکه، روځ - ورځ، دږغ - غږ کې .

## ۲-۱۲: غورځن - حذف یا کاهش - Omission

چې له یو گړ، ویي یا څپې څخه یو اواز وغورځي او کم شي، لکه پېر ( پېرړ )، ږه ( زړه ) او چرخول ( چرگ خول ) کې .

## ۲-۱۳: ډېرن - افزایش - *Addition*

هغه پېښې ته وايي چې په یوه ژبني چاپېریال (گړ، ویي یا څپه) کې یو اواز هسې د یوه خوارۀ اهنگ یا (Euphony) په توگه زیات شي، بې له دې چې کوم مورفو- فونولوجي ونجون پېښ کړي، لکه د ( ن ) زیاتېدل تر (گ) له مخه په منگر (مگر) او مونږ (موږ). یا د (د) زیاتېدل په (ن) پسې، لکه په چمند (چمن)، سیند (سین)، دروند (درون)، او ارماند (ارمان) کې .

## ۲-۱۴: ساندهي یا غونډ له غږونج - Sandhi

چې له آره په سانسکریت پورې اړه لري، خو کېداى شي په پښتو کې یې هم کوم څرك ولگي . د ساندهي مانا پیوستون دی او په دې اند چې په یوه غونډله کې د څېنو ویيونو د پاى غږونه او د ورپسې ویيو د پیل غږونه یو له بله اغېزمن شي . په دې توگه یې موږ په ( غونډله غږونج ) ژباړو .

## ۲-۱۵: منځخپلواکونج - *Ablaut*

Ablaut چې له آره یوه الماني ژبپوهنیزه نومونه ده، د کړوالې یا نوموالې ستې د څپې یو خپلواك پر بل خپلواك اوښتنې ته وايې او په دې توگه د نورو ډېرو هندو اروپایي ژبو غونډې د پښتو نوم اوړون او کړ اوړون هم یوه په زړه پورې لیاره گڼل کېږي . موږ په پښتو کې هم په همدې جاج " منځخپلواکونج " راژباړلی دی . په دې ترڅ کې کېداى شي، یو کړ یا نوم داسې اوړون ومومي چې هېڅ پایلې (خاتمې) ته هم اړتیا پیدا نه کړي، لکه د تېر مهال " کوت " لپاره د کت - Kat منځخپلواك - a - پر - o - اوښتل یا د " ټوپك " او " دښمن " ډېر گړی ( جمع ) د وروستنیو څپو د a په زورکې a کولو رامنځته کېږي . خوږ، سپور، پښتون، لمونځ او داسې ورته نومونه بیا د اوړون لپاره پر منځخپلواکونج سربېره نورې اوړونې پایلې هم په ځان پورې نښلوي، لکه پښتون، پښتانه، پښتنو یا لمونځ، لمانځه، لمنځونه او لمنځونو ( همدا راز د گړپوهې اړوندې سکالووې )

## ۲-۱۶: هیات *Hiat*

يو بل راز غږونج او هغه هم خپلواکونج دی چې په پښتو او نورو ډېرو ژبو کې پېښېږي . داسې چې په يو ويي کې دننه يا دوو پرله پسې ويبو د پای او پيل (زياتره همرنگه) خپلواکه يو په بل کې ادغام شي او هماغسې يو اوږد خپلواك منځته راوړي، لکه اړخ - آړخ په ( اړخ پاړخ ) کې د ننگرهار خواته چې له آره به اړخ پر اړخ وو .

## ۲-۱۷ : وينايېز يا گړهاري غړي - اندامهای گفتار- *Organs of speech*

لکه څنگه چې ورته لا له مخه نغوته وشوه، ژبني غږونه د زېږېدنگ او اوريدنگ له مخې څېړلای شو. په توليدي غږپوهه (۲-۱) کې ژبني غږونه په تولېز ډول د گړهاري غړو له پلوه پېژند (تعريف) مومي . داسې چې هر يو غږ د گړهار يا وينا د بهنځ (مجرا) په کوم ځای کې زېږي او د زېږ پروخت يې گړهاري بهنځ څه اکر (حالت) غوره کوي . په دې توگه د هر يوه غږ په پېژند کې گړهاري غړو ته لږ تر لږه دوه ځلې نغوته کېږي . يوځل د غږ زېږ ځي او بل ځل د غږ زېږ په بهير کې د غړو د څرنگوالي له پلوه . د ساري په ډول د (ب) غږ د پېژند څرنگوالي او دا چې زېږند غړي يې دواړې شونډې دي او زېږځی يې د دواړو شونډو پيوستون ټکی دی، نو ورته غبرگشونډيز غږ. يا په بله وينا ، اواز (۱-۱۸) وايو. له بلې خوا څنگه چې د "ب" له زېږ سره دواړې شونډې د وتونکې سا هوا بهنځ بندوي، نو دغه اکر (حال) ته تمبنت (انسداد) وايي او په دې توگه د "ب" په پېژند کې وايو: "ب" يو غبرگشونډيز تم غږ يا اواز دی .

د دغې څرگندونې پربنسټ غږونه د بېلا بېلو غړو په نامه نومول کېږي. (شونډيز- غبرگشونډيز- غاښيز...) او له دې سره غړي هم په بيلا بېلو نومونو وېشنه مومي.

دلته د مخنۍ وينا (۱-۴) بيا يادول په کار دي چې غږيز، ژبيز يا گړهاري غړي دا مانا نه لري چې گوندې هغه له آره په پنځيز (طبيعي) ډول د همدې پازې (گړهار) لپاره پيدا شوي دي، بلکې د ساري په توگه گورو چې شونډې، غاښونه، خوله، ژبه او داسې نور ځانته جلا جلا فېزيولوجيکي پازې لري او غږ زېږ يې تشه يو څېرمه پازه گڼل کېږي چې انسان يې په کړاو او تمرين سره ترسره کوي.

غږيز يا گړهاري غړي د غږ زېږ په برخه کې د بېلا بېلو ونډو او نقشونو درلودني له پلوه پر دغو وروستو درو ډلو وېشل کېږي :

## ۲-۱۸ : ساييز ( تنفسي ) غړي - اندامهای تنفسی *Respiratory Organs*

په دې ډله کې سږي، مری، کرنکې (د سږو نلونه) راځي. د سا اېستنې ميکانېزم د دې لامل کېږي چې هوا سږو ته له بهره ورننوځي او بيا ترې بېرته رابهر شي. دغه دواړه بهنگه په تېره دويم دا په

غړ زېړ کې پرکار ولېږي. سایيز غړي د غړ زېړ په هڅه د خوځند ځواک د زېړ لپاره داسې وړ میکانېزم رامنځته کوي چې د هغه په وسیله نور ګړهاري غړي پرخوځېدو راولي . (۱ – ش)

۱- ش : سایيز غړي




ش (۱) سایيز غړي

## ۲-۱۹: غږنتیا رغي غړي - اندامهای واك ساز - *Phonatory Organs*

دغو غړو د حنجرې (چنغرك) په نامه په یوه کر پندیزه تشه کې ځای نیولی دی او د مری په پورتنی برخه کې پراته دي. په چنغرك کې دوه شونډیز ډوله او ډیرې نرمېدونکې پردې په پراته (افقي) ډول ځای لري چې غږیز تارونه بلل کېږي (که څه هم تار ډوله نه دي). د غږیزو تارونو ترمنځ تشه، ججوره یا کومی (glottis) نومېږي. د غږیزو تارونو فېزیولوجیکي پاژه د وازېدنې او بندېدنې په وسیله د سا ایستنې او ننه ایستنې اوډون (تنظیم) دی . بل دا چې د درنو څیزونو د جګولو په وخت کې سږو ته د هوا د تګ او راتګ په مخنیوي سره د ګوګل د کښته ولېدنې او ماتېدنې مخه نیسي. (۲ - ش)

د زېږیزي (تولیدي) غږ پوهې له مخې د غږنزېږو غړو ستر چارونه (نقشونه) په وروسته ډول دي :

## ۲-۲۰: غږن زېږ - تولید واك - *Articulation of Voice*

د غږنوالي د زېږ لپاره سره غږ تارونه نژدې کېږي، ترهغې چې د وتونکې سا هوا په بهیر کې یو څه آړ (مانع) رامنځته شي. د وتونکې سا هوا تېرېدنه د دې لامل کېږي، غږ تارونه چې سره یو تربله ورغلي دي، په رېږدا شي. (۳ - ش) له همدې رېږدا څخه غږنوالی جوړېږي .

واك (غږنوالی) له پرله پېیلو (منظمو) څپو سره یوه غږ Sound یا اواز (Phoneme) ته سندریزه (موسیقاري) لوښه ورکوي . د غږ همدغه ځانګړتیا ده چې سندرغاړې ترې د سندرې په کښنه کې ګټه اخلي .

د غږ د زېږو بمی، رساوالي او نارساوالي کچه زیاتره د وتونکې سا هوا په فشار او د غږ تارونو د رېږدا په پرله پسېوالي، لوړوالي او پراخوالي پورې سیده اړه لري. د غږنوالي د زېږ پروخت د غږ تارونو اکر (حالت) ته د غږنتیا رغونې اکر وایي . هغه غږونه چې د زېږ پر وخت یې، غږ تارونه د غږنتیا رغونې په حالت کې دي، غږن بلل کېږي، لکه : د "ز" غږ او هغه غږونه چې د زېږ پروخت یې غږ تارونه د غږنتیا رغونې په حالت کې نه دي، ناغږن ګڼل کېږي، لکه د "س" غږ . او له همدې کبله "ز" ته د "س" غږن څېل یا وارینت وایو .

## ۲-۲۱: د ناغږنتیا اکر - حالت بېواکی - *Breath Position*

دا هغه اکر دی چې غږ تارونه یې د طبیعي کښنې پروخت ځانته غوره کوي . په دغه اکر کې غږ تارونه یو له بله جلا درېږي، چنغرك بېرته (۲ – ش) او د وتونکې سا هوا بهنګ بې له خنډه له کومې ( چاکنای ) څخه تېرېږي او په چنغرك کې هیڅ راز کوم غږ نه زېږي . د ژبنیو غږونو د یوې ځانګړتیا په توګه د غږنوالي غوندې له ناغږنوالي څخه هم ګټه اخېستل کېږي . او له دې کبله ورته په غږ پوهنه کې پاملرنه ډېره اړینه ده .

## ۲-۲۲: د گونګوسي ږغ - توليدنجوا - *Whisper Position*

د ګونګوسي ږغ لپاره د غږ تارو يوه برخه سره ورځي او بله برخه يې سره يوله بله جلا پاتېږي داسې چې كومي (چاكناى) نيم تړلې او نيم پرانېستې وي (۴ - ش). په دې توګه د سا كښنې بهنځ (مجرا) تنګېږي او د وتونكې سا هوا بهنګ له دغې تنګې څخه په وتوكي د كومي د هماغې پرانېستې برخې پر دېوال سولېږي او يو "هه" ته ورته مبنلى غږ زېږي چې كه د غږ پرځاى د وينا لپاره په كار ولېږي، هغې وينا ته ګونګوسى وايي .

## ۲-۲۳: د تموالي اكر - حالت انسداد - *Stop Position*

په دې حالت كې غږ تارونه سره ورځي او كومى د يو څه شېبې لپاره بېخي بندېږي. (۵ - ش) د ګرهار بهنځ بيخي تړل كېږي او د هوا بهنګ بېخي بندېښت مومي. داسې چې د وتونكې سا هوا فشار ددغه بندېښت د چاودنې لامل كېږي او داسې غږ رازېږي چې ورته تم كوميز plosive glottal وايي چې د عربي همزه په نامه يې يادوو .

## ۲-۲۴: ويند غړي - اندامهاى ګويا - *Articulatory Organs*

ويند غړي د ستوني، خولې او پزې له درو ګونو تشو (جوفو) څخه رغېدلي دي چې ټول د چنغړك (خنجرې) له پاسه ځاى لري . (۶ - ش) د دغو تشو چار د اړخيزو غږونو زېږ دى چې له غږنوالي او يا آرو غږونو سره ګډون مومي او د هغو د بڼګهار او توندوالي لامل كېږي . ويند غړي بيا په غږ زېږ كې ځانته نور چارونه ( نقشونه ) لري چې په وروسته ډول څېړل كېږي :

## ۲-۲۵: تميزي - خيشوم - *Nasal Cavity*

تميزي تر نورو دوو تشو لږ غځېدونكي دي، نو په دې توګه له دومره ونجونو (تغييرونو) سره نه مخامخېږي چې د راز - راز غږونو د پيدايښت لامل شي. يوازې ژبى (ملاز) چې د درو واړو تشو په ګډ بريد كې ځاى لري، له نېغ درېدو سره د تمېزو خوله بندوي او له دې سره په غږ زېږ كې هيڅ برخه نه اخلي او د هغو غږونو په برخه كې چې دغلته زېږي، بې اغيز وي . كله چې ژبى لاندې راوړل شي، د تميزو خوله پرانېستل كېږي او وتونكې هوا يا غږنوالى پر تميزو ورننوځي، او پزيز (خيشومي) غږ رامنځته كېږي . په غږ آړليك (ترانسكرپېشن) كې د پزيز غږ نښه هغه كوچنى (مد) دى چې پر اړوند توري سرباري كېږي، لكه ( a) . پزيز غږ ته غونه يې غږ هم ويل كېږي

## ۲-۲۶: د ستوني يا كومي تشه - حفره حلق يا حلقوم - *Pharyngal Cavity*

د ستوني يا كومي ديوالونه كېداى شي، سره ټينګ يا سست شي. په دې توګه كومى له تمېزو څخه زيات غځېدونكى دى، كله چې د ستوني ديوالونه سره ورغلي (منقبض) وي، د ستوني يا كومي تشه (حلقوم) تنګېږي . له دې سره د ستوني د وتونكې سا تېرېدنه د يو ډول ځانګړې مبنې

یا بنگها د پیداکېدو لامل کېږي چې کومیزه ځانګړتیا ورته وایي. غړن منبلی کومیز غږ عربي (ع) او ناغړن یې ( ح ) ده . کومیز شوي غږونه، لکه : " ط " او " ظ " .

## ۲-۲۷: د خولې تشه - حفره دهان - *Oral Cavity*

دغه تشه په ویندو غږو کې تر ټولو زیاته غځېدونکې اوله دې سره تر ټولو زیاته کارنده او غوره ده. د خولې نرمښت (انعطاف) د نرم تالو د خوځېدا ، د شونډو او خوله ییزو دیوالونو د بېلا بېلو بڼو، د لاندینۍ ژامې د ګرد خوځون او تر ټولو زیات د ژبې د هر اړخیزو خوځېدنو زېږنده ده . له هر ډول خوځېدا سره یو جلا غږ زېږي، د زیاترو غږونو په پیدایښت کې د ژبې ونډه دومره اغېزمنه ده چې د نړۍ زیاترې ژبې په همدې نامه، یا په بله وینا ، بشري ګړنی ځواك "ژبه" بلل شوې ده.

دا چې د راز راز غږونو په پیدایښت کې د خولې کارونه ډېره زیاته ده او د دې لپاره چې په خوله کې بېلا بېل راپیدا کېدوني غږونه تعریف او ډلبندي شي، نو په کار ده، خوله پر بېلا بېلو ځایونو یا غږ زېږ ځیو وویشل شي، هغه هم د چت (تالو) له مخې چې ناخوځنده ( ثابت ) دی ( ۷ - ش ) .
دغه راز، ژبه د یوه ډېر خوځنده غړیز غړي په توګه پر بېلا بېلو برخو وېشنه مومي، لکه په (۸-ش) کې :
همدارنګه شونډې هم کولای شي، د راز راز بڼو په غوره کولو سره راز راز غږونه رامنځته کړي یا د هغو په پیدایښت کې برخه واخلي، لکه د دواړو شونډو تړل کېدل، نیم تړل کېدل یا بیخي بېرته کېدل ( حقشناس ۵۱-۵۲ ) .

## ۲-۲۸: زېږ ډولونه - شیوه های تولید - *Manner of articulation*

هغه اکر (حالت) چې ویند غړي یې د یوه غږ د زېږ پروخت ځانته غوره کوي، د هغه غږ د زېږ ډول په نامه نومول کېږي . غوره زېږ ډولونه په لاندې ډول دي .




ش، ٦: وينډ غړي



ش، ٧: زېرخي

١ – غبرګشونه‌يز
٢ – شونه‌غابنيز
٢ – وو ـېز – تالوبيز
٣ – تالوبيز – اوريز
٤ – مختالوبيز
٤ – تالوبيز
٤ – اوسترتالوبيز
٥ – نرم تالوبيز
٦ – ژبې بيز
٧ – سترنيز
٨ – کوميز




ش ٨: د ژبې وېش

## ۲-۲۸-۱: تم - انسدادي ( انفجاري - بندشي ) - *Plosive*

دغه راز زېږ ږول هله رامنځته کېږي، چې په يو زېږ ځي کې سره دوه غړي داسې يوله بله اړيکه (تماس) ومومي چې د ګړهار بهنځ يوه لنډه شېبه وتړي او هوا تمه شي، لکه : د "پ" او "ب" په وينګ کې .

## ۲-۲۸-۲: پزيز - خيشومي ( ش - ۶ ) - *Nasal*

دغه زېږ ږول هغه مهال منځته راځي چې د ژبي له کښته کېدو سره د تمېزو لاره ببرته پاتې شي، په داسې توګه چې تولې يا لږه سا هوا له تمېزو څخه بهره شي .

## ۲-۲۸-۳: مښن يا مښلي - سايشي ( احتکاکي ) _ *Fricative*

کله چې په يوه زېږ ځي کې دوه غړي سره داسې نژدې شي چې د ګړهار بهنځ د يو څه شېبې له مخې دومره تنګ کړي چې له هغې تنګې څخه هوا د تېريدو پر وخت په غړو پورې ومښل شي يا وسولول شي او يو غږ رامنځته کړي، مښلي ږول ترلاسه کېږي . مښلي ږول کله کله د ژبې د ښې له مخې پر ناوه يي ( شپېلکي يا صفيري ) او پاشلي ږولو وېشل کېږي، لکه د ( س ) او ( ز ) د پيدا ايښت پروخت . د پاشلي ږول له پيدا ايښت سره ژبه ناوه کېږي نه، بلکې هوا په تولې تنګې پورې سولېږي، لکه : د " خ " او ( ځ ) له پېدا ايښت سره .

## ۲-۲۸-۴: رغښتي - غلطان ( لرزشي ) - *Rolled ( trill )*

که د هوا بهنګ يو ويند غړی د يو څه شېبې لپاره داسې پر رېږدا راوړي چې له هغه رېږدا څخه په غږ کې يو رغښت (لغزش) رامنځته شي، رغښتي ږول لاس ته راځي . دغه ږول د ژبې په زېږځي کې د ژبې له رېږدا سره او په اووريز هغه کې د ژبې د سر له رېږدا سره ترسره کېږي، لکه د پښتو (ر) يا پرانسي (ر) د پيدا ايښت پروخت .

## ۲-۲۸-۵: يو رپي - زنشي ( تك ضربي ) - *Sub-standard*

دغه زېږ ږول هغه مهال راپيدا کېږي چې د هوا بهنګ يو ويند غړی تش يوځل وربوي ( ورېږدوي ) او د رغښتي غوندې يوازې په ژبې ييز او اووريز زېږځي کې پېښېږي، لکه د "ر" وينګ په امريکايي انګريزي يا "ړ" په پښتو کې .

## ۲-۲۸-۶: اړخيز - کناري - *Lateral*

کله چې د ژبې یوه برخه له یوه زېږ ځي (۲-۳۰) سره داسې ولګي چې د ګرهار بهنځ یوازې په منځ کې وتړي، مګر د خولې یوه خوا (وښکی) یا دوې خواوې ببرته پرېږدي، اړخیز ډول راپیدا کېږي، لکه د "ل" په پیدا ایښت کې .

## ۲-۲۸-۷: نامښن یا نامښلی - ناسوده - *Friction Less*

که دوه غږي سره داسې نژدې شي چې د یوه غږ، غږیزه لوښه بدله کړي، خو د تم مښلي د رېږدا (رپا ) یا اړخیزتوب لامل نه شي، نامښلی زېږ ډول رامنځته کېږي، لکه له "ی y " او "و w " سره .

زېږ ډولونه د زېږځیو (۲-۳۰) غونډې ترښتي (ترکیبي) لوښه لري. داسې چې که د یوه غږ په پیدا ایښت کې دوه زېږ ډولونه، لکه تم او مښلي پېښ شي، نو تم مښلی بلل کېږي، لکه : "چ" او "څ" همدارنګه تم مښلي ناوه یي، لکه : ځ - ژ ....

**۲-۲۹: پور غږ ( مستعار صوت )** : هغه غږ یا اواز (فونیم) ته وايي چې له آروینګ سره له یوې ژبې څخه بلې ته ورننوتی وي، لکه عربی (ق) په څېنو ګردودو یا (ف) د افغان او افغانستان په معیاري پښتو وینګ کې .

**۲-۳۰: زېږځي** : د غږیزو غړو (←) هغو برخو ته ویل کېږي چې د ژاولنتیا (ارتجاعیت) ورتیا یې په پرتلیز ډول ډېره لږه وي اوځه ناخه غلې او ناخوځنده وي، لکه پاسنی شونډه، پاسني منځغاښونه، (مخنی، منځنی، روستی) تالو، اوورې، ستونی او داسې نور. کوم ښواک غړونه چې له نوموړو زېږځیو څخه راوځي، د هماغه زېږځي په نامه یادېږي، لکه شونډیز ښواک، غاښیز ښواک او داسې نور.

**۲-۳۱: زېږ غړي** : هغو ته ویل کېږي چې د ژاولنتیا ورتیا یې زیاته وي او څه ناڅه خوځنده وي، لکه : لاندینی شونډه، ژبه او د هغې څوکه، منځ او بېخ .

**۲-۳۲: وتوځی** : کله چې د ښواکو غړونو د زېږ پروخت غږ زېږي غړي (← ) په زېږځي (۲-۳۰) پورې ونښلي یا ورته نژدې شي، د نښتنې یا نژدې کېدنې دغه ځای ته " وتوځی " وايي، په دې توګه پښتو ښواک دا لاندې وتوځي لري :

**غبرګشونډیز** : چې دواړه شونډې سره ونښلي او غږ ادا شي ؛

**غاښیز** : چې د ژبې څوکه له اووریو سره ونښلي او غږ وزېږ وي ؛

**تالوییز** : چې د ژبې بېلا بېلې برخې د تالو له مخنی، منځنی او یا وروستنی برخې سره ونښلي او ښواک رامنځته شي .

**۲-۳۳: د سا هوا له مخې د غږونو ډولونه** : د وینا غږونه له آره د سا هوا له رېړدا او ویجاړتیا څخه رامنځته کېږي . د غږ زېږ ډول دا مانا چې د وینا غږونو د زېږ پروخت د انسان په اراده څه راز پېښېږي د سا هوا پر بهنګ راوړل کېږي . په دې توګه پښتو ببواك پرتمو، مبنلو، تم مبنلو، اوبلنو یا مایعو، پزیزو یا ګړنسي او یا غنه یي وېشنه مومي .

**۲-۳۴: کومکي وتوځي** : هغو څېرمه ییزو چارو (فعالیتونو) او کومکي پېښنو ته وایي چې د انسان په وېلاړ (اراده) ترسره کېږي او د وینا ییزو غږونو له جوړښت سره آره او سیده اړه نه لري، لکه : له خولې یا پزې او یا هممهاله، له خولې او پزې دواړو څخه د سا هوا ایستل.

که د یو غږ د زېږ پروخت یوازې د خولې لار بېرته او د پزې هغه بنده وي، هماغه غږ "خوله ییز ببواك" بولو؛ که د یو غږ د زېږ پروخت یوازې د پزې لار بېرته او د خولې هغه بنده وي، راوتی غږ "پزیز ببواك" بلل کېږي او که د کوم غږ په زېږ کې د خولې او پزې لارې دواړه بندې وي، نو بیا ورته " ګړنسي یا غنه یي ببواك " وایو . الهام ( ۶۲-۶۴ مخ ) .

## ۲-۳۵: ګړاوونه ( تمرینونه ) :

۱ : غږپوهه له څه غږېږي ؟
۲ : آوازپوهه څه ته وایي ؟
۳ : د غږ پوهې ځانګې کومې دي ؟
۴ : مورفو - فونولوجیکي اوښتنې له ډولونو سره راوپېژنئ !
۵ : همرنګي څو ډوله ده ؟
۶ : بخنبل ولې ببنبل یا بخل شوی دی ؟
۷ : روغ - ورغ او کښته - ښکته څه راز بدلون دی ؟
۸ : وینا ییز یا ګړهاري غړي څه دنده لري ؟
۹ : وېند غړي او وینا ییز غړي سره څه توپیر لري ؟
۱۰ : زېږځي او وتوځي سره څنګه توپیروئ ؟
۱۱ : زېږ غړي کوم دي ؟

# نوموني - اصطلاحات - *Terms*

| | |
|---|---|
| اټکل | گومان، حدس، تخمین |
| - شمېر | تخمیني یا غیرمعین عدد |
| اخځ | ماخذ، رېفرنس، حواله |
| اخځلیك | د ماخذونو فهرست، بیبلیوگرافي |
| آر | اصل، اصیل، اصلي، پرنسیپ |
| آر پېر | اصلي حالت |
| ارته یووستوې غونډله | منکشفه ساده جمله |
| آر شمېر | اصلي عدد |
| آر غونډله یا آره غونډله | اصلي جمله |
| ارماني | تمنایي |
| آره | اصل، منشاء، نسب |
| آره یووستوې غونډله | اصلي ساده جمله |
| آړ ( گره ) | شرط، مانع |
| اړوتی | شرطی، مانع |
| اړوندي | تابعیت، تعلق، ارتباط، مربوطیت |
| اړیکپېر | ارتباطي حالت |
| اړیکنومځری | ارتباطي ضمیر |
| انځورلیك | گراف، دیاگرام |
| اړیکوییکی | ارتباطي کلمه ( حرف ربط یا صله ) |

| | |
|---|---|
| انگازه ( غبرگون ) | انعکاس، عکس العمل |
| انگینوم | صوتي نوم، نام اوا |
| انگینومیز | نام آوایي |
| اواز | فونیم، واج یا واژ |
| اوازپوهه | فونیمپکس، فونیمشناسي، واجشناسي |
| اوډل | ترتیبول، تنظیمول |
| اوډون | ترتیب، تنظیم، نظم |
| اوریز | سمعي، سماعي، شنوایي |
| اوړون | گردان، تصریف |
| اوړونی | گرداني، تصریفي |
| اوړېدونی | گردانیدونکی، متصرفه |
| - ژبه | متصرفه |
| - گړ | گردانېدونکی مورفیم |
| اوستربل | پسینه، پوستپوزېشن |
| اوسترمهال ( وسترمهال ) | استقبال، مستقبل |
| اوښتون | تغییر، تحول، انقلاب |
| اوښتی پېر | مغیره حالت |
| اېښونی | مسند، خبر، گزاره |
| اېښنی | مسنداليه، مبتدا، نهاد |
| بشپړ | مطلق، مکمل |
| - کړ | مطلق فعل |
| - تېرمهال | مطلقه ماضي |
| - وسمهال | مطلق حال |
| - وسترمهال | مطلق استقبال |
| بشپړ اند | بشپړوونکی، متمم، مکمل |
| - کړ | سوپلاتیف یا ناقص فعل |
| - توك یا ټوك | بشپړوونکی عنصر یا جزء |
| بیا پېښنی | تکراري، مکرر |
| بیا پېښني | تکرار |
| بېچار | بېکار، بې فعالیت، مجهول ( فعل ) |
| - پېر | ارگاتیف |
| - کړ | مجهول فعل |

| | |
|---|---|
| - کړنوم | مفعولي صفت |
| بېدوده، بېدويه | بې قاعده |
| بېلتون | فصل ( نازنځيري فونيم ) |
| - و پيوستون | فصل ووصل |
| بېلبنت | اشتقاق |
| بېلبنتي | اشتقاقي، مشتق |
| بېواك | كانسونېنت، صامت |
| پايځوړ | ضميمه، تعلق، اپنډېكس |
| پايلنيوى | نتيجه گيري، استنتاج |
| پايله | ( فعلي، اسمي ) خاتمه، نتيجه |
| پايليزه | ( د كتاب ) خاتمه |
| پرتله | مقايسه، نسبت |
| پرتليز | مقايسوي، نسبي |
| پژنوم | ذات اسم |
| پژنى ( پږنى ) | بدني، جسمي، ذاتي، جسماني |
| پژى | بدن، جسم، ذات، وجود |
| پښوپوهاند | گرامرپوهاند |
| پښويه | گرامر، دستور، صرف ونحو |
| پښوييز | گرامري |
| پلوي | طرفدار، سمتي |
| - نومځرى | توجيهي ضمير ( نومځرى ← ) |
| پورغږ | واج قرضي |
| پور ويى | مستعار لغت، واژه قرضي |
| پوړ شمېر | رتبي يا وصفي عدد |
| پوښتغونډله | استفهامي جمله |
| پوښتنښه | د سواليې علامه |
| پوښتنليك | پرسشنامه، كويستشنر (ي) |
| پوښتنومځرى | استفهامي ضمير |
| پوښتني | استفهامي |
| پېر | مرحله، دور، دوره، حالت ( اسمي ) |
| پېژند | ارتيكل، ( حرف ) تعريف |
| پيوستون | وصل ( نازنځيري فونيم ← ) |

| | |
|---|---|
| تاړی | وند ، افېکس |
| تړ غبرگغونډله | عطفیه یا مضاعفه جمله |
| تړوییکی | حرف عطف یا صله |
| تواني | امکاني، اقتداري |
| - کړ | - فعل |
| توری | حرف، گرافیم |
| توسن | سبب، علت |
| - پېر | علتیه حالت، کوزاتیف |
| - غونډله یا توسني غونډله | علتیه جمله |
| - وییکی | د علت توری |
| توسني | الی، علتي، علتیه، معلول |
| توك یا توکی | عنصر، ماده |
| تول ( په معروف و ) | مال، ملکیت |
| - نوم | مضاف |
| - نومځری | ملکي یا اضافي ضمیر |
| تون | ځای، ظرفیت |
| - پېر | ظرفي حالت، لوکاتیف |
| توني | ظرفي، مکاني |
| - کړول | مکانی قید |
| تېرمهال | ماضي، تېره زمانه |
| - کړ | ماضي فعل |
| ټوك | جزء، جلد ، جزوه |
| ټوکر | پاراگراف |
| ټولنوم | عام اسم |
| ټولی | کتېگوري |
| ټولیز یا ټولوال | کلی، عمومی، مجموعی، جمعي |
| جاج | مفهوم |
| جوت | معلوم، ثابت، مشخص |
| جوله | بڼه، شکل، لفظ |
| جولیز | شکلی، ظاهری، لفظی |
| چار | عمل، عملیه، فعالیت، نقش، رول |
| - ول | فعال، معلوم ( فعل ) |

| | |
|---|---|
| -- کړ | معلوم فعل |
| --- نوم | فاعلي صفت |
| - انګ | عکس العمل، بازتاب |
| ځانګړتیا ، ځانګړنه، ځانتیا | خصوصیت، خاصه |
| ځانګړنومځری | شخصي ضمیر |
| ځانګړی نوم | خاص اسم |
| څپه | هجا، سیلاب |
| څپیز | هجایي، سیلابي |
| څرګندنه | اصطلاح، اکسپرېشن |
| څرګندني، څرګندنیز | بیاني، تشریحي، توضیحي، اصطلاحي |
| - غونډله | بیاني یا توضیحي غونډله |
| څرګندوییکی | بیانیه ادات |
| څېرمه | فرعي، ضمني، الحاقي |
| - غونډله | فرعي جمله |
| څرنګوالی | کیفیت |
| څرنګیز | کیفي |
| څومره والی | کمیت |
| څومره ییز | کمی، کمیتي |
| څیزنوم | اسم، سوبستانتیف |
| څیزنومیز | اسمي |
| څیزوال | غیرشخصي، د یوه څیز اړوند |
| خبر | خبر، مسند، ګزاره |
| خبري | خبری، بیاني، بیانیه |
| - غونډله | خبري جمله، بیانیه جمله |
| - کړ | خبري یا بیانیه کړ |
| خپلواك (غږ) | واول |
| خپلواکه غونډله | مستقله یا اصلي جمله |
| خج | فشار |
| خجن | فشار لرونکی |
| دود | رواج، مروج، قاعده، وجه فعلي (خبري - انشایي) |
| دودیز | باقاعده، عنعني، متداول |
| دوی | قانون، قاعده |

| | |
|---|---|
| ډېرګړی | جمع |
| روږد (ی) | معتاد |
| روږدتيا | اعتياد |
| روږدنی، روږدني | اعتيادي |
| - کړ | اعتيادي فعل |
| روږدي | عادي |
| روستاړی | پسوند ، لاحقه، سفېکس |
| زور خج | ديناميك خج |
| ژبپوهاند ، ژبپوه | زبانشناس |
| ژبپوهنه | زبانشناسي |
| ژبپوهنيز | لنگويستيکي، زبانشناختي |
| ژبنی | لساني |
| ستاينوم | صفت ( اسم صفت ) |
| سربل | پېشينه، پرېپوزېشن |
| سرغاړی | مستنکف، سرکش، متمرد ، باغي |
| - غونډله | مستنکفه جمله |
| سول | عقل، منطق |
| سوليز | معقول، منطقي |
| شمېر ترڼګ | عددي ترکيب |
| شمېرنوم | عدد ( اسم ) |
| شننه، څېرنه | تجزيه، تحليل، تفسير |
| ښځينه | مونث |
| غاړه | لحن، ترنم |
| غبرګغږ | دېفتونګ، دېفتانګ |
| غبرګغونډله يا غبرګه غونډله | مضاعفه جمله |
| غبرګوال ( منځوال ) | انعکاسي ( فعل ) |
| غبرګون | انعکاس، جواب، عکس العمل |
| - کړ | انعکاسي فعل |
| - نومځری | انعکاسي ضمير |
| غږ ( ږغ ) | فون، صدا ، سونډ |
| - پوهه ( - هنه ) | فونولوجي |
| - پوهيز | فونولوجيکي |

| | |
|---|---|
| غوښتني | دعائيه، مطلوب |
| - كړ | دعائيه فعل |
| غونډ | اسمي گروپ، فقره، عبارت، مسنداليه |
| غونډله ( دوه څپيز ) | جمله |
| - پوهه | نحو - سېنتکس |
| - پوهيز | نحوي |
| - ييز | جملوي |
| غونډ نوم | اسم جمع |
| كړ | فعل |
| - اوړون | د فعل گردان |
| - تړ | د فعل رابط |
| - توك | فعلي عنصر |
| - غونډ ( كړوال غونډ ) | ( فعلي ) گروپ، فقره، عبارت |
| - مهال | فعلي زمانه |
| - نوږى | فعلي جنس |
| - نوم | فعلي يا مشتق نوم |
| كړند | فاعل |
| - پېر | فاعلي حالت، نوميناتيف |
| - وال ( بېچار ) پېر | ارگاتيف |
| كړوال | فعلي |
| - غونډ | فعلي گروپ يا فقره |
| كړواله غونډله | فعلي جمله |
| - گڼه | فعلي اصطلاح |
| كړول | قيد |
| كړ ولي | قيدي |
| كړولى | فعلي رېښه |
| كړولي غونډ | قيدي گروپ يا عبارت |
| كړى ( يو څپيز ) | مفعول |
| - غونډ | مفعولي گروپ يا عبارت |
| - پېر | مفعولي حالت |
| گډ غونډله يا گډه غونډله | مركبه جمله |
| گډلي غونډله | مختلطه جمله |

| | |
|---|---|
| گړ | مورفيم، واج |
| - پوهه ( هنه ) | واجشناسي، مورفولوجي، صرف |
| - پوهيز | مورفولوجيك، صرفي |
| ګړدود | لهجه، گويش |
| - پوهه | لهجه شناسي |
| ګړنپوهه | اصطلاح شناسي، فرازيولوجي |
| ګړنه | محاوره، ايديم، فراېز |
| ګړنيز | محاوروي، شفاهي |
| ګڼه | عدد، افراد وجمع |
| ګوماني | شكي، شكيه، احتمالي |
| لالر نغوتنومځری | لالري اشاري ضمير |
| لر تېرمهال | بعيده ماضي |
| لر ستاينوم | د مسند صفت، د پريديكات صفت |
| لر كړی | بالواسطه مفعول، داتيف |
| - پېر | د بالواسطه مفعول حالت، داتيف |
| لر نغوتنومځری | لرې اشاري ضمير |
| لښتيليك | جدول |
| لنډ تيرمهال | قريبه ماضي |
| لنډ ستاينوم | د مسنداليه صفت، نژدې صفت |
| لنډ كړی | بې واسطه مفعول |
| - پېر | د بې واسطه مفعول حالت، اكوزاتيف |
| لنډ نغوتنومځری | نژدې اشاري ضمير |
| لوستليكی | كتاب قرائت، درسي كتاب، تكسبوك |
| لوښن | الي، انسترومنتال |
| - پېر | الي حالت، انسترومينتاتيف |
| لوښی | ظرف، اله، سامان، اواز |
| لېږند فعل | متعدي فعل، ترانزيتيف فعل |
| - چار كړ | كوزاتيف فعل، مصدر صناعي |
| ليكلړ | لست، مينيو |
| ليكنښه | د تنقيط علامه، پنكچوېشن |
| ليكنی | تحريری، كتبي |
| ليكی | كتاب |

| | |
|---|---|
| ليکي پلور | کتابفروشی |
| - پلوری | کتابفروش |
| مانا | معنی، معنا |
| - پوهه | علم معاني، سېمانتيك |
| - توك ( مانګړ ) | کوشنيترين مانيزتوك، سېمانتېم |
| - نوم | اسم معنی |
| - ونج | مانيز تغيير |
| مختاړی | پېشوند ، سابقه، پرېفېکس |
| مخکړ | فعلي سابقه، پريوپرب |
| مرستيالکړ | معاون فعل |
| مله غونډله | ملګرې يا فرعي جمله |
| منځپېښي غونډله | معترضه جمله |
| منځتاړی | ميانوند ، انفېکس |
| منځوال کړ | انعکاسي فعل |
| منښتي | اقراري |
| نابشپړ کړ | غيرمطلق فعل، استمراري فعل |
| ناپای | ناتمام، مصدر ، اينفنيتيف |
| ناشنونی | لايتجزا ، غېرقابل تجزيه |
| نالېږند کړ | لازمي فعل، اينترانزتيف فعل |
| ناوړېدونی | غيرمتصرفه، نه ګردانيدونکی، نه اوړېدونکی |
| نرينه | مذکر |
| نغوته | اشاره |
| نغوتنومځری | اشاري ضمير |
| نمنښتي | انکاري |
| - وييکی | حرف نقض ( خو، مګر ) |
| نوچار ، نوښت | ابتکار ، اينيسياتيف |
| نوړ نوم | اسم جنس |
| نوم | اسم |
| - اوړون | د اسم ګردان |
| - اوښتون | د اسم تغيير |
| نوم پېر | اسمي حالت |
| نومځری | ضمير ( ځری = استازی ) |

| | |
|---|---|
| نوم نوري | اسمي جنس |
| نومـوال يا نوميز | اسمي |
| - غونډ | اسمي گروپ، مسنداليه |
| نوموالـه غونډله | اسمي جمله |
| - گړنه | اسمي محاوره |
| نومليك | فهرست اسما يا اعلام، اپنديكس |
| نومونپوهه | ترمينالوجي |
| نومونه | نامگذاري، اصطلاح ( علمي، تخنيكي )، ناموا‌ژه، ترم |
| نومېرل | تشخيصول |
| نوميز يا نوموال | اسمي |
| نيمواك ( غږ ) | نيم واول، شبه واول |
| نيوليك | فهرست مندرجات |
| وتونپېر | مفعول منه يا منشايي حالت، ابلاتيف |
| ورتلونپېر | مفعول له حالت |
| ورمندون، ورمند | امر، حكم، قضاوت، داوري |
| ورمندي | امري، قضايي |
| وگړپوهنه | انتروپولوجي، بشرشناسي |
| وگړي | شخص، صيغه |
| ولې ( رېښه ) | ريشه، جذر، روټ |
| ونج | بدل، عوض، بدلون، معاوضه، مېز |
| ونجول | بدلون، تبديلول، عوضول، معاوضه كول |
| ونجون | بدلون، معاوضه، تغيير |
| ونجېدل | بدلېدل، عوضېدل |
| وورشمېر يا مات شمېر | كسري عدد |
| وېش شمېر | انقسامي عدد |
| ويي ( گاى ) | لغت، كلمه، واژه |
| - اوډون (په غونډ او غونډله كې) | ( په فقره او جمله كې ) د كلماتو ترتيب |
| - پانگه ( زېرمه ) | لغوي ذخيره، ويكابولري |
| - پور | قرض واژه يي |
| - پوهه | لغت شناسي، واژه شناسي |
| - رغاونه | لغوي ساختمان، واژه سازي، نيولوجېزم |

| | |
|---|---|
| وییز | لغوي، کلموي |
| - خج | لغوي فشار |
| وییکنومځری | اداتی ضمیر |
| وییکی | ادات، حرف، پارتیکل |
| همېشنی یا همیشه یي | استمراري، دایمي |
| هېښنده | محیر، تعجب اور |
| هېښني | تعجبي |
| یووستوی | ساده، بسیط |
| یووستوې غونډله | بسیطه یا ساده جمله |
| یو ګړی | مفرد |
| یوون | واحد، یونټ |

# اخځلیک

۱ - الهام، محمد رحیم : روشی جدید در تحقیق دستور زبان دری - پوهنځی زبان وادبیات، ۱۳۴۹ ل .
- د پښتو ګرامر طرح، وړمه - د کابل پوهنتون د کتابتون د افغانستان پوهنې ځانګه .
۲ - پالوال، عبدالرازق : پښتو نوی مصدر - ادب پوهنځی، ۱۳۵۰ ل، کابل
۳ - پنزل، هربرت : د پښتو ګرامر، د محمد رحیم الهام ژباړه، ادب پوهنځی، ۱۳۴۰ ل .
۴ - تره‌ی، حبیب الله : نوې ژبپوهنه او ژبنې مسایل - پښتو ټولنه، ۱۳۴۴ ل .
۵ - چامسکي، نوم : دانش زبان، ماهیت، منشا وکاربرد آن. ترجمهٔ علي درزی. نشرنی، تهران، ایران ۱۹۸۶ .
۶ - حبیبي، عبدالحی : "تعلیقات" تاریخ تلفظ (آواشناسی) وصرف پشتو . جلد دوم ص ۲۷۳-۲۷۴ ( ← روان فرهادی ) .
۷ - خانلري، پرویز : ساختمان جمله - بخشی از جلد دوم تاریخ زبان فارسی، بنیاد فرهنگ ایران، تهران ۱۳۴۹ .
۸ - خوشال - ک : د خوشال خان ختك کلیات، کابل چاپ .
۹ - خوشال - پ : د خوشال خان ختك کلیات، پېښور چاپ .
۱۰ - رښتین، صدیق الله : پښتو ګرامر، پښتو ټولنه ۱۳۲۷ ل .
۱۱ - روان فرهادی، عبدالغفور ( مترجم ) : تاریخ تلفظ ( آواشناشی ) وصرف پشتو از استادان غرب : دارمستتر، گایگر، مورگنستیرن وبن ونیست . در دو جلد . نشرات مجلهٔ ادب پوهنتون کابل ۱۳۵۶ ( ۱۶۷۷ م ) .
۱۲ - پښتو قاموس، لومړی ټوک ۱۳۳۰ ل، دویم ټوک ۱۳۳۳ ل. پښتو ټولنه، کابل.
۱۳ - زیار، مجاور احمد زیار : پښتو پښویه (ګرامر) . د پښتو ژبې او ادب څانګه، د ژبو او ادبیاتو پوهنځی، کابل پوهنتون . د لوړو زده کړو د وزارت چاپخونه . کابل ۱۳۶۲ ل - ۱۹۸۰ ز .
- ویي پوهنه، د پښتو ژبې او ادب څانګه، کابل پوهنتون، د لوړو زده کړو چاپخونه ۱۹۸۱ .
- پښتو لیکلار ، د پښتو ژبې او ادب څانګه، کابل پوهنتون، د لوړو زده کړو چاپخونه ۱۹۸۲ .
- نگرش گذرایی اتنولینگویستیك برمضحکهٔ ارتباط خلجی های ترك با غلجی های پشتون وهمچنان اریهٔ ابدالی ها ویفتلی ها به مثابه هونهای سپید (!)، هفته نامهٔ نیمروز افغانستان، شماره ... ۱۳۷۷ (لندن) وشمشاد ، شماره ۱-۲ ش، ص ۱۱-۲۰ .
- پشتو ، زبان پشتونها ، به مثابه عمده ترین زبان آریائی شرقی (افغانستان) پژوهش در فرهنگ باستانی وشناخت اوستا (سومین همایش، هامبورگ اکتوبر ۱۹۹۸) جلد دوم ص ۴۸۹-۵۳۰ . انجمن رودکی، پاریس ۱۹۹۸ .

- پښتو سيندګۍ - نوېزونه (نيولوجيزونه) . د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز، پېښور ۱۳۷۸ ل - ۲۰۰۰ ز .
- انګرېزي - پښتو سيندګۍ - سرېلونه + اوسترېلونه، ګړنې او څرګندنې . د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز، پېښور ۱۳۷۸ ل - ۲۰۰۰ ز .
- پښتو او پښتانه د ژبپوهنې په رڼا کې (له ساکي مخينې سره) . د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز، پېښور ۱۳۷۹ ل - ۲۰۰۱ ز .
۱۴ - لودين، دولت محمد : د کلام د اجزاوو جوړښت، زېرى، ۴۳ ګڼه، ۱۳۵۱ ل کابل .
- د پښتو ژبې د فعلي اصطلاحګانو واحدونه او د هغوى د قاموسي تشريحاتو ځينې پوښتنې (ژباړه) - کابل مجله، ۸ ګڼه، ۱۳۵۱ ل کابل .
15. F. De Saussure: Grundfragen der Allgemeinne Sprachwissenschaft Übersetzer: H. Lommel. 2. Auflage, Berlin 1967.
16. G. Helbig & J. Buscha: Deutsche Grammatik- Leipzig 1975.
17. R. Konig & U. werner: Zum Gebrauch der phraseologismen. Humboldt Universitat Berlin1979.
18- Kieffer, C. M., "Dialectologie du pachto. Distribution et typologyie des parlers Pashto d' apres les premieres Cartes de Altas linguistique de 1' Afghanistan CALA". Colloque sur L'etablissement d'um Centre de etude la langue et de la literature pashto, Caboul 1975.
-Die Paschtun und seine Paschtunwali. Bern 1974.
-AC?KZI, Encyclopaedia (Ed. By Ehsan Yarshater), Vol. 1. p. 413-414. Afghan p. 481.
19. H. Krahe: Indogermanische Sprachwisissenschaft II Form Lehre, Hamburg Goschen Band 60 – Barlin 1963.
20. D. N. Mackenzie: Pashto, The World's Major Languages, ed. Bernard Comrie, London, 1987.
20. A. Martinet. Grundlage der Allgemeinen Sprachwissenschaft. Kohlhammer Verlag 1967.
21. J. C. Mayer – Ing: Untersuchungen von Satzbau des paschto. Hamburg 1966.
22. Morgenstierne George. An Etymolosical Vocabulary of Pashto (EVP). Oslo 1927.
23. Morgenstierne George. Indo-Iranian Frontier's Lanhuages: parachi and Ormuri. Oslo 1927.
-1975: "The languages of Afghanistan, Afghanistanxx, 3, pp. 81-90. 1975: The place of Pashto among the Iranic languages and the problem of the Constitution of Pashtun linguistic and ethnic unity" Int. pashto seminar on the occasion of establishment of the International Center for Pashto studiies, Kabul, Nov. 1975.
-1978: Pashto Quarterly, 1, 4, pp. 43-55.
-1927: An Etymological Vocabulary of Pashto (EVP), Oslo.
24. Morgenstierne, George. Neu-iranische Sprachem S. 155-170. Hb. Der Orientalistik, 4. Bd. Granistik: 1. Absch. Linguistik. Leiden-koln 1958.
25. R. Murphy: English Grammar in Use. 2. Ed. Cambridge Uniiversity Press 1994.

26. J. Monroe, Pence: A Tagmemic Grammar of Pashto clause structure. Univ. Microfilms Michigan 1967.
28. H. Penzl: A Grammar of Pashto – Washington 1955.
29. Hans, Reichelt, Awestsches Elementarbuch. Carl Winter. Universitatsverlag, Heidelberg. 1967.
30. Daniel, Septfonds, Le Dzadrani, Un parler pashto du Paktya (Afghanistan), Paris 1994.
31. D. Shafeev; A Short Grammatical outline of Pashto Mouton & Co. 1964.
32. Ski aeru/, prods O., Pashto p. 384-409.
Compendium Linguarum Iranicarum Hsg. Rudiger Schmitt Wiesbaden 1989.
33. H. Tegey: The Grammar of Clitics int. Center for Pashto Studies, Kabul 1978.
34. H. Tegey & B. Robson: A reference Grammar of Pashto. Center for Applied Linguistics. Washington, D. C. 1996.
35. U. Ulrich: Worterbuch Linguistische grundbegriffe. Verlag Ferdinand hirt 1972.
36. G. Wahrig: Das Grosse Deutsche Worterbuch. C. Bertelsmann Verlag Gutersloh 1966.
37. M. A. Zyar: Die Nominal Komposita des Pashtoo, Diss. Universitat Bern. Institute fur Sprchwissenshaft, Bern 1974.
-2000: An English – Pashto Dictionary of Prepositions & Postpositions, Translation & Comparison Publ. Sapi's Center of Pashto Reaserch and Development. Peshawar 2000.
-The Collins English Dictionary 2. Ed. Collins. Editor: P. Hanks. London and Glasgow 1988.
-The Oxford English Dictionary. 2. Ed. Prap. J. A. Simson and E. S. C. Weiner. Clarendon Press, Oxford 1989.

# په آرياني ژبو کې د پښتو تاريخي - جغرافيايي درَيځ



# سمونلیک

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| ښې X | ښې X | ۳۶ | ۱۵ |
| ۸۹ - ۹۱ | ۹۱ - ۹۳ | ۱۷۳ | ۱ |
| ۶۷ | ۷۰ | // | ۱۸ |
| ۹۳ | ۷۹ - ۸۳ | ۱۷۴ | ۱۲ |
| ۷۶ | ۸۳ | // | ۲۱ |
| ۱۳۳ | ۱۳۶ | // | ۹ |
| ۸ - | ۷ - | ۱۷۶ | ۴ |
| ۱۵۷ | ۱۵۸ | // | // |

همدا رنګه دې د نورو اخځونو اړوندو مخګڼو (۲) او (۳) زیاتوالی په پام کې ونیول شي. د ۱۳۷ مخ د جدول کیڼ پلو ته یو ربړ غشی ( ← ) او په ورلاندې کرښو کې دویم دویم تکراري "اوړني" ویبونه هسې زیاتي راغلي دي.

# PASHTO GRAMMAR

By

Prof. Dr. M. A. Zyar

Oxford, 2003

***Published by:***
Danish Publishing Association
Qissa Khwani Bazar, Peshawar
Ph:2564513/Kabul:0093-079-315887